# تاج اللغات جامع

## پښتو

مرتبه

مشتاق مجروح یوسفزئ

تاج کمپنی لمیٹڈ

لاهور کراچی راولپنڈی

پشاور شارجه

بسم الله الرحمن الرحيم

# عرض ناشر

د خپلې مورنى ژبې سره مينه يو فطري څيز دے هر بنده دا غواړي چې په خپله ژبه کښې ليکل او لوستل وکرى بل د ټولو نه غټه خبره دا ده چې په خپله ژبه کښې د نورو ژبو په نسبت علم ډير زر زده کيدے شي. له دې وجې نه د دې ادارې د وخت د سره دا کوشش ياتې شوے دے چې خپلو پښتنو ورونو ته په خپله ژبه کښې علم ور ورسوي. په دغه لړ کښې مونږ د دې ادارې له خوا ډير اهم او غټ غټ ديني کتابونه چاپ کړي دي چې پکښې د احاديثو د مشهورو کتابونو لکه ترمذي شريف، مشکوٰة شريف، سنن ابن ماجه پښتو ترجمې، په تفاسيرو کښې د معارف القرآن پښتو ترجمه، آسان تفسير، هدايه، اسلامي فقه او نور ډير کتابونه شامل دي. مونږ د خپلو پښتنو ورونو ډير شکر گزاره يو چې هغوي دغه کتابونه خوښ کړل. د هغوي دغه خوښه، ډاډ گيرنه او د علم تنده مونږ دې خبرې ته هڅوي چې مونږ خپل دغه کار او مشن جارې وساتو او چې څومره زمونږ نه کيدے شي دومره علمي کتابونه پښتو ژبې ته منتقل کړو چې د پښتنو د علم تنده ماته کړو انشاء الله تعالیٰ. هم په دغه سلسله کښې دا اداره دا خل خپلو پښتنو ورونو ته د پښتو يوه ډکشنري د

## "تاج اللغات پښتو"

په نوم وړاندې کوي. اميد دے چې زمونږ د نورو مطبوعاتو په شان به دا کوشش هم زمونږ محترم لوستونکي خوښ کړي.

ډکشنرۍ مرتب کول يو گران او محنت طلب کار دے، دا د ډير کړاؤ، زيار او

پام لرنې متقاضي وي. مونږ په دې دکشنرۍ کښې تر خپله وسه زيار ايستلے دے چې زيات نه زيات لغات راواخلو خو بيا هم انسان عاجز دے که څه ټکي (الفاظ) زمونږ نه پاتې شوې وي نو د هغې د قدرمنو لوستونکو نه بخښنه غواړو. که د املا څه تيروتنې يا سهوې شوې وي کومه چې د بشريت تقاضا ده نو د هغې دپاره هم معذرت خواه يو او ګرانو لوستونکو ته خواست کوؤ چې که د املا څه غلطي د دوی په نظر راغلې نو مونږ ته دې په ګوته کړي چې په راتلونکې ايډيشن کښې مونږ د هغې تصحيح وکړې شو.

ضياء الدين

تاج کتب خانه قصه خواني پېښور

**ا** : الف، د پښتـــو ژبـــې د حروف تهجي ورومبے حرف چې د ابـجدو په حساب ئ قيمت يو( ا ) دے .

**آب** :اوبـهٔ، خـوله، اوښکې، عرق. عزت ، حيا، قدر،

**ابا** : پـلار، پلار ته د خطاب کولو په وخت وئيلے شي.

**ابابيل** : اصـل معنيٰ ئ ډله، ټولے او سيل ده او يو خاص مرغۍ توتکرے، توتکے معنيٰ ئ غلط العام ده.

**اباد** : جوړ، ودان، هغه کال چې بارانونه پکښې ډير وي.

**ابادي** : د سـړو شـمير، کـلـے، بـانـډه. سـو کـالـي، ښيرازي.

**اباسيند** : د سيندونو پلار، ابـاسيـن ، د پښتـنـو په علاقه کښې د يو لوے سيند نامه.

**ابـائي** : پـلار نيـکـهٔ سـره متـعـلـق، د پـلرونو او نيکونو سره متعلق.

**ابهاشي** : اوبــهٔ نوستل، د اوبـهٔ خـور په معنيٰ مستعمل دے.

**ابتداء** : شـروع، آغاز، اول سر، بنياد.

**ابتـر** : اوتــر، پــريشـان. ميـرات، بـې خويه . غريب، خوار . ناقص، خراب.

**ابتلا** : آزمائش، ازميښت.

**ابتـه** : حبـطـه، فـضول، بې خـايـه، گـنده، خراب، لړلے، پليت.

**ابجد** : جـمـل، د عربی د حــروف تهـجــي ښـکــاره کـونکي لفظونه، ابجد، هوز، حـطـي، کـلـمـن، سـعـفص، قـرشت ثخذ، ضظغ او هر يو عدد خپل خپل قيمت لري.

**آب حيات** : د ژوند اوبهٔ، هـغـه اوبـهٔ چـې د هغې متعلق مشهـوره ده چې په څښلو ئ ابدي ژوند حاصليږي.

**ابد** : نهٔ ختميدونکے وخت، تل تر تله، هميشه،

**ابر** : وريځ، وريځه.

**ابرار :** نیکان، پاک، پاکیزه، پاک خلق.

**ابره :** د استر متضاد، د غبرګې کپړې پورتنے مخ، غلاف. یقین، اعتماد، اعتبار.

**ابړی :** ډیر نرم څیز، اوبو کښې پوست شوے څیز، ډیر خوږین،

**آب زمزم :** د زمزمو اوبه، په مکه مکرمه کښې یوه خاص چینه ده چې د حضرت اسمٰعیل علیه السلام دپاره څرګنده شوې وه.

**ابشار :** هغه ځاے چې د غرۀ یا بل وچت ځاے نه اوبۀ ښکته راپریوځي. جړوبے، پارچاوے.

**ابلاغ :** پیغام رسونه.

**ابلق :** تور او سپین. چغر

**ابلن :** ابږن، اوبۀ لرونکے، نم لرونکے.

**ابنائے :** د اوبو هغه ځاے چې دوه وچې سره جدا کوي.

**ابواب :** بابونه، دروازې،

**آب و تاب :** شان و شوکت.

**آب و دانه :** روزي، رزق، خوراک څښاک.

**آب و هوا :** موسم، د یو ځاے طبعي حالت.

**ابهام :** هغه بیان یا تحریر چې وضاحت پکښې نۀ وي. غیر واضحه.

**ابۀ خور :** زمکه یا باغ اوبۀ کول، پټے سیراب کول.

**آبي :** د اوبو سره متعلق. آوي. د للمي متضاد، شین رنګ.

**ابیات :** شعرونه، د بیت جمع. کورونه، خونې.

**ابیاري :** اوبۀ خور کول، فصلونو ونو بوټو ته اوبۀ ورکونه.

**ابیانه :** د اوبو ټیکس. د اوبۀ خور په بدل کښې چې د حکومت له خوا کوم ټیکس

اخستے شي.
**ابی** : مور. مور ته د خطاب کـلمه. هرې مشرې ښځې ته د درناوي کلمه.
**اپلتې** : کنځل، بدرد وئیل، پـوچـې خبـرې، سپکـه خلـهٔ خوځول.
**اپوته** : النهه، اړولے، پړمخ.
**اپیم** : افیـم، افیون، یو نشه آور مـواد چې د خشخاشو د ډوډې نه حاصلیږي.
**اپیـمي** :پـه افیـمـو اموخته شوے، اپیم خور، تریاکي.
**اټانیز** : د نیمې روپۍ سکه. پنځوس پیسې.
**اټبار** : د اعتبار مفغن شکل. د خالي او ګل تر منځه ورځ. اتوار.
**اتحاد** : یو کیدنه. اتفاق.
**اتره** : هـغـه لوے د خاورو جـوړ ښانـک چې هغې کښې د ګانې نه ګرم شربت اچوي او چـکـی پـکښـې تـرې جوړوي.
**اترې** : د خبـرې تابع مهمل لکه خبرې اترې.
**اتش** : هور ، اور.
**اتشګیر** : هـغه څیزونه چې ډیر زر اور اخلي.
**اتشین** : اور سـره متعلق. د اور سره نسبت لرونکي.
**اتـصال** : یـو ځـاے کیدل، سـره لـګیـدل، وصلیدل.رسیدل.
**اتفاقاً** : تصادفاً، ناڅاپه.
**اتفاقي** : ناڅاپي، ناګهاني.
**اتن** : د پښتـنـو قـومي ګډا. شور، زوږ، غوغا.
**اتوار** : د خـالـي نـه پـس راتلونکې ورځ. اتبار.
**اتوب** : د اوړو جـوړ شوے یـو نـرم خـوراک. لیتۍ، بې مزې خوراک.
**اتهٔ** : له اوو نه زیات او د نهو نه یو کم.
**اتیا** : اویـا او لـس. له نوي نه لس کم. (۸۰)
**اټ** : وړو کـے دکان. د اټی

اسم تصغیر.
**اټاری** : برج، مورچې لرونکې برج. حفاظت ګاه.
**اټال** : معطل، ځنډېدلې، ایسار.
**اټالول** : ایسارول، معطلول. ځورند ساتل، له کاره ویستل.
**اټاله** : یرغل، حمله، پریشاني. په ځټله مال خرخول. دلی، ټوپ. د کور سامان، بیکاره شیزونه.
**اټالیدل** : ایساریدل، پاتې کیدل، معطل کیدل.
**اټ سټ** : وګورئ اټه سټه. خپلو کښې په څۀ خبره اتفاق. رعایت. صلاح.
**اټکل** : چل، هنر، ګمان، خیال، تخمینه، اندازه.
**اټکلول** : اندازه لګول، ګومان کول، خیال کول.
**اټکلیدل** : اندازه لګیدل، تخمینه لګیدل.
**اټکی** : د ما وروستی او د مکر وړومبی اتۀ ورځې چې یوه خاص هوا پکښې لګي.
**اټه** : اټېرن شوي تارونه، د تارونو ګونجی. میده اوړۀ، آټا.
**اټه سټه** : اټ سټ، برابریدۀ.
**اټې** : د تارونو ګونجی، چې د انګریزي 8 شکل ئ اختیار کړې وي.
**اټېرن** : هغه آله چې د سپنسو اټې پرې جوړیږي. څربنه.
**اټې وال** : د اټې خاوند، دکاندار.
**اټی** : وړوکې دکان، هټی.
**اثاله** : د کور سامان، کالي، اسباب.
**اثار** : د اثر جمع. نخښې.
**اثبات** : ثابتونه، دلیل راوړنه، سپیناوې،
**اثر** : نخښه، نښانه، نتیجه. رساله، کتاب.

**الري** : فائده من، اثر لرونکے. باتریا، پاګل، لیونے، دیوانه.
**اجابت** : قبلول، قبولیت. لوے بول.
**اجاره** : د جائداد فصل وغیره د یو خاص وخت دپاره د څۀ رقم په عوض کښې د اخستلو ورکولو ټیکه.
**اجاړ** : وران، برباد، ویجاړ. غیر اباد.
**اجازت** : منظوريِ، اذن، اجازه.
**اجازه** : منظوريِ، د تعویذ یا دم وغیره اوده.
**اجتماع** : غونډه، ګڼه، یو ځاے کیدنه.
**اجتناب** : ډډه کونه، ځان ساتنه، ځان بچ کونه.
**اجتهاد** : کوشش کول، لټون کول، سعي کول.
**اجداد** : د جد جمع. نیکۀ او د نیکۀ نه پورته پیړی.
**اجر** : عوض، بدل، ثواب.
**اجرت** : مزدوريِ، قیمت.
**اجرتي** : مزدور، هغه سړے چې په پیسو قتلونه کوي.
**اجړ** : مشرقي پښتونخوا کښې وسیدونکے یو قوم چې ښاروي ساتي.
**اجل** : د بل زمکه خوړونکے، برخه خور. د مرګ نیټه.
**اجمال** : د تفصیل متضاد، خلاصه، اختصار.
**اجناس** : څیزونه، شیان، اشیاء.
**اچاپت** : دکاندار نه په قرض د سودا راوړلو حساب.
**اچار** : په سرکه، د شړشمو تیلو یا شوملو کښې محفوظه کړې شوې سبزيِ یا میوه.
**اچول** : ګوزارول، ایښول، بهر ته راوښکل، دننه کول، ماده باندې نر خیژول.
**اچي** : د غوا ګانو یو قسم

چې په قد وړه او د پیو ورکولو مړنی وي.
**احاطه** : راګیرونه. د جیل بیله بیله حصه. غولې، صحن.
**احباب** : د حبیب جمع، دوستان، اشنایان، یاران. رفیقان.
**احتجاج** : په سختی سره د څهٔ خبرې یا کار نه انکار کول او د هغې خلاف اواز وچتول.
**احتراز** : ځان ساتنه، ځنګ کونه، ډډه کول.
**احترام** : تعظیم، عزت کول،
**احتساب** : حساب اخستل، جاج اخستل.
**احتلام** : په خوب کښې مني خارجیدنه، غسل فرض کیدل.
**احتمال** : امکان، امید، ګومان، شک.
**احتیاج** : اړتیا، حاجت، ضرورت.
**احتیاط** : خیال، فکر، پام.
**احد** : یو، بې شریکه. د خدایے پاک نوم.
**احساس** : په پنځو حواسو کښې له یو یا زیاتو نه کار اخستلو په ذریعه څهٔ څیز معلومول.
**احسان** : ښیګړه، نیکي.
**احقر** : د حقیر اسم تفضیل ډیر زیات سپک، د انکسار له وجې د ځان دپاره استعمالیږي.
**احکام** : قانون، دستور، آئین، روش.
**احمد** : ډیر زیات حمد کونکے. د رسول کریم صلي الله علیه وسلم نوم مبارک.
**احمر** : سور، سور رنګ.
**احمق** : ناپوهه، بې وقوف، نادان.
**احوال** : حال، حالت، د حال جمع.
**احول** : کانړے، کاږنګ،

چغر.

**اخ** : د څهٔ افسوسناکې او دردناکې پېښې په وخت بې اختیاره د خلې نه راوتونکې کلمه.

**اخبار** : د اسلامي شرعي اصطلاح کښې د رسول اکرم صلي الله علیه وسلم احادیث. هغه پرچې چې پکښې د مختلفو ځایونو خبرونه لیکلے شي. ورځپاڼه. د خبر جمع.

**اختتام** : خاتمه، پای، انجام. اخر.

**اختر** : د شوال په وړومبی او د ذي الحجه په لسمه ورځ د مسلمانانو د خوشحالی جشن چې وړومبے وړوکے او دویم لوے اختر نومیږي. ستورے.

**اختراع** : له ځانه نوے څیز پیدا کول، ایجاد کونه، دروغ جوړونه.

**اختصار** : خلاصه کونه، لنډونه.

**اختصاص** : خصوصیت. ځنې علمونو کښې خصوصي مهارت.

**اختلاط** : یو ځاے کونه، ګډونه.

**اختلاف** : مخالف کیدنه، د اتفاق متضاد.

**اختلال** : خرابوالے، خلل پیدا کیدنه.

**اخته** : مصروف، لګیا، اړم، مبتلا. خصي، هغه نر ځاروے چې تکولے شوے وي.

**اختیار** : وس، طاقت، قابو، خوښه، واک.

**اختیاري** : د خوښې، د مرضې، د خپلې طبعې.

**اخذ** : اخستنه، نتیجه ایستل، نیول.

**اخر** : په نتیجه کښې پاتې، وروستو، حد، ژی. قیامت، اخرت.

**اخراج** : ویستنه، لرې کونه، خارجول.

**اخـــراجول** : خـــارجـول، ويستل،
**آخرت** : قيامت، هغه دنيا، هغه عالم چې پس له مرګه به پکښې جزا او سزا ورکولے شي.
**اخـري** : وروستے، اخر سره متعلق.
**اخستل** : پورته کول، په لاس کښې وچتول. په قيمت تر لاسه کول. غوره کول، خوښول. خرئيل، په قينچې لرې کول.
**اخښلے پخلے** : اوړهٔ اخښنه او روټې پخونه.
**اخښنه بخښنه** : د بيليدو په وخت يو بل ته ورکړي راکړي بخښل.
**اخطار** : ويرول، تهديد، په غوږ وهنه.
**اخلاص** : د زړهٔ صفائي، بې غرضه دوستي،
**اخـلاصـي** : سپين زړے، اخلاص من.
**اخلاق** : د خلق جمع، ښهٔ خويونه او عادتونه.
**اخوا** : د هـغـه خوا مخفف، په هغه طرف.
**اخوا ديخوا** : اپله دې پله، هغه خوا دغه خوا.
**اخــوت** : وروروڵــــي، وروري.
**اخور** : د څاروؤ د ګياه د خوراک دپاره جوړ شوے ځاے.
**اخون** : د جـومـات اسـتـاذ، معلم، شاعر.
**ادا** : ناز، قينج، مکيز،
**اداب** : د ادب جمع.
**ادارت** : د اخبار يا رسالې ايډيټري.
**اداره** : دفتر. کار کونکے ټولے، څانګه، شعبه.
**اداريه** : د اخبار يا رسالې سرمقاله چې د ايډيټر له خوا ليکلے شي.
**اداکار** : د ډرامې يا فلم کار کونکے. ايکټر.

**ادب** : حیا، پرده. تربیت، پالنه. تهذیب، سلیقه. نظم و نثر. د مشرانو د درجې خیال ساتل.

**ادبیات** : د ادب علم، لیکلي شوي کتابونه. د ادبي جمع.

**ادراک** : پوهه، قابلیت، فهم، درک لګونه.

**ادغام** : د یو جنس دوه توري په خپلو کښې یو ځاے کونه.

**ادل بدل** : بې نظمه، بې قاعدې، ګډوډ. د څیزونو یو تر بله تبادله، ورکړه راکړه. د نرانو تر منځه جنسي تبادله.

**ادم** : بنیادم. د ادم ځوے.

**ادمیت** : انسانیت، سړیتوب.

**ادنيٰ** : د اعلیٰ متضاد، لږ، کم، بې قیمته، د کمې درجې والا.

**ادو بدو** : پړسیدلے، تنډ، ډډېدلے، د زهرو په وجه پړسیدلے.

**ادوم** : د زنګون نه تر مغانې پورې برخه. پتون. ورون.

**ادیب** : استاذ. د ادب خالق. ادب تخلیق کونکے.

**ادیره** : قبرستان، مقبره،

**ادینه** : د زیارت ورځ. د جمعې ورځ.

**ادې** : د پلار یا د مور مور، نیا. بوډۍ ښځې ته د خطاب تورے.

**ادیله** : نیمه پیسه. د تیرې زمانې یوه معمولي سکه.

**اډانه** : تکیه، اعتماد. چت یا دیوال ته د اړم لګولو دپاره استعمالیدونکې ستن.

**اډرقے** : اړړمے، د خوړلو ښبنلو نه پس د کومې نه په خلې راوتونکے اواز.

**اډه** : د لارو موټرو د ودریدو ځاے. د ترکاڼ د رندې لاندې د کار تخته. د دمې ځاے. د بدکارۍ

ځاے. ډډه، اړخ.
**اډي** : هغه غونډاري چې په مرى كښې پيدا كيږي.
**اډى** : د زمكې يوه حصه. هغه زمكه چې كرونده كړ ئ د بچو په نامه خلاصه كړي.
**اذان** : د مانځهٔ دپاره د رابللو اواز. بانګ،
**اذن** : اجازت، اجازه، رضا، د دم درود اجازه.
**اذيت** : تكليف، كړاؤ.
**اراده** : د انتخاب اختيار او فيصلې كولو قوت او صلاحيت او د هغې استعمال.
**ارام** : د حركت نه سكون ته منتقلي. د حركت متضاد. قلارے.
**ارائش** : ډول، سينګار، ښائسته كونه.
**ارباب** : د رب جمع، پالونكے. د مومندو او خليلو داؤدزو او كاسيانو د خانانو لقب.
**اربشه** : اوربشه. د اوړي مشهوره غله.
**اربوز** : د ځناور پوزه خلهٔ، د بنيادم څهره.
**ارت** : پلن، پراخ،
**ارتداد** : له اسلامه اوړيدنه، د مسلمان كيدو نه پس بيا كافر كيدل.
**ارتعاش** : رپيدل، له غصې يا كمزورى نه د لاس او پښو رپيدل.
**ارتقا** : درجه په درجه ترقي كول، په بره ختل.
**ارتكاب** : په يوه اراده عمل كول. ګناه يا جرم كول.
**ارتول** : پراخه كول، پلنول، وسعت وركول، وسيع كول.
**ارتينه** : ښځه، عورته،
**ارتيدل** : پراخيدل، پلنيدل، وسعت اخستل،
**ارټ** : د كوهي نه د اوبو راويستلو دپاره جوړه څرخى

چې لوټکي پکښې لګيدلي وي او عام طور سره د ښاروؤ په ذريعه ګرځول شي.

**اردو** : د پاکستان سرکاري ژبه. لښکر، فوځ.

**ارزان** : کم قيمته. د ګران متضاد.

**ارزاني** : د قيمتونو کمے، د ګراني ضد.

**ارزو** : خواهش، ارمان، تمنا.

**ارزومن** : ارزو لرونکے، خواهش لرونکے.

**اړړمے** : اړرقے، د خوراک نه پس د خلې نه راوتونکے اواز.

**ارسال** : استول. ليږل.

**ارشاد** : حکم، هدايت، لار ښنينه.

**ارغشے** : خراشکے، اخرشے، بلغم.

**ارغند** : د کوټو د بندونو هډوکي.

**ارغوان** : د سور رنګ يو ګل.

**ارغی** : کُنه، سوپره، مقعد.

**ارګجه** : ګډوډ، مخلوط، د يو مرکب عطر نوم.

**ارګوډے** : د يوې لوبې نامه چې پکښې يوه پښه په لاس ونيسي او په بله پښه په ټوپونو ځي.

**ارلګ** : چورلټ، بيخي له مونډه. له بيخه، ارلغ.

**ارمان** : د خواهش د نهٔ پوره کيدو په نتيجه کښې د محرومی احساس،

**ارمړ** : د پښتنو د يوې قبيلې نوم.

**ارمغان** : سوغات، تحفه.

**ارمولے** : د ماشومانو يوه بيماري. اورمولے.

**ارمونے** : حرامونے، حرامي. د زنا نه پيدا شوے.

**ارواح** : د روح جمع، اروا، روحونه.

**اروارې** : تورې دانې لرونکے يو بوټے چې د غنمو

په فصل کښې کېږي.
**ارومرو** : خامخا، ضرور.
**اره** : د تر کانانو د لرګي پريکولو غاښ لرونکې آله، ځره.
**ارهر** : يو قسم بوټے چې د غنمو جوارو ګير چاپيره په غارو کرلے شي او د خشاک دپاره استعماليږي. جينجر، جينجن.
**اريان** : بيوسه، خوار، غريب، محتاج. حيران. هک پک.
**اريږ** : د ارټ د بياستو تر منځه لرګے.
**اريړه** : هليله، يوه ميوه چې په دارو کښې پکاريږي.
**اريومے** : رومبي، د بنيادم له نامهٔ لاندې ويښتهٔ. فرض.
**ارام** : سپين ستر ګے، بيباکه، شيطان.
**ارپي** : سينګار بکس. د کالو د ايښولو صندوقچه. يوه دروازه لرونکے کور.
**ارټ** : په منډۍ کښې د مال د مزدورۍ ارت يا دړ. دستور، د منډۍ کار.
**اړتاؤ** : پريوتے، نسکور، غورځيدلے.
**اړتاوک** : بې فکره، کاواک.
**اړتو پړتو** : هغه دغه، بې مطلبه، بې معنې، ټال متول.
**اړتي** : د ارټ کار کونکے، په اجرت، کميشن، فيس وغيره د خلقو او سوداګرو مالونه خرڅونکے.
**اړخ** : خوا، طرف، پلو، ډډه، د ترخ او ډوډي تر منځه ځاے. احتياط، ځان لرې ساتنه.
**اړخيز** : طرفونه لرونکے، اړخدار.
**اړخي** : د غرهٔ لمن کښې په ترخ زمکه، د غرهٔ پټے.
**اړکے** : ژغونډے، د اندرپايې پاټکے، اړيکے، د پوړۍ پايه. اړم، د رباب غوږ.

ے

**اړول** : لانديِ نه بانديِ يا بانديِ نه لانديِ کول، په بل مخ کول، تاوه ول، د يوې لارې نه په بله ګرځول، يوې کول، التهه کول، اپوتهه کول.

**اړونج** : ستن، تمبه، اساس، بنياد، ويخ، پيچيدګي.

**اړنګتي** : د پهلواني په اصطلاح کښې يو داؤ چې پکښې د حريف د پښو تر منځه پښه ايښوے شي او حريف راغورځولے شي.

**اړوب** : ليتهي، اتوب، نرمه خته. چيکړ.

**اړوپړ** : نښتے، لکه د پړي يو بل سره نښتے.

**اړوپيخ** : تاؤ راتاؤ، اړوپړ.

**اړم** : لګيا، مشغول، اخته، مصروف. هغه وسپنه يا لرګے چې د دروازې شاته د مضبوطۍ دپاره ايښوے شي.

**اړامول** : په جنګ کول، لګيا کول، مصروفول، انډولول،

**اړاميدل** : لګيا کيدل، اخته کيدل، مشغوليدل، جنګيدل،

**اړه** : خواست، غوښتنه، ضرورت، حاجت، د ستانه دارو يا کسب ګرو د فصل په سر عوضانه.

**اړي** : د تګ په وخت د ښاروي اړوپيخ، د تللو په وخت ورانے کول سم نۀ تلل.

**اړيمار** : اړيژن، اړي کونکے، بار کښې کوږ لرګے.

**اړيکے** : تړون، رشته، ملګرتيا، هغه لرګے چې د ارټ په چکر کښې لوتکے يا دروازې ايساروي.

**اړى** : پيارمه، پچاړى.

**اړے ګړے** : بد امني، افراتفري، بد نظمي، شور و غوغا، ګړ بړ، هله ګوله.

**ازاد** : د غلام ضد، پخپله تهو کيدلے. خودرو، اصيل، د خپل اختيار خاوند، خلاص، صفا، بې تکلفه.

**ازادول** : ازادي ورکول، له قيده خوشې کول خلاصول، پريښودل.
**ازادي** : خلاصې، رهائي، د قيد و بند يا د بل چا د واک نه وتنه، بې تکلفي.
**ازار** : رنځ، کړاو، تکليف، ضرر. مرورتوب، خفګان. وبال، ښيره.
**ازاربند** : پرتوغاښ. باګه.
**ازارول** : تکليف ورکول، عذابول، کړر
**ازانګه** : انګازه، راتمبيدلې اواز.
**ازدحام** : ګڼه ګوڼه، هجوم.
**ازدواج** : وادهٔ کونه، جوړه کيدنه.
**ازرده** : غمژن، خفه، غمزده.
**ازغکې** : يو ازغن بوټې چې ډير تريخ وي او ځنې دارو ګانو کښې پکاريږي.
**ازغن** : ازغي لرونکې، د ازغو نه ډک،
**ازغې** : د بوټي يا ونې په تنه، پاڼه يا څانګه راختلې د ستنې په شان تيرهٔ حصه. د مهي لشه.
**ازل** : د ماضي هميشګي چې ابتدائي حد ئ نهٔ وي.
**ازمايل** : تجربه کول، ازميښت کول.
**ازموده** : تجربه کړې شوې، ازمايلې.
**ازميښت**: ازمائش، تجربه، امتحان.
**اس** : کلک سومونه، ايال او وړده لکې لرونکې مشهور ځناور چې په جنګونو کښې پکاريږي. د سورلی، ټانګو او ګاډيو دپاره استعماليږي.
**اساس** : بنياد، رده، بنسټ.
**اساطير** : قيصې، زړې افسانې.
**اساليب** : د اسلوب جمع، طريقې، طرزونه،
**اسامي** : نام، نومونه، خلق، دهقان، کاشتکار، سړې،

اخستونکے، گاک، خریدار، عهده، نوکري، مالدار، امیر.

**اسان** : د گران مشکل او سخت متضاد، سوکه.

**اسانتیا** : اسانوالے، سهولت، اساني.

**اسانول:** سوکه کول،

**اسانیدل** : سوکه کیدل، اسان کول،

**اسائش** : ارام، سوکالي،

**اسباب** : د سبب جمع، وجوهات، د ضرورت سامان، خاص طور د کټ بسترې سره متعلق، عضو تناسل.

**اسباق** : د سبق جمع، د کتاب هغه حصې چې هره ورځ ئ لوستونکے په لوستلو وړالدې ځي.

**اسپتال** : هسپتال، هغه ځاے چې په کښې د رنځورانو علاج کیږي.

**اسپند** : توره دانه، سپند، سپیلنے. یو بوټے چې د نظر ماتولو دپاره په اور اچولے شي.

**اسپنه** : وسپنه، آهن، په دهاتونو کښې د ټولو نه زیات استعمالیدونکے سخت دهات.

**اسپه** : یو مرض چې د پوزې نه پکښې وینه راځي. یو مرض چې پکښې په بدن دانه راخیژي. حیض. د اس مرنث.

**استاځے** : پیغام راوړونکے، پیغام رسان، قاصد.

**استاد** : ښنیونکے، معلم، هغه سړے چې بل چا ته څۀ علم یا کسب ښیي.

**استاذ** : وګوره استاد.

**استانه** : د استان سره متعلق، د وسیدو ځاے، د پیر د کښیناستو ځاے. پیر، فقیر.

**استبداد** : ظلم، جبر، غاصبانه عمل، مطلق العناني.

**استثنيٰ** : د یوې عامې قاعدې یا د قانون د نفاذ نه ځوک بري کول، بیلول.

**استحصال:** طلب د حصول، اخستنه، حاصلونه، په زور اخستل.

**استحقاق** : طلب د حق، حق غوښتنه.

**استحکام** : مضبوطیا، پوخ والے،

**استخاره** : د خیر طلب کول، فال اچونه، په شرعي اصطلاح کښې د یو کار د کیدو او نهٔ کیدو په باب کښې په خاصه طریقه غیبي اشاره غوښتل.

**استخراج** : راوتنه، خارجونه، بیلیدنه، تفریق کونه.

**استخلاص** : د خلاصولو کوشش کونه، خلاصیدنه، نجات موندنه.

**استدراک** : پوهیدنه، موندنه.

**استدعا** : غوښتنه کونه. بلنه.

**استدلال** : دلیل، ثبوت، دلیل راوړل.

**استر** : د کپړې د مخ متضاد، د غبرګې کپړې لاندې طرف.

**استراحت** : سکون، ارام، راحت.

**استري** : د وسپنې یوه آله چې ګرمه کړې شي او په جامو ئ ګرځوي او د جامو ګونجې پرې هواروي.

**استسقاء** : اوبهٔ غوښتنه، باران غوښتنه، یو مرض چې پکښې مریض په اوبو څښلو نهٔ مړیږي. د باران د غوښتلو مونځ.

**استطاعت** : وس، شته مني، دولت، حیثیت.

**استعاره** : په سوال غوښتنه، یو لفظ د خپل اصلي مفهوم په ځاے په بله معنيٰ کښې داسې استعمالول چې د اصلي او مرادي معنو تر منځه د تشبیه وغیره تعلق وي.

**استعانت** : مدد او کمک غوښتنه، مرسته غوښتنه، امداد غوښتل.
**استعجاب** : حيرانيدل، په تعجب کښې پريوتل.
**استعداد** : قابليت، توان، صلاحيت، قدرت، وس.
**استعفیٰ** : د معافۍ طلب کول، په يو منصب د کار نهٔ کولو اراده ظاهرول.
**استعمار** : ودانې غوښتنه. پردے ملک په خپل لاس کښې راوستل، د بل ملک په وسائلو قبضه کول.
**استعمال** : په کار راوستل، چلونه.
**استغاثه** : مدد غوښتنه، امداد غوښتنه، فرياد کونه، د چا خلاف په عدالت کښې دعویٰ کول.
**استغفار** : بخښنه غوښتنه، توبه کونه.
**استغراق** : په څهٔ فکر يا خيال کښې ډوبيدنه، محويت، محوه کيدل.
**استغنا** : بې نيازي، بې پروائي، دولت مندي.
**استفاده** : فائده حاصلول، فائده، نفع، ګټه.
**استفتا** : فتویٰ غوښتنه، مسئله پوښتنه.
**استفسار** : پوښتنه، تپوس کونه، معلومونه.
**استفهام** : ځان پوهونه، سوال پوښتنه، سواليه علامت.
**استقامت** : ودريدنه، ټينګوالے، قيام.
**استقبال** : د چا مخې ته وتل، راتلونکې زمانه، هر کلے.
**استقلال** : خپلواکي، د يو ملک د بل ملک نه ازاديدل.
**استکار** : کاريګر، ماهر، دستکار، کسب ګر، هنرمند
**استمرار** : هميشه توب.
**استنباط** : را ايستل، اخذ

کول، حاصلونه.
**استنجا :** د ضروري حاجاتو نه پس اودس کونه.
**استوار :** ټینګ، مضبوط، کلک، محکم.
**استوګن :** وسیدونکے، استوګے.
**استوګه :** دیره نیول، وسیدل، بودوباش اختیارول، میشته کیدل.
**استوګے :** وسیدونکے، استوګه کونکے.
**استهزا :** پشاړې، ټوقې، ملنډې،
**اسد :** زمرے، مزرے، د اسمان په دولسو برجونو کښې یو برج چې شکل ئې د زمري په شان وي. د شمسي کال د یوې میاشتې نوم.
**اسرار :** د سِر جمع، رازونه.
**اسراف :** بدخرخي، عبث لګښت، فضول خرچي.
**اسره :** طمع، توقع، دریغ، صرفه.
**اسقاط :** سخات، هغه صدقه چې د مړي د جنازې نه پس ور کیدې شي. د حمل زیان، حمل ضائع کول.
**اسک :** پچه، قرعه، هسک،
**اسلاف :** پخواني، وړومبني، د پیرۍ مشران.
**اسلام :** هغه دین چې حضرت محمد صلي الله علیه وسلم او نورو نبیانو د الله له طرفه راوړے دے. د خدائے پاک غوره کړے دین. محمدي دین،
**اسلحه :** وسله، د جنګ سامان، توره، ټوپک، تماچه، توپه وغیره.
**اسلوب :** طرز، طریقه، انځور،
**اسم :** نوم، د کس ځائے یا څیز نوم.
**اسمان :** سما، د زمکې د پاسه ښکاریدونکے د شین رنګ چت. شاعرانه

اصطلاح کېښې بخت.
**اسناد** : سندونه، تصدیقونه، دلیلونه.
**اسو** : د بکرمي کال شپږمه میاشت، اسوج چې د عیسوي کال ستمبر او اکتوبر کېښې راځي.
**اسوده** : هوسا، موړ پټ، په ارام، په ښهٔ حالت کېښې، خوشحاله.
**اسویلے** : آه، د زړهٔ د رنځ د حسرت د اظهار اواز، خلهٔ پرانستل او هوا خارجول.
**اسهال** : دستونه، نس ناسته،
**اسیا** : ژرنده،
**اسیر** : قیدي، بندیوان، بندي،
**اش** : ښورروا، کیر، لیتی، د اوربشو یا دالو اوبهٔ. انګولے.
**اشا** : د ویري یو فرضي څیز، اسیب.
**اشارت** : د سر سترګو لاس یا ګوتې په ذریعه د خپل مقصد څرګندونه. اشاره، کنایه،
**اشاره** : وګورئ اشارت، په مانځهٔ کېښې د تشهد وئیلو په وخت ګوته وچتونه، لمسون،
**اشاریت** : د فن او ادب یوه اصطلاح، ایما، رمز،
**اشاریه** : د کتابونو هغه ضمیمه چې پکښې د کتابونو، لیکونکیو، ځایونو وغیره فهرست ورکړے شوے وي.
**اشاړئ** : زردالو. یوه میوه. وچه حرماني،
**اشاعت** : شائع کول، ولس کېښې څهٔ خبره خوررول. کتاب یا رساله چاپ کول،
**اشباه** : شبه، شک.
**اشتباه** : ګمان، شک، شبه،
**اشتباهي** : غیر یقیني، شکي.
**اشتر** : د اس د تانګ تسمه.
**اشتراک** : ګډون کونه، شرکت، د اخبار یا رسالې

خریدار کیدل.
**اشتراکیت** : هغه سیاسي او معاشي نظام چې مقصد ئ د کارل مارکس، اینګلز او لینن د فلسفو د لاندې یوه غیر طبقاتي معاشره او د کمیونسټ پارټۍ اقتدار راوستل دي.
**اشتعال** : بلونه، د اور لمبه زیاتول، په جوش او غصه کښې راوستل. او دهٔ جذبات راپارول.
**اشتغال** : مشغولیدنه، لګیا کیدنه.
**اشتقاق** : د یوې کلمې نه بله کلمه راوښکل.
**اشتمال** : شاملول، د زمکو د وړو وړو ټوټو یو ځاے کونه، د محکمه مال اصطلاح.
**اشتها** : خواهش، رغبت، لوږه.
**اشتهار** : خرګندونه، شهرت، هغه لیکلے کاغذ چې د هغې په ذریعه د څهٔ څیز مشهورتیا کولے شي.
**اشتي** : صلح، دوستي، صلح جوئي،
**اشخاص** : د شخص جمع، شخص د تن، فرد، کس مذکر او مؤنث دواړو دپاره وئیلے شي.
**اشر** : بلندره، بګره، بسکره، ټینګه، د یو کار دپاره جمع کیدنه، په شریکه کار کول.
**اشراف** : نیکان د شریف جمع.
**اشرفي** : د سرو زرو یوه سکه چې تقریباً شپږ ماشې به وه.
**اشر ګندے** : اشر بانړے. په اشر کښې شریک تن، اشر باندے.
**اشعار** : منظوم کلام، شعرونه، د شعر جمع.
**اشک** : هغه اخښلي اوړهٔ چې د وریږو د دیګ خلهٔ پرې بندولے شي.

**اشنا** : د بیګانه متضاد، پیژندګلو، دوست، یار، هغه نر یا ښځه چې بل نر یا ښځې سره جنسي محبت کوي.

**اشنائي** : پیژندګلي، یارانه، دوستانه.

**آشیانه** : جاله، ځاله، د وسیدو ځاے.

**اصحاب** : د صاحب جمع الجمع. ملګري. د رسول الله صلي الله علیه وسلم په زمانه کښې مسلمانان شوي او د ایمان په حالت کښې وفات شوي کسان.

**اصرار** : تکرار، ټینګار، تاکید.

**اصراف** : صرف کول، خرڅ کونه.

**اصطبل** : طویله، طبیله، د اسونو د ساتلو ځاے.

**اصطلاح** : د یوې علمي یا فني ډلې له خوا یو لفظ د خپل اصل مفهوم نه بغیر په نورو معنو کښې استعمالونه.

**اصل** : بیخ، بنیاد، نوغے، جرړه. نسب، منبع، سوچه.

**اصلاح** : صحیح کونه، سمونه، نقص لرې کونه.

**اصلي** : سوچه، د نقلي ضد.

**اصلیت** : حقیقت، خالص توب.

**اصناف** : قسمونه، د صنف جمع.

**اصنام** : د کاڼي بتان، د صنم جمع. معشوقې شاعرانه اصطلاح.

**اصوات** : اوازونه، د صوت جمع.

**اصول** : د اصل جمع، قاعدې، قانون، آئین، لار، طریقې.

**اصیل** : د مریي او سرکش متضاد، اموخته شوے، د ښهٔ نسب سره تعلق لرونکے، سوچه، درونده، شریف.

**اضافت** : زیاتونه، پورې کونه، نسبت کونه، یو څیز بل سره نښلونه.

**اضافه** : زیاتے، ترقي،
**اضحیٰ** : د لوے اختر قرباني،
**اضداد** : د ضد جمع، متضاد څیزونه.
**اضطراب** : پریشاني، تراره، بې ارامي. ناقلاري.
**اضطرار** : بې قراري، بې اختیاري،
**اضلاع** : د ضلع جمع. طرفونه، څنو ملکونو کښې د یو جغرافیائي وحدت نوم.
**اطاعت** : فرمان برداري. پیروي.
**اطراف** : طرفونه، اړخونه، لرې ځایونه، د طرف جمع.
**اطفال**: وارۀ، ماشومان، ناپوهه، د طفل جمع.
**اطلاع** : خبر، اعلان، خبردارے.
**اطلاق** : د یوې معنې په یو لفظ یا کار برابریدنه، د یو قانون په یو عمل برابریدنه.
**اطمینان** : تسلي، دلاسه، صبر، ډاډ.

**اطوار** : روشونه، طور، طریقي. د طور جمع
**اطهر** : ډیر زیات پاک، ډیر صفا، پاکیزه.
**اظلم** : ډیر ظالم، انتهائي ظالم.
**اظهار** : ښکاره کونه، بیان ورکونه، زباني بیان، ظاهرونه.
**اعاده** : دوباره کونه، سر دوباره کول.
**اعانت** : حمایت، مدد، امداد، کومک.
**اعتبار** : ویسا، یقین، باور، قیام، ثبات، لحاظ.
**اعتدال** : میانه روي، نۀ کمي نۀ بیشي. برابري.
**اعتذار** : عذر غوښتنه، بخښنه غوښتنه.
**اعتراض** : ګوتــه نیونه، شک کونه، نکته چیني کونه، عیب راوښکنه.
**اعتراف** : ذمه واري مننه، اقرار کونه، تسلیمول،
**اعتقاد** : عقیده ساتنه، یقین

لرنه، باور کونه.
**اعتکاف** : د روژې د میاشتې په اخري لسو ورځو کښې د عبادت دپاره د خلقو نه بيل په جماعت کښې کښيناستل.
**اعتماد** : ډاډ، ويسا، يقين، اعتبار.
**اعتنا** : پام کونه، توجه کونه.
**اعجاز** : عاجز کونه، معجزه، کرامت، کرشمه،
**اعجمي** : غير عرب، چاړا، د عجم سره منسوب.
**اعداد** : شمير، شمار، هندسې، عددونه، د عدد جمع.
**اعراب** : هغه نالي چې د زيمناکو زمکو نه د زيم لرې کولو په غرض کنستلې شوې وي. ايراب.
**اعراب** : د حرفونو حرکات، زير، زبر، پيش وغيره.
**اعزاز** : عزت، مرتبه، رتبه.
**اعشاريه** : هغه نقطه يا د "ء" نښه چې د صحيح هندسې نه پس د کسر ښکاره کولو دپاره لګي.
**اعصاب** : پلې، ريشې د عصب جمع.
**اعضاء** : اندامونه، غړي، د عضو جمع.
**اعظم** : ډير لوے، د الله پاک يو نوم.
**اعلاميه** : د څۀ واقعې په باره کښې اطلاع خوريدنه. نشر شوے اعلان.
**اعلان** : څر ګندونه، ظاهروَنه، په جار خبر ور کونه.
**اعليٰ** : ډير وچت، زيات ښۀ ،د ادنيٰ متضاد،
**اعمال** : کړۀ، کارونه، د عمل جمع.
**اعميٰ** : ړوند، نابينا.
**اعيان** : مشران، غټان، بزرګان.
**آغا** : بادار، څښتن، خاوند، ښاغلے، محترم، پلار ته د خطاب اواز،
**آغاز** : شروع، ابتدا،

**اغراض** : حاجتونه، غرضونه، مقصدونه.

**اغراق** : مبالغه کونه، ډوزې ويشتل.

**اغستل** : اغوستل، بدن په جامو يا بل څۀ پټول.

**اغلاط** : تيروتنې، خطاوې، غلطې،

**اغلام** : هلکانو سره بد فعلي کونه، بچه بازي، هلک بازي،

**اغلب** : غالب تر، قوي،

**اغماض** : ستر کې پټول، بې پروائي کول.

**اغوا** : لمسونه، د لارې نه ايستنه، پټونه،

**اغوستل** : بدن په څۀ کپړه وغيره پټول.

**اغوستن** : د اغوستلو جامې يا بل کوم څيز.

**اغيار** : پردے، رقيب، دشمن. د غير جمع.

**اغير** : بد هضمي، د خيټې خرابي.

**اغيرل** : بد هضمه کول، کرکه کول،

**اغيزه** : اثر، تاثير.

**افات** : مصيبتونه، بلاګانې، تکليفونه، د افت جمع.

**افاده** : فائده رسونه، څرګندونه، ښکاره کونه،

**افاديت** : فائده رسونه، فيض رسونه.

**افاقه** : له بيهوشی يا رنځ نه ښۀ کيدل.

**افاقي** : عالمي، وسيع د افاق سره متعلق.

**افت** : مصيبت، تکليف، د خداے قهر،

**افتاب** : نمر، لمر،

**افتاح** : پرانسته، لاس پورې کول.

**افتخار** : فخر کونه، نازيدنه.

**افترا** : تور پورې کول، تهمت لګول.

**افتراق** : بيلتون راوستل، جدائي راوستل.

**افراد** : وګړي، خلق، کسان، د فرد جمع.
**افراط** : د حده وتل، زيات والے، د تفريط متضاد.
**افرين** : شاباش،
**افزائش** : ډير والے، زيات والے، کثرت.
**افزون** : ډير، زيات،
**افسانوي** : غير حقيقي، د افساني سره متعلق.
**افسانه** : قيصی، د حقيقت ضد، ادبي اصطلاح کښې وړه قيصی.
**افسر** : تاج، مشر، سردار، قرقره.
**افسرده** : خفه، پريشان، سوړ، مړاوے.
**افسوس** : د غم، ارمان او حسرت کلمه.
**افسون** : دم، سحر، جادو، منتر.
**افشان** : د مقيش يا ګوټې وړې وړې ذرې چې ښځې ئ د ښائست دپاره په تندي لګوي او په ويښتو ئ دوړوي.
**افضل** : ډير غوره، بهتر، فضيلت لرونکے.
**افطاري** : د روژې ماتولو څيزونه، روژه ماتونه.
**افعال** : کارونه، د فعل جمع.
**افغان** : پښتون.
**افق** : کناره، غاړه، هغه ځاے چې اسمان او زمکه يو بل سره لګيدلے ښکاري.
**افکار** : فکرونه، خيالات، د فکر جمع.
**افلاس** : مفلسي، غريبي.
**افلاک** : اسمانونه، د فلک جمع.
**افواج** : فوځونه، لښکرې، د فوج جمع.
**افيم** : ترياق، اپيم، افيون، د خشخاشو د ډوډې د پيو نه حاصليدونکې نشه آور مواد.
**افيمي** : افيم خوړ، هغه څوک چې افيم خوري.
**اقارب** : خپلوان، رشته

داران.
**اقامت** : استوګه، تيکاؤ، قيام، سکون.
**اقبالي** : د اقبال سره متعلق، د جرم يا ګناه اعتراف کونکے.
**اقتباس** : انتخاب، د چا د نظم يا نثر عبارت نقل کونه.
**اقتدار** : وس، واک، اختيار، قدرت، طاقت، حکومت.
**اقتدا** : متابعت کول، وروستو تلنه، پيروي کول.
**اقتصاد** : وټه، ميانه روي.
**اقتصاديات** : هغه علم چې په هغې کښې د ملک د مادي پيداوار او د هغې مناسب خرڅ په باب کښې تعليم ورکولے شي. معاشيات.
**اقدار** : معيارونه، اندازې، د قدر جمع.
**اقدام** : ارتکاب، وړاندې تلنه، شروع، اراده، قصد.
**اقدس** : ډير پاک. نهايت پاک.
**اقرار** : منـنه، په ژبه وئينه.
وعده، شرط.
**اقرب** : خپل، عزيزان، رشته دار.
**اقربا** : خپلوان، رشته داران.
**اقساط** : قسطونه، ټوکرې، حصې، کشتونه، د قسط جمع.
**اقسام** : قسمونه، د قسم جمع.
**اقل** : ډير لږ، ډير کم.
**اقليت** : کمے، لږوالے. د اکثريت متضاد.
**اقليم** : ملک، ولايت، د زمکې پنځو حصو کښې هر يو ته اقليم وائي.
**اقوال** : خبرې، مقولې د قول جمع.
**اقوام** : قومونه، فرقې، ګروهونه د قوم جمع.
**اکابر** : غټان، مشران، د اکبر جمع.
**اکاله** : يو ځل قلبه کونه، زمکه يو ځل اړول.

**اکبر** : ډیر لوی. د الله پاک نوم.

**اکتساب** : زده کونه، کسب کونه، خواري کونه، لاس ته راوړنه.

**اکتفا** : کافي کیدنه، بسنه، بس، بس والی.

**اکثر** : زښت ډیر، زیات.

**اکثریت** : د اکثر سره متعلق، زیاتوالی.

**اکرام** : انعام، میلمستیا، عزت ور کول، احترام.

**اکر بکر** : کړۀ وړۀ، د مخ کاسه، خدوخال.

**اکسیر** : کیمیا، هغه دارو چې د یو مرض حکیمي علاج وي.

**اکو بکو** : اوتې بوتې، بکواس.

**اکوړ** : غوز، چرمغز، یوه میوه، اغز.

**اګاري** : هغه بیاسته یا پړے چې اس یا بل کوم څناور پرې له وړومبی پښې نه تړلے شي.

**اګاه** : خبردار، واقف، پوهه.

**اګاهو** : وړاندې، مخکښې، وړومبے.

**اګاهي** : واقفتیا، پوهه. له یوې واقعې نه مخکښې په ما فوق الفطرت طریقه خبریدنه.

**اګر** : د انساني بدن د شا هغه حصه چې بهر ته راوتے وي. کناتے. کۀ چرې، کۀ.

**اګره** : د وریژو مستو یا شوملو بې مزې پخکړے.

**اګري تګري** : اړے ګړے، غوبل، هغه حالات چې د قانون احترام پکښې نۀ وي.

**اګی** : هنا، اویه، انډه، د چرګو تخم، هویه.

**آل** : اولاد، ټبر، خاندان.

**الا** : په جمع سره د الله نوم اخستل، د خوشحالی په موقع یوه نعره.

**الا بلا** : بیکاره او بې ښې څیزونه. روا ناروا، وراني

ویجاړې.
**الاجې** : هغه آله چې پوندانه پرې د مالوچو نه بیلولے شي.
**الاستي** : غـائـب، پټ، ناګهانه، ناڅاپي.
**الٰهي** : اے زما خدایه، الٰه سره منسوب.
**الٰهیات** : د الله پاک باره کښې علم او فلسفه.
**البته** : ضرور، بیشکه، مګر، لیکن، ډیر ښهٔ.
**التباس** : د یو شان والي له وجې په شک کښې پریوتل.
**التجـا** : زاري، منـت، خواست.
**التزام** : د څهٔ کار د کولو یا نـهٔ کولو وعده، پـه غاړه اخستل،
**التفات** : پام، توجه، مهرباني.
**التماس**: التجا، خواست، غوښتل.
**التوا** : بلـې موقعې تـه پریښودل، ځنډونه، ملتوي کول.
**التـه** : اپوته، پړمخے، اړولے، برخلاف، د سم، نیغ او ښي ضد.
**التی** : قے، کوز کتنه، باکی، چالونه،
**الحاد** : ملحد کیدنه، له دینه اوړیدل،
**الحاق** : شاملیدل، جوختیدل، شریکیدل.
**الحمد** : د قرآن شریف وړومبے سورت، ټولې ستائنې الله لره دي.
**الخ** : د الیٰ اخره مخفف، یعني د دې تر اخر پورې.
**الزام** : تهمت، تور، ملامتیا، پړه.
**السلام علیکم** : پـه تاسو دې سلامتیا وي.
**الغاؤ تلغاؤ** : اړے ګړے، شورماشور، بغاوت.
**الغرض** : غرض دا چې.
**الغیاث** : د امداد دپاره د راغوښتلو اواز، اصلي معنیٰ

امداد.
**الف** : د ابجدو ورومبے تورے، د حرف "ا" تلفظ.
**الفاذ** : هغه چخچي يا پاڼي چې د دروازو او كړكو او روشن دانونو وغيره د جوړونو د مضبوطولو دپاره د ديوال او لرګي تر منځه تړک وهلے شي.
**الفاظ** : ټكي، توري، لفظونه، د لفظ جمع.
**الفت** : مينه، محبت، دوستي.
**القا** : غورځونه، اچونه، الهام، غيبي اشاره.
**القاب** : لقبونه، د لقب جمع.
**القارې** : بې انتها خواهش، ژبې.
**القصه** : غرض دا چې، قصه كوتاه، لنډه دا چې.
**الله** : د خدائے پاک نوم، اسم ذات.
**المارى** : د كتابونو، كپړو يا لوښو ايښولو لوړے صندوق چې درازونه يا خانې لري.
**الميه** : دردناكه واقعه، غمژنه واقعه، داسې نظم يا نثر چې انجام ئې دردناک وي.
**الو** : يوه سبزي، پتاټه، جمع الوګان.
**الوان** : سور رنګ، د سور رنګ يوه كپړه، د لون جمع.
**الو بخارا** : هغه تروه ميوه چې د خوړلو نه علاوه پخكړي او وريژو كښې استعماليږي.
**الوپيچ** : يو قسم كچالو.
**الوتل** : ورزيدل، په هوا كښې د وزرونو په زور ګرځيدل.
**الوچه** : د مندتې او الو بخارې په شان يوه ميوه او د هغې ونه.
**الوداع** : رخصت، په مخه ښه.
**الوده** : لړلے، تپلے، ګنده، پليت، داغ لړونكے، ككړ، ګناه ګار.

**الوزول** : پــه هوا کښې گرځول، پورتــه کول، په آتشي وسله وژل.
**الوول** : ول ول، تــاؤ راتــاؤ، گلکوتي، گرگوتي، گاړگوتي.
**اله** : آله، اوزار، برگ.
**اله** : هله، شابه، ژر که،
**اله گوله** : شوروشر، جنگ جگــړه، بدانتظامي، اړے گړے،
**الهام** : د الله پـاک له خوا د انسـان د هـدايـت دپاره نازل شوے کلام.
**الي دودو** : هغه سړے چې هر وخت په منډه وي، جلتي کونکے.
**اليښادے** : هغه سړے چې په ودونو کښې سندرې وئيل ئ پيشه وي.
**الـې خلې** : وگـورئ هـلې خلې.
**ام** : د گرمو او شگلنو سيمو يـوه مشهـوره خوږه ميوه چې په گرمی کښې رارسي.
**امادگي** : خـوښـه، رضـا، غاړه کيښودنه.
**اماده** : جـوړ، تيـار، رضـا، راضي.
**امارت** : اميري، مشري.
**اماره** : حکم کونکے، نفس اماره.
**امـا کما** : لـرې نـژدې، يو ځـاے بـل ځاے، د لرې لرې، د امازي او کمالزي مخفف.
**اماله** : د گرامـر هغه قاعده چـې د هغې لاندې زور د زير پــه شـان لوستے شي لکـه د رکاب په ځاے رکيب.
**امام** : پيشـوا، رهنما، مونځ ور کونکے.
**امامت** : مشري، سرداري، د امــام عهــده، رهــنـمـائـي، قيادت.
**امان** : پناه، حفاظت، ارام،
**امانت** : پـه اعتبار ور کړے ځيـز، چـا سـره پـــه حـفاظت کښې ور کړے شوے ځيز.
**امالي** : تـول، سالم، پوره،

پټ، خوندي،
**امبار** : انبار، ډيرے، ډير، ذخيره، د غلې ګودام.
**امبار کي** : مبار کي، د چا په خوشحالی هغهٔ ته د خوشحالی ظاهرونه.
**امبالی** : کجاوه، هغه ډولی چې په اوښ يا هاتي باندې ورلے شي.
**امبړ چمبړ** : يو بل کښې ننوتي، مشت و ګريوان، يو بل سره ښخ.
**امبور** : د ترکاڼ، لوهار او نورو کسب ګرو هغه کالے چې د څهٔ څيز مثلاً ميخ وغيره د ايستو دپاره پکاريږي.
**امت** : د يو رسول منونکے جماعت، تولے،
**امتحان** : ازمائنه، ازمائيل،
**امتداد** : وږديدنه، غزيدنه، د جيوميټری په اصطلاح کښې وږدوالے، پلن والے او ژوروالے.
**امتياز** : بيلتون، فرق، تميز، جدائي.
**امچوره** : د کچه ام وچې کړې ترازې چې د اوړهٔ کيدو نه پس په مصالحه کښې استعماليږي.
**آمد** : ګټه، آمدني، د شاعری يوه اصطلاح، زړهٔ کښې پيدا شوې خبره.
**امداد** : مدد، مرسته، کومک.
**امدن** : امدني، ګټه، فائده، حاصل.
**امدورفت** : تلنه راتلنه، تعلق، راشه درشه.
**آمر** : حاکم، حکم کونکے،
**اِمر** : حکم، کار.
**امرا** : د امير جمع، غټان، لويان، دولتمند.
**امراض** : بيماری، ناروغی، د مرض جمع.
**امرسه** : د وريژو د اوړو نه جوړ خوږ ککوړے.
**امرود** : امروت، يوه ميوه.
**امروزه** : روزمره، د يوې

ورخې په دوران کښې.
**امریت** : تړول واکتوب، د امر حکومت، امرانه نظام.
**امزرے** : منزرے، ازمرے،
**امسا** : د لاس لرګے، کونتۍ، لکړه، عصا.
**امساک** : ایسارونه، د انزال ایسارونه،
**امکان** : د واقع کیدو یا ممکن کیدو صلاحیت،
**امل** : آرزو، امید،
**املا** : د چا د وینا د لیک دود مطابق لیکنه، د امتحان په ډول د بل وئیلے عبارت لیکل.
**املاک** : د ملک جمع، مال، اسباب، جاګیر.
**املوک** : د یوې ونې او د هغې د میوې نامه.
**املي** : یوه تروه میوه.
**امن** : صلح، اطمینان، ارام، امان. د جنګ ضد.
**امن و امان** : د جنګ متضاد.

**اموات** : مرګونه، د موت جمع.
**اموال** : مالونه، د مال جمع.
**امواج** : موجونه، چپې، د موج جمع.
**اموخته** : عادت شوے، بلد شوے، عادي.
**امور** : کارونه، احکام، د امر جمع.
**امي** : نا لوستے، ان پړ،
**امید** : توقع، آرزو، اسره، امل.
**امیدوار** : امید لرونکے،
**امیدواره** : امید لرونکې، هغه ښځه یا ماده ځناور چې په ګیډه ئ بچے وي. حامله.
**امیر** : حاکم، حکم کونکے، دولتمند، د قافلې مشر،
**امین** : امانت ګر، امانت دار.
**آمین** : هم داسې دې وشي. مننه، قبلونه،

**اميزش** : ګډون، ملاوټ.
**اميل** : امبيل، هار، د غاړې کالې.
**انا** : اصل معنيٰ "زهٔ". هرې مشرې ښځې ته د احترام کلمه.
**انار** : يوه دانې داره ميوه چې پوټکے ئې ترش وي.
**انار دانه** : مساله چې د انګورو او انار ګوړوله دانو جوړيږي.
**اناړي** : ناشولته، نا پوهه، نا تجربه کار.
**انانيت** : خان منه، خود پسندي، غرور.
**انبار** : امبار، ډيرے، ذخيره.
**انبساط** : خوشحالي، غوړيدنه.
**انبوه** : هجوم، ګڼه ګوڼه.
**انبياء** : نبيان، د نبي جمع.
**انتباه** : خبرداروِل، اطلاع ورکول.
**انتخاب** : خوښونه، غوره کول،
**انتروشے** : پرنجے، انتوشے، ترنجے.
**انتساب** : نسبت لرنه، تعلق، نسبت.
**انتشار** : تردد، خوريدنه، پريشاني، د شهوت په نتيجه کښې د آلهٔ تناسل لګيدنه.
**انتظار** : کتون، کتنه، اسره، په اميد وسيدنه، لار کتنه.
**انتظام** : بندوبست، ترتيب، تنظيم کول.
**انتقاد** : کره کتنه، تنقيد، اعتراض.
**انتقال** : مړ کيدنه، د جائداد منتقل کيدل، نقل و حرکت.
**انتقام** : بدل، پور، وار، کسات، بدله.
**انتها** : اخر، انجام، حد، خاتمه.
**انتها پسندي** : د انتها پسند عمل او نظريه.
**انتهائي** : نهايت، اخري.
**انجام** : دنبال، اخر، انتها،

**انجاڼ** : نـهٔ پـوهیدونکے، جاهل،
**انجروت** : ناویـات، بیش بها، قیمتي.
**انجل بنجل** : الوول، ګډوډ، تاؤ راتاؤ.
**انجم** : ستوري.
**انجماد** : منجمد کیدنه، کنګل کیدل.
**انجمن** : ټولنه، مجلس، محفل.
**انجه** : هنجه، ینجه،
**انجیل** : هغه اسماني کتاب چې پـه حضرت عیسیٰ علیه السلام نازل شوے وۀ.
**انځر** : یوه تور بخنه خوږه میوه.
**انځرې** : د مرې د غدود د پړسوب بیماري.
**انځور** : تصویر، نقش، نښه، مرهم پټې.
**انچ** : د فټ دولسمه حصه.
**انحراف** : لـه یو قول یا عمل ځنې بیرته ګرځیدل، انکار کونه.
**انحصار** : د یوې خبرې په بله موقوف کیدل، دارومدار ساتل،
**انحطاط** : پـریوتـنه، راغورځیدل، زوال.
**اند** : اندازه، تخمینه.
**انداز** : حد، مقدار، طرز، طریقه، شان، ادا، ناز و نخره،
**اندازه** : قیاس، فیصلـه، کچ، ناپ تول، د ناکافي علم په بنا کړے فیصله.
**اندام** : د بدن یوه حصه، عضو.
**اندرپایه** : پـاړځنګ، پوړی، زینه.
**اندرغپ** : بې هوشه، پټ، هغـه سـړے چې کوټې تـه ننوځي او ځان پسې ورپورې کړي.
**اندرون** : دننه، پـه منځ کښې، زړهٔ، باطن، د بیرون متضاد.
**اندره** : څرخ، باټې، د چړو

چاقوانو تیرولو آله.
**اندوخته** : سمبال شوے، سنبال، گټه، جمع واريِ.
**اندوهگین** :دلگیر، غمگین، غمژن،.
**اندیښمن** : غمژن، فکر من، دلگیر،
**اندیښنه** : ویره، خطره، غم، پریشاني،
**انډر** : مست خاروے، ناخصي خاروے، سانډ.
**انډره** : د پسهٔ په گیډه کښې لویه کولمه.
**انډک** : کناټے، ارخ،
**انډک سونډک** : هغه سیلی او بادونه چې د ژمي په اخر کښې چلیږيِ، سونډک مونډک.
**انډوخر** : فساد، وراټے، بد تمیزيِ، یوه لوبه.
**انډول** : اویزان، خوړند، نښتے،
**انډه** : هغه اګی چې د جنګولو په نتیجه کښې ئ
سر او چک دواړه مات شويِ ويِ.
**انډیوال** : انډی کښې شریک، ملګرے، یوې بې نکاح ښځې سره وسیدونکے.
**انډیرے** : پوزے، پوزکے.
**انډی** : ښورروا، پخکړے، کټوی، اینګولے، ترکاريِ.
**انډی کونډی** : اخلے پخلے، انډی کټوی.
**انډوے** : غوندے، د اوبش یا خر یا بل خارويِ د بار یو خوا، ورے، نیم بار. د بار یوه حصه.
**انډوے انډوے** : ټوټې ټوټې، اندام اندام، ډیر سترے.
**انزال** : مني خارجیدنه، مني وتنه، خلاصیدنه.
**انساب** : نسبونه، نسلونه، د نسب جمع.
**انسان** : بنیادم، سړے، خپلو کښې مینه کونکے.
**انسټ** : یو شنډ بوټے چې

لـر ګـے او پـانې ئ د زيـړي د
مرض دپاره استعماليږي.
**انسداد** : بـندونه، بنديز، منع
کونه، ختمونه.
**انشا** : لـه ځانـه راايستـل، له
ځـانــه پيـدا کـول، عبـارت،
تحرير،
**انصار** : مـددګاران، په مدينه
منوره کښې د رسول الله صلي
الله عـليـه وسـلـم مـددګـاران
اصحاب.
**انـصـاف** : عـدل، د حـق
فيصله، نيمول.
**انـعام** : بـخشـش، سوغات،
بدله، صله،
**انعکاس** : عـکس، په بل مخ
اوړيدنه،
**انفرادي** : يـواځـې، ځان له،
فردا فردا.
**انفراديت** : د انفرادي سره
متعلق.
**انـفصال** : جـدائي، بيلتون،
بيليدنه.
**انفعال** : شـرمـيـدنه، ندامت،
ملامتيا.
**انـقلاب** : اوښتـل، د حـالـت
بدليدل، د زمانې ګردش،

**انکار** : د اقرار ضد. يوه خبره
نۀ منل.
**انـکسـار** : خـاکسـاري،
عاجزي، کسر نفسي.
**انـکشـاف** : ظـاهـريدنـه،
ښکاره کيدنه، معلوميدنه.
**انـګا بنګا** : لـرې لرې، ډير
لـرې، اخـوا ديـخـوا، ګـډوډ،
فضول خبرې.
**انګار** : سـکروټه، سروټکه،
تک سور شوے.
**انـګازه** : هـغـه اواز چې نـۀ
راتمبيږي. اوازه. شهرت،
**انـګته** : نښتـه، ورانـے، چيړ،
ټونګه اچونه، لاس وراچونه.
**انګړ** : غولے صحن، انګڼ،
**انګړه دنګړه** : لم ليټ، ټال
متول، اخوا ديخوا، انه بانه.
**انګڼ** : انګړ، غولے، صحن.
**انګور** : زيلې کونګے مشهور
بوټے چې خوږه ميوه کوي.
**انګيټۍ** : د تـانبې يا د ټيم نه
جـوړ د اور بـلـولـو دپاره يـو
خـاص لـوښـے. د اور بـلـولو
ځاے.
**انـناس** : يـوه مشهـوره ميوه
چـې د ختـکې نه وړه وړده او

خوړه وي او د پاسه پرې ازغې وي

**انواع** : قسمونه، ډولونه، د نوع جمع.

**انه** : یوه پخوانی سکه چې د څلورو پیسو برابر به وه.

**انه بانه** : عذر، بهانه،

**انهماک** : مشغولیدنه، مصروفیت.

**انیز** : انه، د روپی شپاړسمه برخه.

**انیدل** : هنیدل، کمزورے کیدل، د خر یا د اس د مستی اواز.

**اؤ** : هغه اواز چې غوایان پرې شړلے شي. د کار کولو په غرض د اماده کولو کلمه، هؤ.

**او** : د عطف حرف ، بیا،

**اواخر** : انجام ،انتها، د اخر جمع.

**اواره** : روغه جوړه، صلح صفائي.

**اواره ګرد** : بیکاره ګرځیدونکے ، لوفر.

**اواز** : غږ، صوت، په خناورو کښې د ژبې په ذریعه د خپلو جذباتو یا خیالاتو څرګندولو قوت چې په غوږونو اوریدے شي.

**اوازه** : شهرت، نامورې، غلغله، افواه.

**اوباش** : خوشې ګرځیدونکے ، بدمعاش، بد چلن، اواره ګرد.

**اوبدل** : کپړه جوړول، د کلۍ کار کول.

**اوپره** : پړسیدلے ، بوګه، چې کلک نهٔ وي.

**اوتر** : مست، باتریا، وارخطا، پاګل.

**اوتي بوتي** : ګلډې وډې، کاواکې، بې مطلبه خبرې.

**اوجرې** : لرې کولمې، لرې سوپرې، د څاروؤ د معدې یوه برخه.

**اودس** : د مانځهٔ دپاره په مخصوصه طریقه ځان پاکول. وضو.

**اودس ماتے** : ډکې متیازې، لوے بول، د اودس د حالت نه د بې اودسی حالت ته راتلل.

**اوډل** : اوبدل، کپړه تیارول، د ښځو د سر کمڅې کول.

**اودهٔ** : خوبولے ، بیدهٔ، ساده،

بې پروا، چې ويښ نۀ وي.
**اودي** : سرخۍ ته مائل تور رنګ،
**اور** : د پخواني علم مطابق يو بنيادي عنصر چې د سوځيدو په نتيجه کښې ئې رڼا او ګرمي پيدا کيږي. هور.
**اوراد** : وردونه، وظيفې.
**اوراق** : پاڼې، صفحې، د ورق جمع.
**اور اورکے** : جګنو، هغه چينجے چې د شپې په الوتو کښې رڼا کوي. اوربلک،
**اوربشه** : يوه مشهوره غله چې په اوړي کښې کيږي د خوراک نه علاوه ترې شراب هم جوړولے شي. جو.
**اوربشينه** : د اوربشو نه جوړه،
**اوربل** : د پيغلو جونو د تندي ويښتۀ، پيکے.
**اوربوز** : وګورئ وربوز.
**اور لړونے** : هغه لړګے چې اور پرې لړلے شي.
**اورمولے** : د وړو ماشومانو يوه ناروغي چې پکښې په وړو دستونه لګي.
**اورميږ** : ګردن، څټ،
**اورنے** : هغه کپړه چې ماشوم پکښې نغاړي او تړي.
**اورول** : پـه وچت اواز لوستل، د غوږ په ذريعه چاته رسول،
**اوريدل** : اروېدل، د غوږ په ذريعه د اواز محسوسيدل، د سامعې د حس استعمال کيدل، منل، قبلول.
**اورى** : د غاښونو د ژامنو کير چاپيره غوښه.
**اوړے** : وړے، ورغومے، يو بوټے چې په عربى کښې ورته خردل وائي. نرى دانې کوي.
**اوړل** : منل، زغمل، اخستل، بيلول، چوڼ کول.
**اوړۀ** : دوړه، وړۀ، اټا.
**اوړيدل** : اوښتل، تيريدل، په تکليف کښې مبتلا کيدل، د لاس او پښې بې ځايه کيدل. دين پريښودل،
**اوړيدل** : ميده کيدل، اوړۀ کيدل، اوړۀ جوړيدل.
**اوړيدل راوړيدل** : وجود لـه يو خوا بل خوا حرکت ورکول، اخوا ديخوا

ګرځېدل، اواره ګرځېدل.
**اوزار** : د استکار د کار کالي، د کار آلې.
**اوزان** : وزنونه، د وزن جمع.
**اوږد** : وږد، لوړ، د لنډ متضاد.
**اوږه** : هوږه،
**اوږه** : د څټ او مټ تر منځه د ولې حصه.
**اوږی** : د غارې يو کالے، پيمانه، هغه لوښے چې غله پرې پيمانه کولے شي.
**اوس** : په دې وخت، په دې ساعت، د ډېر نژدې تير شوي کار دپاره.
**اوسط** : درميانه، مينځومانه، په منځ کښې.
**اوسنے** : د اوس وخت، موجوده. دستي.
**اوسيدل** : ژوند تيرول، ديره کيدل، ميشته کيدل.
**اوښ** : د ايشيا او افريقې يو لوړ قامتے ځناور چې په شا يو يا دوه کبونه لري. او د سورلی او باربرداری دپاره پکاريږي.
**اوښکه** : د سترګو نه بهيدونکې مائع، وګورئ اوښه.
**اوښه** : له سترګو خارجيدونکې مائع څاڅکے چې د ژړا يا د خوشحالی په وخت راوځي.
**اوښے** : وګورئ اخښے.
**اوصاف** : د وصف جمع، صفتونه.
**اوقات** : وختونه، د وقت جمع، مالي يا معاشي حيثيت.
**اوقاف** : د خيراتي مقصد دپاره خاص شوي ځيزونه يا جائدادونه او د هغې د انتظام محکمه، د وقف جمع.
**اوقه** : قے، چال، کوز کاتۀ، التهې.
**اوګره** : وريژې يا بتهې په اوبو کښې يشونه، د وريژو يا بتهو اتوب،
**اول** : د خالي ورځ، وړومبے، شروع، ابتدا.
**اولاد** : زاوزاد، بال بچ، نسل، پښت، الواد.
**اولجه** : مال غنيمت، لوټ، تالان،
**اولس** : د قام خلق، قامي خلق، عوام.

**اولنۍ** : وړومبۍ، وړومبنۍ،
**اولیاء** : بزرګان، ولیان، پاک خلق، د الله پاک دوستان.
**اولین** : وړومبی، وړومبنی، لومړی.
**اوم** : کچه، ناپخته، خام، ناتجربه کار، ناپوه.
**اومتیا** : اوموالی، کچه والی، خام والی.
**اومه خلهٔ** : هغه هلک چې ږیره بریت ئې لا نهٔ وي راغلي ژنی.
**اونګه** : چتو، بغری، لنګری، د دارو جوړولو یا مسالي میده کولو دپاره د لرګي یا وسپنې نه جوړ شوی لوښی.
**اووکس** : د شپاړسو او اتلسو په منځ کښې هندسه.
**اووهٔ** : یو او شپږ، د اتو نه یو کم.
**اوه** : هغه تناکه چې د ځناور په پښه کښې راخیژي.
**اوهام** : وهمونه، د وهم جمع.
**اوي** : آبي، د للمي متضاد،
**اویا** : لس او شپیتهٔ، لس کم اتیا ۷۰.
**اویه** : ها، اګی، انډه.
**اویجه** : زمکه، وطن، سرزمین.
**اویزان** : ځوړند، اویزاند، نښتی.
**اوی** : پڑه، هغه ځای چې پکښې کلال لوښي پخوي.
**آه** : د افسوس او حسرت کلمه.
**اها** : د تعجب او خوشحالی کلمه، واه واه.
**اهتمام** : انتظام، بندوبست، بندبنا.
**اهل** : مالک، صیب، ټبر، خاندان، صفت، لائق، هنرمند، شریف.
**اهل بیت** : د کور خلق د رسول الله صلي الله علیه وسلم اولاد.
**اهل حدیث** : د مسلمانانو یوه فرقه چې د فقهې د امامانو تقلید نهٔ کوي.
**اهل کار** : کارنده، کارکن، منشي، مرزا.
**اهلیت** : قابلیت، لیاقت، تمیز.

**اهلیه** : ښځه، تبر، ارتینه، ماندینه، قبیله، کور، کورواله، نکاح شوې ښځه.
**اهم** : ګران، مشکل، ضروري،
**اهمیت** : د اهم سره متعلق.
**اهنګ** : قصد، اراده، تکل، غاړه، اواز، غبر، نغمه، سُر، وزن، طرز، طریقه.
**اهنګر** : پښ، لوهار،
**اهو** : هوسی، لکه شویه، لکه شوې.
**ائمه** : د امام جمع، امامان.
**آئین** : دستور، قانون، رسم و رواج، آئینه، شیشه. دین، عقیده.
**آئینه** : د مخ کتلو شیشه، اینداره، هنداره.
**ایا**: حرف استفهام، د سوال کلمه.
**ایات** : د آیت جمع، علامات، نښې، د قرآن او نورو اسماني کتابونو جملې.
**ایاغ** : جام، کنډول، پیاله، د شرابو جام.
**ایام** : ورځې، حالتونه، موسمونه، وختونه، د یوم جمع.
**ایت** : د قرآن شریف پوره جمله.
**ایثار** : قربانې، په خپل ضرورت د بل ضرورت ته ترجیح ور کول.
**ایجاب** : قبلونه، مننه، منظورونه.
**ایجاد** : نوے څیز جوړول، نوے څیز پیدا کول.
**ایجاز** : اختصار، مختصر کول.
**ایجړا** : هجړا، نامرد، نرښځے. کمزورے، سست.
**ایرن** : خړ، ایره رنګے، د ایرو په شان.
**ایره** : له سوځیدلي څیز نه پاتې شوے ګرد.
**ایرۍ** : د ښځو د خبرو جنګ، د زنانوؤ د خبرو جګړه.
**ایرۍ بارۍ** : د خبرو جنګ، یو تر بله د خلې جنګ، ناکاره خلۀ خوځول، بدرد ونیل.
**ایړا** : وارخطا، اوتر.
**ایسار** : اتهال، وروستو پاتې،

بندي، ګير، نيولے،

**ايسارتيا** : ماتلي، بندي توب، اټالتيا، تم والے.

**ايسارول** : ګيرول، اټالول، پاتې کول، بندي کول،

**ايساريدل** : ګيريدل، اټاليدل، پاتې کيدل، بندي کيدل، بنديدل.

**ايصال** : رسونه، يو ځاے کونه، وصولونه.

**ايطا** : د شعر په مصرعو کښې د قافيې تکرار چې ښهٔ نهٔ شي ګڼلے.

**ايفا** : پوره کونه، د وعدې پوره کول.

**ايل** : قبيله، ټبر، خاندان،

**ايله** : خلاص، ازاد، خوشے. هيله، دومره، بس، لږ،

**ايله ايله** : لږ لږ، په مزه مزه، په قلار قلار.

**ايله بيله** : فقط، محض، په خوارى زارى، بس دومره قدرې.

**ايله حواله** : داسې کوششونه او تدبيرونه چې د کاميابيدو امکان ئې ډير کم وي.

**ايلى** : هيلى، مرغابى، د اوبو يو مارغهٔ.

**ايما** : غمزه، کنايه، اشاره.

**ايمان** : عقيده، اعتقاد، مذهب،

**ايماندار** : ايمان لرونکے.

**ايماني** : د ايمان سره تعلق لرونکے، حقه، رښتيا، سمه.

**اينتې پينتې** : چل ول، انې بانې، ټکې برګې.

**اينجه** : د بوډۍ يا زړې غوا غوښه، کيجه غوښه.

**ايندوانه** : هندوانه، شين پوټ او عام طور سره سور رنګ لرونکې غټه ميوه.

**اينه** : وګورئ آئينه.

**اينه** : ځيګر، ينه.

**ايوان** : شاهي دربار،

**ايهام** : د علم عروض يو صنعت چې شاعر په خپل کلام کښې داسې ټکے استعمالوي چې دوه معنې ترې راوځي.

**ايراب** : هغه لښتے چې د زيم لرې کولو دپاره په زيمناکو زمکو کښې جوړ شوے وي.

**ايستل** : وباسل، وکښل،

وښکل.

**ايغ** : د نيغ مترادف، د نيغ نه مخکښې راتلونکې بې معنې توکې.

**ايغ نيغ** : د پاک زړهٔ خاوند، صفا خبره کونکې، شوخ، سم دم، سر زورې.

**ايکړ** : د زمکې د کچ يوه پيمانه چې د دوؤ جريبو برابر وي.

**ايلچي** : استازې. قاصد.

**اې** : حرف ندا، لکه اې هلکه، اې جينې. حرف استفهام هم دې لکه اې تاسو ته معلومه ده.

**ب** : (بې) د پښتو د حروف تهجي دويم توری چې د ابجدو په حساب ئ قيمت دوه (۲) دی.

**باب** : دروازه، رواج، دستور، قسم، سلسله،

**بابت** : باره، معامله، سبب، غرض، بدله، اجرت،

**بابو** : لوستی سړی، کلرک، افسر،

**بابي** : د ورندار دپاره د خطاب کلمه.

**بابيړنګ** : بابړنګ، د ګيډې د چينجو د علاج دپاره پکاريدونکې بوټی.

**بابيژنه** : سره لړې، واريزه تبه، مليريا.

**باتريا** : مذوب، مجذوب، ليونی، کم عقل، پاګل، ليونتهاری.

**باتور** : عقاب، د يو ښکاري مارغهٔ نامه. مرنی،

**باتی** : پلته، پليته، د پرهر هغه ټينګه زوه چې د باتی په شان د پرهر د خلې نه راوځي. د مالوچو نه جوړه نری پونۍ چې ډيوه کښې استعماليږي.

**باټ** : د چاقو چړې تيرولو کاڼی. برجو، څرخ،

**باټلې** : بالټې، هغه لوښې چې اوبهٔ يا شودهٔ پکښې ډکوي. ټاټکې، باټې،

**باټې** : غټې خبرې، لافې، ډوزې.

**باټيقولا** : باټر، باټو، لاپو، لافزن.

**باج** : عبث، فضول، خراج، قلنګ، ماليه،

**باجره** : د غلې يو قسم،

**باجري** : نري نري کاڼي، سنګيږ،

**باجړ** : په شيبو شيبو باران، تالان، لوټمار، افراتفري، اګري نګري.

**باجګزار** : هغه سړی چې ټيکس يا باج ورکوي.

**باجه** : د ساز يوه آله،

هارمونیم.
**باچا** : بادشاه، خپل ستانه دارو خلقو ته د احترام نوم.
**باحس** : حساس، د احساس خاوند،
**باخبر** : خبردار، واقف، معلومات لرونکے.
**باختر** : مشرق، نمرخاتهٔ، ختیځ، شرق.
**باخه** : شمشتی. میچنی، بابنه یو ښکاري مارغهٔ.
**باد** : درد، د پښو درد، یو مرض، هوا، ایشمه، پوسکی، تیز،
**بادار** : څښتن، مالک، خاوند، سردار.
**بادام** : د یخو ملکونو وچ پوستکے لرونکے یوه میوه
**بادامه** : تیزه تنده سیلی، برفاني طوفان،
**بادبان** : هغه کپړه چې په جهاز یا کشتی کښې د رفتار تېزولو یا د هغې د رُخ بدلولو په غرض لګیدلې وي.
**بادخورک** : یو مارغهٔ چې ګونګټې خوري.
**بادرنګ** : یوه ځیلې لرونکې سبزي چې د سلاد په طور استعمالیږي.
**بادرو** : بکرمي کال کښې د پشکال نه پس راتلونکې میاشت. کشمالو، یو خوشبویه بوټے.
**بادشاه** : د یو قوم د ټولو نه لوے مشر، حاکم، باچا،
**بادشاهت** : د بادشاه کیدو حالت. باچائي.
**بادګوله** : د ګیډې سخت دړد، قولنج،
**بادوباران** : سیلی باران، د شرق باران، طوفاني باران. چې جم جکړ او سیلی ورسره ملګرې وي.
**باده** : شراب، مے.
**بادي** : د باد سره منسوب. هغه څیز چې په ګیډه کښې باد پیدا کوي.
**بادیان** : خوارهٔ ویلنے، کارهٔ

ویلنې.

**باړکول** : یو خاص قسم غښتلے شوے پړے چې پکښې ګلونه جوړ شوي وي.

**باړو** : بې همته، سست، بې مغزه، ډوزې ویشتونکے، دروغژن.

**باړه** : لویه خبره، لافه.

**باړیوه** : کانکوک، ګوډی، باجاوه.

**بار** : ورے، بوج، د بار کښ په شا ترلے پیتے، د میوه دارې ونې پیداوار، وار، حمل،

**باران** : وریکے، وریا، وور، باروم، بارش.

**باراني** : ورندے، هغه کال چې بارانونه پکښې ډیر وریږي، للمه، هغه زمکه چې کر ئ په بارانهٔ کیږي. د آبي متضاد.

**باراني** : برساتی، باران کوټ،

**بارخو** : اننګي، رخسار، غمبورے.

**باردار** : وګورئ بادار. حمل لرونکے، بار وړونکے ځناور،

**بار کښ** : بار وړونکے، پنډې، محنت کش، مزدور. صابره، د لویې سینې خاوند.

**بار ګاه** : دربار، محل، ستانه، پاک ځاے، شاهي خیمه،

**باروت** : بارود، د ګوګړو، ښورې او سکرو یو اور اخستونکے مرکب چې په توپو، ټوپکو، غربینونو وغیره کښې استعمالیږي.

**بارود** : وګورئ باروت.

**باره** : سلسله، لړ، تعلق، د تیږو دیوال، لوے بند، ذلی شوې تیږې، خندق، پشتي، طرز، قاعده، ځل، وار، کرت.

**باري** : هغه ځناور چې پیتې وړلو سره عادت وي. بار وړونکے

**باریک** : نرے، نازک، ګران، مشکل، ډیر نرے یا

وړو کې،
**بارې** : بیا، اخر، یو ځل، ولې، مګر، خو.
**باری** : د باښې د خاندان یو ښکاري مارغهٔ. کړکی، دریچه. د پیاز پوټکې، د پیاز پرده.
**باړ** : د توپو یا ټوپکو په یو مخ چلول، واړ، شپول، کیږ، چاردیوالي، د پټي نه تاؤ شوې غنې، سیلاب، چلـه، د غنو دیوال.
**باړه** : هغه خوراک چې د پیورو څاروؤ مخکښې ئ د لوشلو په وخت کښې کیږدي چې ورانې نهٔ کوي. وندہ، باړې،
**باړي** : مزدور، نوکر، خدمتګار، کاریګر.
**باړیمار** : هغه څاروې چې په باړه ودریږي. باړه اخستونکې، رشوت خور،
**باړیماره** : بدکاره ښځه. هغه غوا یا میښه چې همیشه په باړې ودریږي او عام طور سره بُوره وي.
**باړینچغ** : باندیچغ، د ماشومانو د زنګولو دپاره د لرګي نه په دائره کښې جوړ ټال،
**باړی** : پټې، د کلي خوا ته د کر زمکه، باړو.
**باز** : مشهور ښکاري مارغهٔ چې نر ته ئ جره وئیلې شي.
**بازار** : په دکانونو مشتمل هغه ځائې چې خرید و فروخت پکښې کیږي. مارکیټ، منډی، نرخ، اعتبار.
**بازاري** : د بازار سره تعلق لرونکې، لوفر،
**بازپرس** : جواب طلبي، پوښتنه، تپوس،
**بازو** : د کټ د څلورو خواؤ ته لګیدونکو لرګیو کښې هر یو، اړخ، طرف، سکه ورور، دوست، د مرثیه خوان جوړیدار، مټ د څنګلې نه تر اوږې پورې لاس.

**بازي** : لوبه، تماشه، دوكه، چل، د شرط ترلو روپی، وار، داؤ، د راضي تابع مهمل.
**بازياب** : دوباره موندلے،
**بازيگر** : لوبغاړے، مداري، جادوگر، بې اصوله، چالاک، دوكه باز. په دويم ځل، دوباره وگورئ باز ديگر.
**باسمتي** : يو ښه قسمه وريژې.
**باسي** : سخا، زوړ، بوئ ناک، بيگانے، د بل وخت پاتې شوے د خوراک څيز.
**باشنده** : وسيدونكے، استوگے،
**باطل** : بې فائدې، غلط، دروغ، بې هوده، عبث، فضول، د حق متضاد.
**باطن** : اندرون، لړمون، گوگل، پټ، پناه، د ظاهر او څرگند متضاد.
**باطني** : د باطن سره متعلق، د زړۀ سره تعلق لرونكے، اندروني.
**باعث** : سبب، وجه، له لاسه، له كبله، بنياد، ځيله، حقيقت، اصل.
**باغ** : د ميوو او گلونو بوټي لرونكې زمكه چې عام طور ترې ديوال يا باړ تاؤ وي.
**باغات** : د باغ جمع، باغونه.
**باغبان** : د باغ خصمانه كونكے، باغوان، هغه سړے چې باغ كرل او لگول ئې پيشه وي.
**باغي** : نافرمانه، ياغي، حكم نۀ منونكے، بغاوت كونكے،
**باغيچه** : .وړوكے باغ، باغچه.
**باقاعده** : په تسلسل، په ترتيب، منظم، د قاعدې او دستور مطابق.
**باقي** : د الله پاک صفاتي نوم. بقايا، پاتې، بچ شوے څيز، هميشه، تل، رياضی كښې د تقسيم د سوال اخري بې تقسيمه پاتې شوې

هندسه.
**باقیات** : پاتې شوي، پاتې شوي څیزونه.
**باقیمانده** : پاتې شوې، باقي.
**باک** : ویره، پروا، خوف، ډار، فکر، تکلف، تاوان، نقصان،
**باکی** : الټهی، قے، کوز کتنه، چالونه.
**باګه** : پرتوغابښ، بګه، لافه، لویه خبره، واګه،
**بالا** : پورته، وچت، بره.
**بالاخر** : اخر کار، اخر کښې، وروستو.
**بالائي** : برنے، پورتنے، پاسنے، پیروے، ملائي. رشوت، د تنخواه نه علاوه آمدني.
**بال بچ** : اولاد، واړهٔ زاړهٔ، ښښت.
**بالتهي** : وګورئ باټلے.
**بالخصوص** : خصوصاً، خاص طور سره.
**بالښت** : سرویړدے، تکیه، ګدوزے،
**بالعموم** : عام طور سره، عموماً.
**بالغ** : بلوغ ته رسیدلے،
**بالغیدل** : بلوغت ته رسیدل، ځوانیدل،
**بالفرض** : کهٔ فرض کړې شي، فرضاً.
**بالکل** : کلیتاً، په کلي ډول، ټول، قطعي، مکمل، چورلټ.
**بالکے** : مرید، بالکه چي، شاګرد، کم عمره خادم،
**بالمقابل** : په مقابل کښې،
**بالن** : بالن، خشاک، د سوځولو لرګي.
**بالو** : بدبختي، کم نصیبي، میلو، یږ. هغه چینجے چې جامې خوري،
**بالواسطه** : د واسطې سره، چې براه راست نهٔ وي.
**بالین** : بالښت، سرویړدے، تکیه.
**بام** : بلی، د چت برنی

حصه.

**بامبړ** : پنډت، د هندوانو مذهبي مشر.

**بامبړه** : د اور لمبه، غرغنډه،

**بامبن** : د هندوانو د اعلیٰ ترین نسل فرد.

**بامبیړ** : درنه لانجه، ګڼه ګوڼه، شورماشور، بې ترتیبه سامان.

**بانجان** : یوه سبزي، باتینګړ، باتینګن، تور باتینګړ.

**باندینے** : په قلبه کښې د ښي طرف غوئے. پورتنے، برنے، پاسنے، د بل وطن.

**باندې** : د پاسه، پر، په.

**بانډار** : وران کوهے، ټولے، جرګه، مجلس.

**بانډه** : د یو کلي نه بهر هم د هغې کلي د خلقو ملکیت کښې د زمکې د کرونده ګرو اباد کوورونه، وړوکے کلے. اویزان، اتهال، ځوړند، د څۀ وخت دپاره عارضي استوګه.

**بانډیڅي** : د بانډې وسیدونکے، بانډیچي.

**بانک** : هغه آله چې ګنې پرې د ګنډیر ډبساره سپینوي.

**بانګ** : اواز، غږ، ناره، د مانځۀ دپاره بلنه.

**بانګي** : اذان کونکے، ملا، چرګ،

**بانګی** : د بانس د دوؤ ډنډو د لرګي د بازوګانو تر منځه د بوریو یا بوڼ نه جوړه هغه آله چې مزدوران پکښې سامان چلوي. د چابړي فروشانو هغه چابړے چې هغوي ئې په اوږه ګرځوي.

**بانه** : بهانه، پلمه، د دروغو عذر.

**باني** : بنیاد ایښودونکے، شروع کونکے،

**باڼ** : بوڼ، د مونجو یا میزرو نه غښتے نوے پړے، بان.

**بانس** : سخت او مضبوط لرګے لرونکې یوه ونه چې

اکثر په خیمو جوړولو کښې پکارولے شي.

**بانۀ :** د سترګو د ځیزمو په غاړه په یوۀ قطار ولاړ یو یا ډیر ویښتۀ.

**باوجود :** سره د دې، بیا هم، په دې هم، د دې د پنسه.

**باور :** یقین، اعتماد، تسلي، ویسا، اعتبار.

**باورچي :** پخونکے، اشپز، خانساماں،

**باورچي خانه :** داخلي پخلي ځاے،

**باوري :** اعتباري، قابل اعتماد، ،معتمد،

**باوړی :** هغه کوهے چې پوړی ورته کوزې شوي وي، باولي.

**باولي :** د باز د بچي په ښکار د عادتولو دپاره پر کټ کړے مارغۀ.

**باړې :** د ښځو د کار ټوکری، عام طور سره هغه ټوکری چې پکښې د ریشلو دپاره مالوچ ایښوے شي.

**باویسر :** بواسیر، یوه بیماري.

**باویړے :** د ښځۀ کیدونکي رنځ بیرته راتلنه، مرض دوباره راتلل.

**باه :** شهوت، جماع، مردانه طاقت.

**باهر :** بهر، ښکاره، څرګند، خارج.

**باهم :** په خپلو کښې، یو تر بله.

**باهو :** د ښځو یو کالے چې مړوند نه د لیچې تر منځه ورړد وي، کنګن، باوو.

**باید :** پکار ده، لازمه ده، ضروري ده، خامخا، ضرور.

**بائلات :** د ګټېات متضاد، بائلنه، تاوان، زیان، ماتې خوړنه، پړ کیدنه.

**بائلل :** ناکامیابیدل، ماتې خوړل، تاوان کول، د ګټل ضد.

**ببر :** د زمري یو قسم چې په

ځـېـ ئ ګـن ويښتهٔ وي. هغه سړے چې د سر ويښتهٔ ئ ډير ګڼ وي. ڤهرژن،
**ببرو :** بـدرنګ سړے، د تـريو تندي خاوند، د خوړندو شونډو او ببرو وروځو خاوند.
**ببو :** د مـور يا پـلار خـور، ښځونک،
**ببوزے :** د لاس پـکـے، باد پکے، ماهي خورک يوه مرغى چې د سينـد پـه غـاړه کبـان نيسي.
**ببی :** مشـرې خـور، ترور يا بلې مشرې ښځې ته د احترام کلمه.
**بت :** د يشيدلو وريژو اوبهٔ يا سرسـرے، د نشاستې نه جوړ هغـه ګړوبے چې سوتي کپړو تـه ئ پـه دې غـرض ور کوي چې تهه ئ ماته نهٔ شي.
**بُت :** له لرګي، کاڼي، وسپنې يـا بـل داسـې څيـز نـه جوړ د انسان يا حيوان شکل، تصوير، شاعرى کښې د محبوب دپاره استعماليږي.
**بُت پرست :** د بتانو عبادت کونکے، مشرک.
**بت تراش :** بتان جوړونکے، بت ساز.
**بتر :** بـدتـر، خـراب، ډيـر خراب، بې خونده.
**بتک :** پـه سفـر کښې ځان سـره د اوبـو وړولـو لوښے، بتکے، يو قسم صراحي.
**بت کده :** د بتانو د ايښودو ځاے.
**بتکے :** بتک، د اوبو ساتلو لوښے.
**بُتکے :** وړوکے ديوال چې د پناهی دپاره وهلے شوے وي. وړوکے ديـوال چې د ارټ د کانجن سر پرې پروت وي.
**بتوه :** سـارمـے، پـتـې کښې پوخ شوے ساګ.
**بته :** هـغـه مـارغـهٔ چـې لويه غړانګه لري او کورونو کښې ساتلے شي.
**بتي :** د جـولاګـانو د تنستې

بت، هغه نرم اوړهٔ چې جولاګان ئ تنستې له ور کوي.
**بتا** : کانا، په یوه ستر ګه ړوند، چې یوه ستر ګه کښې ئ ګل وي.
**بتل** : لویه خاورینه پیالی، لوے جام، لنګری، هغه خاورین جام چې بنګ پکښې څښلے شي. خاورینه کاسه.
**بتنګ** : ټانګو، د ناشپاتی د خاندان یوه میوه.
**بتن** : تنی، تکمه،
**بتوه** : بخڅکی، د پیسو ساتلو کڅوړه،
**بته** : بې مصالحې وریژې.
**بتې** : هغه اوربشې چې صفا شوې او ټکیدلې وي. صفا سوتره.
**بتیاری** : د بتیارې مؤنث بټ کونکې ښځه.
**بتیارے** : بټ کونکے، نینې کونکے،
**بتیر** : د شمالي یخې خطې یو مارغهٔ چې د ژمي په سر کښې د پښتنو علاقو ته رارسي.
**بتې** : د خښتو، ورجینا تماکو پخولو یا د شرابو ایستلو ځاے،
**بجد** : مصر، اصرار کونکے، ضد کونکے.
**بجلي** : یو مقناطیسي قوت چې د الیکټران او پروټان د حرکت په نتیجه کښې پیدا کیږي. برق، بریښنا.
**بخن** : حریص، لالچي،
**بچ** : اولاد، زوزاد، د بوټو تیغونه، له خطرې ساتلے، د بیماری نه روغ، محفوظ،
**بچاؤ** : بچ ساتنه، حفاظت، پناه، سلامتي.
**بچاونه** : د کټ څادر، بستره، فرش،
**بچت** : بچ شوے مال، کفایت شعاري.
**بچړے** : بچے، اولاد، خوے.
**بچ کچ** : بال بچ، اولاد،

زوزاد. پاتې، پاتې شونې،
**بچندر** : پـر کـتـې، هغـه مـاشـوم چـې کـونـډه یـا پـریښودې شوې ښځه ئ د خـان سـره د نوي میړهٔ کور ته راولي.
**بچنګ** : د بـچـي تصغیر.
بچونګے، بچو.
**بچو** : ځوي، لور یا کشر ته د مینې کلمه،
**بچوړے** : د انسان یا حیوان بـچـے، د ډیرې مینې له کبله ماشوم ته وئیلے شي.
**بچوکے** : د پښې د سر ځوکه، د سـر د ویښتو تـړلـو کپړه. د چابک د سر ځوړنډے.
**بچه باز** : اغلام باز، هلکانو سـره بـدفعلي کونکے، هلکان ساتونکے.
**بـچیرۍ** : بیـانـه، د اسپې بچی،
**بـچیـړے** : بیـاڼ، د اسپې بچے.
**بچۍ** : د بچي مؤنث.
**بچے** : د کـم عـمـر انسان یا حیـوان، چـوچـک، د بـوټـو قلمونه، بې تجربې سړے،
**بخرکے** : بخړے، سپېکے، وړوکے انـګـار. پـوټـسکے، ذره، پیچاڼے، پیسانړے، ډیر لږ.
**بخړے** : وګورئ بخرکے.
**بحال** : په حال، په خپل ځاے او مـقـام. پـه نوکـرۍ واپـس راغـلـے، زوړ حـال تـه بیـرتـه راغلے.
**بحث** : د دوؤ تـنـو ترمنځه زبـانـي یا تحریري دلیل بازي، جګړه، زباني جګړه.
**بـحر** : سـمـنـدر، دریـاب، د شعر د وزن مخصوصه پیمانه،
**بحران** : فیصله کن وخت، د مـرض هغـه کیفیـت چې مـریـض د مـرګ او ژونـد تر منځه نښتے وي.
**بـحروبر** : سمندر او وچه، لونده او وچه.
**بحریه** : سمندري فوځ.
**بحیره** : وړوکے سمندر.

**بخار** : د ګرمی له وجې راختلې داني، تبه، تپ، بړاس، غصه، تاؤ،
**بخاری** : انګیټهی، چندلی، تودلی.
**بخت** : نصیب، قسمت، برخه، طالع.
**بختور** : د ښهٔ بخت خاوند، خوش نصیب، بختیار، نیک بخته.
**بختي** : بختور، بختناک.
**بخره** : برخه، حصه، وراثت، نصیب، قسمت، د زمکې یوه حصه چې رقبه ئ مختلفو علاقو کښې بیله بیله وي.
**بخشش** : انعام، ورکړه، بخښنه، معاف کونه،
**بخښل** : معاف کول، یو څیز چاته ورکول.
**بُخل** : کنجوسي، شومتیا، بخیلي.
**بخمل** : یوه مشهوره ریښمینه کپړه، مخمل، نرم و نازک،
**بخن** : د ځنو رنګونو په اخر کښې د راتللو په صورت کښې معنیٰ کښې کمے پیدا کونکې لاحقه لکه تور نه تور بخن، سور نه سوربخن.
**بخیل** : شوم، د بخل نه کار اخستونکے، کنجوس، ځیلي، ضدي، هغه ماشوم چې ځیل نیسي او هر وخت ژاړي.
**بخی** : ګینده، په لاس یا په مشین کړے نیغ ګنډه.
**بد** : سرکوزے، خنزیر، سرکوزے، بد ځناور. د ښهٔ متضاد، ناکاره، خراب، فسادي، شریر، جګړمار،
**بد بو** : خراب بوئ، سخا بوئ.
**بدبویه** : چې خراب بوئ کوي،
**بدتمیز** : تمیز نهٔ لرونکے، وران، بې حیا،
**بدحال** : په خراب حال کښې،
**بدکار** : د بدو کارونو

کونکے، خطاکار،
**بدکاري** : بدفعلي، زناکاري، بدچلني.
**بدنام** : رسوا، شرمیدلے، په خراب نوم یاد.
**بدر** : سپوږمی، د څوارلسمې سپوږمی. مدینې منورې سره نژدې یو ځاے.
**بدرد** : کنځل، ستغې سپورې، سپکه وینا.
**بدرگه** : د سپ'یانو تولے، ملاتړ، مالګرتیا، په مرسته کښې تګ، مړي پسې د وروميي ورځې خیرات.
**بدرنګ** : بد شکله، بد صورته.
**بُدري** : تیندک، دغره، تکره، زیان، نقصان، تکلیف، ضرر، غلطي، خطر، بلا،
**بدړ** : سپیدار.
**بدستور** : د دستور مطابق، زور په زور، زړه په زړه. په خپل ځاے.
**بدعت** : نوے کار، په دین کښې نوے کار چې سنت نه ثابت نهٔ وي.
**بدل** : انتقام، پور، عوض، تاوان، غچ، مختلف، بیل، د اصل متضاد، د خپله ځایه لرې شوے.
**بدلول** : د یو څیز په ځاے بل څیز ورکول یا اخستل، څوک د یو حال نه بل حال ته اړول.
**بدلون** : تبدیلي، انقلاب، وګورئ بدلول.
**بدله** : د پښتو د اولسي شاعرۍ هغه مخصوص صنف چې د مثنوي په رنګ کښې لیکلے شوے وي او عام طور سره پکښې قصه بیانیږي، د سندرو ویونکو په اصطلاح کښې غزل مسلسل کښې لیکلې قصه. د بدل مؤنث.
**بدلي** : تبادله، تبدیلي، د یو ملازم د یو ځاے نه بل ځاے ته کول.
**بدلیدل** : د یو څیز په ځاے

بل ځيز ور کيدل، غوره کيدل، له يو حال نه بل ته تيريدل،
**بدليوۀ :** خنزير، بدخويه، بدمزاج، ظالم.
**بدن :** صورت، وجود، جسم، ځان.
**بدنام :** تورن، چې تور پرې لګيدلے وي، رسوا، تهمتي.
**بدو :** خانه بدوش، د عربو صحرا نشين، بې وقوف، جاهل، بانډيځي.
**بده :** د بد مؤنث، خرابه.
**بدي :** بد، ګناه، وران کاري، دښمني،
**بديع :** عجيبه، ناوياته، انداز، د يو علم نوم چې پکښې د کلام معنوي او لفظي خوبي بيان شوې وي.
**بډا :** شتۀ من، سرمايه دار، دولتمن، مالدار.
**بډائي :** کبر، غرور، لويي، فخر، دولت مندي، شته مني.
**بډوډے :** پښتورګے، ګرده.

**بډه :** بګه، د پرتوګ پاسنی حصه، په پرتوګ کښې د پرتوغاښ اچولو ځاے. د ځنې کلمو سره راځي لکه ډډه بډه.
**بډه بيره :** غټه بيره، سوابيره. د غټې بيرې يو قسم.
**بډي :** بډې اخستونکے، بډې مار، رشوتي، رشوت خور،
**بډې :** رشوت، ناجائزه پيسې.
**بذله :** لطيفه، ټوقه، مذاق، وشته، د خوش طبعې خبره.
**بر :** فالج، ګوزن، ميوه، حاصل، سور، عرض، پلنوالے. دا تورے د برکت سره هم راځي لکه بر برکت.
**برابر :** مساوي، يو شان، پوره، سر په سر.
**برابري :** مساوات، جوړښت، اتفاق، سمون. سموالے، يو شان والے.

**برات** : د شوقدر میاشت. حصه، برخه، د قرآن کریم یو سورت.

**برادري** : وروروليـــي. قامولي، عزيزولي.

**بُراده** : د لرګي يا وسپنې چُوره يا بُوره.

**براعظم** : د جغرافيې په اصطلاح کښې د خشکۍ لويه حصه چې پکښې څو ملکونه وي. اصلي معنیٰ لويه وچه.

**براق** : هغه سپين اس چې رسول الله صلي الله عليه وسلم پرې معراج ته تشريف وړے وهٔ. اصل معنیٰ سپين پړقيدونکے څيز،

**برامته** : د قرضې يا تاوان په بدل کښې يرغمال کښې اخستے څيز يا کس.

**برامد** : هغه تجارتي څيزونه چې له بوهٔ ملکه بهر ليږلے شي. هغه زمکه چې د سيند د غورځيدلو په سبب راوځي.

**برامده** : برنډه، منډؤ، دالان.

**برانګه** : کريغه، چغه، کريکه، کړيکه، د خر اواز.

**برايه** : تيره شپه، بيګانی شپه،

**برباد** : د اباد ضد، تباه، وران، ويجاړ، ضائع، عبث، خراب.

**بربادي** : تباهي، خرابي، زيان، تاوان، نقصان، فضول خرڅه، تاواني.

**بربريت** : وحشت، ظلم، زورزياتے.

**بربرى** : د بزو يو قسم چې ډير پی کوي، د غواګانو يو قسم چې ډير پی کوي.

**بربړو** : مست او برړيدونکے اوښ چې ويښتهٔ پرې لوې لوې وي.

**بربنډ** : لوڅ، لغړ، برمنډ، له ضروري سامانه محروم، بې حيا، بې شرمه،

**بربوړکی** : برپوکی،

بوړبوړکی، بربوزه.
**برله** : په اور کښې د وریتو شوو توریو، باتینګرو پخکړے چې عام طور سره پکښې ماستهٔ اچولے شي.
**برلټي** : د فوځ، پولیس یا بل کوم ملازمت په رجسټر کښې نوم لیکنه. هغه څیز چې د ځائے ډکولو دپاره استعمال شوے وي، ناپکاره، بیکاره.
**برج** : ټاری، اټاری، مورچه، ټاپو، برجل، د کوټې دپاسه هغه چاردیوارۍ چې د جنګ دوران کښې د مورچې کار کوي.
**بُرج** : د تقویم د علم له رویه د اسمان هغه دولسمه حصه چې نمر پکښې یو میاشت وي.
**برجسته** : چست، سم، بې ساخته،
**برجغ** : ډک، ډک پک، کښیمنډلے، تر خوکو خوکو ډک. تر خلې پورې ډک.
**برجل** : درشل، کور، چوکاټ،
**برجو** : پسان، برجي، د چاقوانو چړو تیرولو کانړے، باټ،
**برجی** : حدبندي، برید، د ختو یا کاڼو بوتکے.
**برچکے** : پیوړے، د تارونو هغه بند چې جینکۍ پرې ویښتهٔ سمبالوي.
**برچه** : نیزه، بلـه، بلم، د وسپنې یوه اوږده وسله چې تیرهٔ څوکه لري.
**برځیرن** : اوپره، برځیره، د سر دپاسه، سرسري، خطا، غلط شوے،معمولي.
**برځیره** : څرګند، ښکاره، جوت.
**برحق** : په حقـه، حق بجانب.
**برخاست** : ختمیدنه، بندیدنه، د کار نه لرې کونه، پاسیدنه، وچتیدنه.
**برخلاف** : په خلاف،

مخالف، په ضد، دښمن، په مخالفت کښې.
**برخوردار :** ځوی، بچی، فرمان بردار، اصل معنیٰ میوه خوړونکی.
**برخه :** حصه، برخه، د زمکې یوه ټوټه چې عام طور سره شپږ جریبه وي. قسمت، نصیب.
**برداشت :** زغم، ضبط، تحمل، وچتونه،
**بُردبار :** صابر،زغم کونکی، برداشت کونکی.
**بُرده :** مریئ، وینځه، غلام، کنیز، زرخرید،
**برزخ :** برید، پوله، حد. اصطلاحاً د جنت او دوزخ تر منځه مقام، د مرګ او حشر ترمنځه موده.
**برسات :** پشکال، د بارانهٔ موسم. د کوځې پټ کړے چت،
**برساتی :** بارانی، باران کوټ، د موم جامې کوټ چې په باران کښې اغوستے شي.
**برسنله :** د نیلوفر د ګل جرړې چې د پخکړي له پاره استعمالولے شي.
**بُرش :** له ویښتو یا داسې نورو ځیزونو نه جوړه د صفایی یوه آله چې د وړین ځیزونو د صفایی دپاره استعمالیږي، د مصورانو دپاره د ویښتو جوړ قلم.
**برص :** برګے، د یو مرض نوم چې پکښې په بدن سپین داغونه راپیدا شي.
**برطرف :** یو خوا ته، له ملازمت نه وښکلے شوے، شړلے شوے، معزول، موقوف.
**برعکس :** اپوټه، خلاف، الټه، اړولے.
**برغ :** غبرګ، برغد، دوه تهیزه، غټ پټ.
**برغنله :** کنډاؤ، شګاف، غټ زخم، ټوکړه، د لرګي هغه تنه چې ځاے په ځاے پریکړې شوے او بیله بیله

وي. بوټي بوټي،
**برغنلړے** : برغنډه، وړوکے پتړے، د کب د غوښې يوه ټکړه.
**برغو** : توري، شپېلۍ، سرنا، بيګل، نفير.
**برغول** : غبرګول، برغدول، دوباره کول، تکرارول، تهه په تهه کول،
**برغولے** : د لوښي پټولو دپاره سرپوښ، برغيلے، سرپوښ،
**برغونے** : غبرګونے جوړه پيدا شوو بچو کښې هريو. برغ برغ پيدا شوے.
**بوغه** : وصف، خوبي، ګټه، نتيجه، مطلب، غرض، ارام، دمه، ښهٔ والے، نيکي، فيض، نفع، آمدن، سود.
**برف** : واؤره، يخ.
**برق** : بجلي، رڼا، د تندر بريښنا،
**برقرار** : په خپل ځائے، باقي، نهٔ خوځيدونکے.
**برقع** : يو قسم پړونے چې د ستر ګو مخکښې پکښې جالي لګيدلې وي.
**برکت** : پريواني، فراواني، ډيروالے، نعمت، د خدائے فضل، ښه نتيجه، د تللو په وخت د وړومبي تلې دپاره وئيلے کيدونکے لفظ.
**برکتي** : د عزت خاوند، عزت مند، نيک بخت، طالع مند، خوشحاله، د اولاد خاوند.
**برګ** : دوه رنګے، څو رنګے، تور او سپين، مبروص، منافق، دوکه باز، چلباز، دوه ژبے، غصه شوے، قهريدلے.
**برګ** : د ځنې فصلونو لکه شفتل ريشکې وغيره د زرغونيدو يو وار.
**برګړندے** : برګړندے، عليک سليک، روغ جوړ، جوړ تازه، سترې مشې، بره ګره، ګره بره، د خير خيريت پوښتنه.

**برګه** : د چت ډاګه، هغه وړوکے لرګے چې په چت ایښوے شي. لاړے، لهړے.
**برګے** : د یو مرض نوم. مبروص، پیس وهلے، د پیس په ناروغۍ اخته، دوه مخے، دوه ژبے، منافق. د کورنو غوړو او پیو مرکب چې خلق ئ د طاقت دپاره څښي.
**برم** : زور، طاقت، وس، قوت، شان و شوکت، اوس صرف له برمه پریوتل ژوندے دے.
**برمانو** : یو ځنګلي حیوان چې د انسان په شان وي، بن مانس، ځنګلي بنیادم، ځنګلي او وحشي انسان، شهوت پرسته، شهوتي او مست سړے.
**برمته** : د چا نه په زور څۀ نیول، یرغمل، یرغمال، غصب کول، په ناجائزه په زور ایسارول، اغوا کول.
**برمحل** : په ځاے، په موقع، په وخت.
**برملا** : په جار، په ډاګه، ښکاره، ځرګند.
**برمه** : یوه آله چې ځیزونه پرې سوري کیږي.
**برناحق** : په ناحقه، بغیر له څۀ سببه، خامخا، بې وجې، وچ په وچه.
**برنډ** : نیغ کتونکے، غصه، پاریدلے، لټ، سست،
**برنډے** : چورلندے، دوک، برلندے.
**برنډه** : برآمده، دالان، منډاؤ،
**برنے** : بره سره نسبت لرونکے، پاسنے، پورتنے،
**برو** : د اوړې تود باد، جمع بروګانې.
**بروځه** : یو خودرو واښۀ چې اکثر په جماعتونو کښې اچولے شي. څپلۍ ترې جوړولے شي، د جامو وینځلو او نورو کارونو دپاره هم استعمالیږي.
**بروړه** : د وریږي په شان یو

ډرو کړې چينجې.

**بروه** : چغه، کريکه، فرياد، ژ ګيروړې، زبير ګړې،

**بـرهم** : پـه غـصـه کښې، نـاراض، قهـريدلې، قهـرژن، پريشان، ګډوډ، ضائع، پوچ.

**بـري** : د بـحـري ضـد، د وچې، صحرائي، ځنګلي،

**بـري** : ازاد، بې ګنـاه، بې قصوره، خلاص.

**بريا** : په لاس راغلې، موندلې شوې. د ډيـرې ستـومـانې د لاسـه د پـنـډيـو خـوږيـدل، د ډوډې يا ملا درد.

**بـريالې** : وچـت، اعـلیٰ، بر شـوې، کـاميـاب، فتحيـاب، غالب،

**بريان** : سوې، وريت شوې، الوې،

**بـريـالي** : خشـکـه وچې وريژې.

**بريد** : حد، پوله، حمله،

**بـريت** : د انسـان د بـرنى شونډې دپاسه ويښتهٔ.

**بـريتو** : هـغـه ځوک چې غټ بريتونه لري.

**بريښ** : درد، سـانګه، دړد، جلا، خلا، پړق، چمک،

**بريښنا** : پړق، رڼا، چمک، بجلي.

**بړې** : د بـر کيـدو حـالت، کاميابي، فتح، غلبه.

**بړ** : يـو قسـم ونـه چې غټې پـانـې او ګـڼ سيورې لري. د چرګانو مرزانو يا نورو مرغانو د جنګولو شرط.

**بړاس** : د اوبـو يـا بل مـائع څيز د حرارت په نتيجه کښې د ګيـس اختيـار کړې شکل، بخار.

**بړبړو** : په وچت اواز خبرې کـونـکـې، فـضـول خبـرې کونکې، بکواسي، بې مطلبه غږيدونکې.

**بـړبنګ** : اوتـر، کـاواکـه، وارخـطـا، بـې وقـوف، هـغـه سړې چې خلهٔ ئې پـه واک کښې نهٔ وي.

**بړبوکی** : د پیریانو ډولی، ګردباد، د باد چکر، خوړنی، حباب، د اوبو تناکه.
**بړچا** : په زوره خندا، بړقا.
**بړچ بړچ** : په زوره زوره.
**بړستن** : تولتک، تلتک، نالی، نیالی. بیکاره سوړ او ناراسته بنیادم.
**بړق بړق** : د خندا اواز، خټ خټ، کړس کړس.
**بړقندے** : پړقندے، څلان، څلاند، پړق وهونکے، ځلیدونکے.
**بړوا** : هغه سړے چې د ډمو په ګته ژوند تیروي. د ډمو دلال، د عصمت فروشو جینکو او ګډیدونکو جینکو د کار نګران، بې غیرته.
**بړوس** : مرور، غصه، کبرژن، خواشینے، چې مخ ئ پړسولے وي.
**بړه ګړه** : روغ جوړ، د حال احوال تپوس کول، بړ ګړندے، بړه ګړه.
**بړینګا** : زر ژړیدونکے، بیکاره، سست، کړمیژن. کوړ سترګے، چغر، بینګا.
**بړیخے** : ملګرے، مل، ډلیت، تکړه، مړنے،
**بړی** : وړی، د میو یا مهو د دالو او مسالو یا کله کله د دالو او قیمې نه جوړ کړې غونډارې یا وړې پکوړې چې د وچیدو نه پس د پخکړې په طور یا پخکړې کښې پکاریږي.
**بزاز** : بجاز، بجازي، کپړه خرڅونکے، بزازي، د رخت خرڅولو دکاندار.
**بزدل** : ډرن، تړن، د کمزورې زړۀ خاوند، بې زړۀ، ویریدونکے، .
**بزرګ** : ولي، عارف، د برخې خاوند، نیک سړے، د ډیر عمر سړے، مشر، د زیات عمر خاوند،
**بزغی** : غلونکے، غولنګه، غولنه، یوه وړه دانه چې اکثر په سترګه یا څټ راخیژي او

زوه کوي.

**بزکشي :** په افغانستان کښې د يوې لوبې نوم چې پکښې سوارهٔ له يوهٔ بله د حلال کړي چيلي د اخستلو کوشش کوي.

**بزګري :** دهقاني، د کروندې کار، کاشتکاري، د کرکيلې کسب.

**بزم :** مجلس، محفل، غونډه، خبرې اترې، جرګه مرکه، د خوشحالۍ مجلس.

**بزه :** هغه چينجے چې کپړې خورې،

**بږه :** شليدلے، څيرے، سورے.

**بړوه :** لومبړه، ترورړی، بړوی.

**بس :** کافي، پوره، تمام، بشپړ، فقط، دومره، ايله، هلے، چپ، ختم.

**بساط :** تيکرے، د چوسر يا شطرنج يا جواری کولو دپاره غوړولے څادر، فرش، د کور اسباب، پنګه، سرمايه.

**بستر :** بستره، اسباب، بيشتره.

**بسته :** تړلے شوے، عام طور سره د انګورو د هغه وړې دپاره استعماليږي چې ډيرې دانې ئ خپلو کښې ډيرې نژدې وي. د سيند يا ولې په غاړه د کر وچته زمکه. د کتابونو تړلو او سمبالولو کپړه يا کڅوړه،

**بسمه :** ذره، ټکړه، ټوټه، بکسکے، بکس، پوټسکے، خڅوخکے.

**بسيار :** ډير، کافي، بيسيار، زيات.

**بسيط :** فراخه، غوړيدلے، کشاده، د مرکب متضاد.

**بش :** تير، شاتير، هغه غټ او قوي لرګے چې په کوټو اچولے کيږي او لهري پرې پراتهٔ وي.

**بشارت :** زيرے، خوش خبري.

**بشاش** : تازه، خوشحاله، خوښ.
**بشپړ** : تمام، پوره، مکمل، تول، کافي.
**بشر** : انسان، بنیادم، بنده، آدم زاد، مخ، بشره.
**بشره** : څهره، مخ، شکل، حلیه، صورت.
**بشریت** : د بشر کیدو حالت، د انسان کیدو حالت.
**بشیر** : بشارت ورکونکے، زیرے ورکونکے.
**بصارت** : بینائي، دید، نظر، د لیدلو قوت.
**بصر** : سترګې، چشم،
**بصیر** : سترګور، د نظر خاوند، د الله پاک صفاتي نوم، ماهر، پوهه، هوښیار.
**بطلان** : باطلیدنه، دروغ.
**بطن** : نس، ګیډه، دننه، خیټه، رحم،
**بطه** : بته، بطخه، بطکه،
**بُعد** : لرې والے، دوري، فاصله، د نژدې ضد.
**بعض** : څهٔ، ځنې.
**بعضې** : وګورئ بعض.
**بعید** : لرې، وریا، فاصله،
**بغاوت** : د باغي کیدو حالت، له حکمه غاړه غړول، نافرماني کول،
**بغتې** : هغه غوټې چې د غاړې دواړو خواؤ کښې پیدا کیږي.
**بغرګ** : غبرګ، برغد، په یو لنګانهٔ کښې شوي دوه ماشومان، په یو ځاے دوه، دوه تهه، د یو څیز یا ځناور جوړه.
**بغری** : د شولو، بتهو وغیره د ټکولو د وسپنې یا کاڼي جوړه لنګری، د کاڼي چټو، بد کاره ښځه. د کنځلو دپاره استعمال کیدونکے تورے.
**بغسه** : ګورکښ، مړي خوړونکے، یو وړوکے ځناور،
**بُغض** : نفرت، کینه، دښمني.
**بغل** : ترخ، تخرګ، اړخ،

ثنګ،
**بغمه** : د اسونو يوه بيماري چې پکښې ئې له جسمه خولې رواني شي. د غاړې هغه داني چې هر وخت ترې اوبهٔ څاڅي. سا تربته کيدل،
**بغير** : سوا، علاوه، سوائي، بې له دې،
**بقا** : باقي پاتې کيدنه، پائښت، هميشګي، هميشه والے، زيات عمر دپاره پاتې کيدل، د فنا متضاد.
**بقايا** : باقي، پاتې شوې، عام طور سره هغه رقم چې لا ادا شوے نهٔ وي.
**بقر** : غوئے، غوسکے، غوا.
**بقړی** : بکړی، چغه، په زوره ژړا،
**بقيه** : پاتې شوې، پاتې برخه.
**بکارت** : د ښځې هغه حالت چې لا نر نهٔ وي پيژندلے، پيغلتوب، بچړتوب، .
**بکاين** : بکيانه، د يوې ونې نوم، بکايانه، شنډۍ،
**بک بک** : بکواس، بې مطلبه خبرې، عبث خبرې، د صراحي يا کوزې نه د اوبو رااړولو اواز.
**بکتر** : بختر، وره زغره.
**بُکرم** : د سنو يا سپنسو ټوکه کپړه چې ارته وبدلې شوې وي او د خُنو جامو په استرونو کښې پکاريږي.
**بکره** : پيغله، بکر. ډولچه، بَوقه، بوکه، سلواغه، بوقره، بوکره.
**بکړی** : يو سپين ځليدونکے کاڼے، د ميچنې لاندينے پل، له پوزې يا ميزرې نه جوړه ټوکرۍ چې خاوره پکښې وړلے شي. چيړ، هغه وچه ژاوله چې خنو ونو سره ښتې وي.
**بکس** : صندوق، پيټی. په لږ مقدار کښې، پوټے، ذره، پوټسکے، لکوټې.
**بکسوه** : ستن، فينګ،

پینګ، د وسپنې هغه میخکې چې د یو څیز د ترلو یا نښلولو دپاره په کښې کړی اچولې شوې وي.

**بکواس :** عبث او فضول خبرې، بک بک، بې مطلبه خبرې، خوشې خبرې.

**بکیړه :** جګړه، جنجال، لانجه، فتنه.

**بګار :** تبے، تپه، ترکه، داغ، غوړو یا تیلو کښې پیاز یا هوږه سره کونه او د هغې په ذریعه پخکړے داغونه.

**بګتی :** چاربیتي، د چاربیتې هغه شکل چې د مصرعو شمیر پکښې د چاربیتې نه کم وزن ئ نسبتاً ورو او موضوع ئ له چاربیتو مختلف وي. د بګتیو مصنف هم لکه د ټپو نامعلومه وي. خو څنو شاعرانو د خپلو کسرونو سره هم بګتی وئیلي دي.

**بګنال :** هغه وړه نرۍ شپیلۍ چې زرګران ئ ډیوې ته د زرو ویلي کولو دپاره وهي.

**بګوړ :** بګیل، تښتیدلے، پټ، بې غیرته.

**بګوړا :** کچه پنیر، پوڅه، خیدک،

**بګوړه :** قروت، کروت، کرت.

**بګه :** لال، ګنډه، ازار بند، پرتوغاښ، باګه.

**بګیل :** بګیلے، په جنګ کښې تښتیدلے، بګوړه، فوځ نه تښتیدلے.

**بګی :** ټانګه، ګاډے، د زړې زمانې خاص قسم ټانګه.

**بل :** د نور واحد، رقیب، دښمن، د خاوند دپاره د احترام ټکے.

**بل :** لمبه کونکے، لګیدلے،

**بلا :** بګلولی، ویرونکے څیز، مصیبت، تکلیف، د کمال خاوند. ډیر، زیات، بلها، په شمیر یا وزن کښې زیات.

**بلابتر :** ګډوډ څیزونه، د

متفرق نوعیت څیزونه.
**بلاد** : ښارونه، ملکونه د بلد جمع.
**بلاربه** : په ګېډه بچې لرونکې، حامله، ټنډه، امیدواره، بارداره، ښیرازه.
**بُلاره** : رابلنه، د مرزانو په ښکار کښې استعمالیدونکې یوه طریقه چې ساتلي شوي مرزان په خپل اواز نور مرزان رابلي. د ساتلو شوؤ مرزانو پنجرې چې په یوه ډانګه کښې ځوړندې وي،
**بلاغت** : د کلام بې عیبه او معنی داره ادائیګي.
**بلاکش** : محنت کونکې، تکړه، تکلیف، غم او مصیبت نه نهٔ ویریدونکې، تکلیف زغمونکې.
**بلاګی** : وړه بلا. شریره، ورانه جینی.
**بلاګے** : وران هلک، شریر، د ښځې او نر جنسي آله، د هر هغه څیز نوم چې اصل نوم ئ له ویونکې هیر شوے وي.
**بلبل** : یوه مشهوره ښکلې مرغی چې زړهٔ راښکونکے اواز لري. بلبله، عندلیب.
**بلبله** : وګورئ بلبل، د بلبل مؤنث. معشوقه، د پښتنو په خنو علاقو کښې د یوې ګډا نامه، یو قسم اتن.
**بلخے** : د بلخ سره منسوب، خور لم لرونکے ګډ، ناراسته، لټ، بیکاره.
**بلد** : اشنا، واقف، پیژندلے، شناختي، عادت
**بلدیه** : ښاروالي، د پاکستان او هندوستان د قانون سره سم هغه نمائنده تنظیم چې د ښار د صفایی صحت او نورو متعلقه کارونو انتظام کوي.
**بلغاک** : زور، چغار، شور، فریاد، نارې سورې.
**بلغم** : د پخوانې طب مطابق په څلورو مزاجونو کښې د یو مزاج نوم. د غاړې ټینګه

سلیبنناکه ماده چې د تهوځي پـه ذریعـه بهـر تـه راوځـي.
خراشکی، خروشکی، خرپ، خروپ، خراچکی.

**بلغمي** : د شنو چایو غونډه پیالی چې کنډهٔ نهٔ لري.

**بـلکې** : د عـربـی د حرف "بـل" او د فـارسـی د "کـه" مـرکـب چـې مـعـنيٰ ئې هم د عـربـی د "بل" ده. خو، مګر، لیکـن، په ځای د دې، سره د دې، د دې په مقابله کښې.

**بلل** : چاته په نوم اواز کول، دعوت ورکول، غوښتل، غږ کول.

**بـلند** : لوړ، وچت، جګ، بره.

**بلندره** : پـه شـزیکه د چا په کـور حـملـه کـونـه او د هغې دپاره د ملګرو رابلنه. اشر.

**بلندي** : د بلند کیدو حالت، لوړتیا، هسکوالی، وچتوالی.

**بـلنه** : میـلـمه کونه، دعوت ورکونه، غوښتنه.

**بـلـوتـه** : ډیـوټ، د ډیـوې ایښودو ځای.

**بلور** : ښیښه، آئینه، ځلانده، صفا،

**بلوری** : شیـنولی، مړدکی، د ماشومانو د لوبو مړدکی.

**بـلوسه** : حـمـلـه، چیړچاړ، مداخلت، ځان پارونه.

**بلوغ** : رسیدنه، د ځوانی او پیـغـلتـوب عـمر تـه رسیدل. بلوغت.

**بـلـول** : د بـل نـه مـصـدر، عـمـومـاً د اور سـره د لګولو، تیـزولـو او لـمبه کولو په معنو راځي.

**بلوه** : فسـاد، جنګ جګړه، بلوا، بغاوت.

**بـله** : بـلـم، وړه نیزه، برچه، شل،

**بلها** : بـلا، ډیر زیات په ګڼ شـمـار کښـې، پـه زیات وزن کښې.

**بلیغ** : بلاغت لرونکی.

**بـلیدل** : د بـل نـه مـصـدر،

عموماً د اور سره د لګېدلو او تیزېدلو او لمبه کېدلو په معنیٰ راځي.

**بلۍ** : بام، د بام غاړه، بنیره.

**بم** : یو ډېر دبې چې پکښې اور لګونکې، ډز کونکې زهرژن یا لوګې کونکې مواد ایښې وي او ایښوې، ښخولې او غورځولې شي یا له بره ارتاوولې شي. د باجې یا بل کوم ساز درونـد اواز، د دوکړی جوړه کښې هغه دوکړه چې غټ اواز کوي.

**بمبار** : بمونه غورځونکې، بمباري کونکې. غالب، زبردست، د نشې د انتها په حالت کښې.

**بمباري** : بمونه وررول، بمونه غورځونه.

**بمبره** : ډمډاره، غمبسه، ډمبره مچې.

**بمبل** : د جوارو د وړې غلاف، د جوارو ټانټه کښې بې دانو توکه، د جوارو په سر کښې راوتلې بمبلې،

**بمبو** : د وسپنې نه جوړه هغه آله چې د بورو نه پرې د نمونې څیز راوښکلې شي.

**بمبه** : د اوبو نلکه، هغه آله چې مائعات پرې راوښکلې شي.

**بن** : د ابن مخفف، ځوې، پسر،

**بن** : د خاوند ښځه، د خاوند ماندینه.

**بنا** : بنیاد، اساس، جړ، سبب، وجه، عمارت، اغاز، شروع، پیل، بندوبست.

**بنارس** : یوه ریښمي کپړه چې د تیلې تارونه پکښې اودلې شوې او په هغو ګلکارې شوې وي.

**بنارسي** : په ناویانو د اچولو دپاره د بنارس نه جوړ څادر.

**بناسپتي** : نباتات، د ځنګل پانې واښهٔ وغیره، نباتاتي مصنوعي غوړي، وناسپتي.

**بناوټ** : ټګي، جعلسازي،

فریب، چل، دروغ، جوړښت، تکلف.

**بنت :** جینی، لور، بچی.

**بنجاري :** هغه سړے چې کپړه یا منیاري په کوڅو کښې خرڅوي. هغه سوداګر چې سامان په سر ګرځوي.

**بنجر :** شاړ، غیراباد، هغه زمکه چې د کر لائقه نهٔ وي.

**بنځي :** د بنې لور، بنزی.

**بنځے :** د بن ځوے، د بنې ځوے.

**بند :** د ګوتو جوړ، اندام، اوبو یا سیلاب ته د منع کولو له غرضه جوړه پوله، قید، بندي، هغه تارونه چې دم کړي شوے وي. چپ غلے، خاموش، ممنوع، تم، ایسار، طریقه، ترکیب، تجویز، د نظم یوه حصه، تمبه، قبض، یو قسم ډبل روټی،

**بندبنا :** بندوبست، انتظام، سازش،

**بندر :** ګودر، بندرګاه، د سمندرونو او دریابونو په غاړه د کشتو د بار اچولو او ودریدو ځاے. پوله، سرحد، تکَ، پناه.

**بندرګاه :** بندر، د اوبو د جهاز د لنګر غورځولو ځاے.

**بندړ :** بندڼ، تړ، معاهده، قول، وعده، اقرار، عهد، تړون، تجویز، بندوبست.

**بندش :** بندبش، بندیدل، بندښت،

**بندګي :** عبادت، متابعت، مریي توب، غلامي.

**بندول :** تم کول، بندي کول، منع کول، ایسارول، قیدول.

**بنده :** مریے، غلام، خدمت ګار، انسان، بنیادم.

**بندي :** اسیر، قیدي، غلام، ترلے، ګیر، محبوس، بندیوان.

**بندي خانه :** جیل، قید خانه، زندان.

**بندیوان :** قیدي، اسیر، بندي، ګیر، محبوس.

**بندیدل** : قیدیدل، ایساریدل، قبض کیدل.
**بندیز** : ممانعت، قید، رکاوټ، بندش، پابندي، د نارینوؤ یو مرض، قبض، بند.
**بنډار**: د لویې خلې لرونکے شاړ کوهے.
**بنډاره** : د ګپ شپ په غرض د ملګرو راغونډیدنه، د چا د وژلو دپاره میلمستیا او غونډه، پکنک، سیل، میله.
**بنډل** : ډیر څیزونه چې په یو ځاے شلم ترلي شوي وي. خاص طور سره په کپړه کښې ترلي شوي ډیر څیزونه، بسته.
**بنسټ** : بنیاد، کنسټ، اساس، آر، تاداؤ، بیخ، ریښه.
**بنفشه** : بنوشه، چپیاکه، چتکی، یو مشهور بوټے چې واؤرینو غرونو یا د سیند په غاړه پیدا کیږي ګلونه ئ په دارو کښې پکارولے شي.
**بنګ** : هغه بوټے چې له پاڼو ئ چرس جوړیږي.
**بنګړه** : نڅا، ګډا، د خټکو د ګډا یو قسم.
**بنګړي واله** : هغه ښځه چې بنګړي خرڅوي.
**بنګړے** : هغه کړی چې زنانه ئ د ډول دپاره په لاسونو کښې اچوي.
**بنګله** : هغه کور چې یو چتیز وي او ورسره برنډه وي. ښائسته کور.
**بنګي** : د بنګو عملي، بنګ څښونکے، د بنګو نشه کونکے. هغه چوړے، خاکروب یا جاروکښ چې مسلمان نۀ وي.
**بنیاد** : اساس، بنسټ، جړ، جرړه، اصل، ویخ، بیخ،
**بنیادم** : سړے، انسان، آدم، د ادم اولاد، د عربی له بني آدم څني مخفف.
**بنیادي** : بنیاد سره تعلق لرونکے، اصلي، اساسي،
**بنیره** : بلی، د چت ژی، چجه، پارچال، سرماتے،

سرمنډیل،
**بن** : د لاون یا پیتی د ټینګولو دپاره د اوړو لیتی. د ګنو ونو جومپک.
**بنګه** : د بنې اسم تصغیر، پر، بنه، د مرغانو پخه.
**بن مانو** : ځنګلي سړے، وحشي، ځنګلي بنیادم، برمانو، یو قسم لنګور، شهوتي سړے.
**بنول** : جوړول، اوبدل، کټ یا کرسی په بوڼ یا نورو تارونو اودل. تعمیر کول، مرمت کول، بوڼ ګیول،
**بنه** : د مرغانو په بدن د ویښتو په ځاے ټوکیدلې ډیر سپک ځیزونه،
**بنیا** : وړۀ خرخونکے هندو بنیاګر، وړوکے دکاندار، د هندو صفتي نوم، کنجوس، شوم،
**بنیدل** : مچی پاریدل، غمبسې کتیدل، مچی یا غمبسې قهریدل، د مچانو وغیره بنهار ته وائي.
**بو** : د ماشومانو د ویرولو اواز.
**بُو** : وږمه، خوشبوئي یا بدبوئي،
**بواسیر** : یو قسم مرض چې په مقعد کښې دانې راوخیژي او وینه ترې ځي هغې ته خوني بواسیر وائي. او چې درد، بخار یا خاربښت کوي هغې ته بادي بواسیر وئیلے شي.
**بوبلا** : د بو او بلا مرکب چې دواړه ټکي یوه معنیٰ لري او معنوي تکرار ئ د معنې د شدت دپاره دے.
**بوبی** : د مشرې خور یا مشرې ښځې دپاره د احترام تورے، ببی. تندرسته ښځه، غټه ښځه.
**بوټاړ** : وربوز، د ځناور مخ، د نفرت او کرکې په ډول باندې مخ ته هم وئیلے شي.
**بوټاوه** : ګوتاوه، بُتاوه، ګتاوه.
**بوټکے** : ځلموټے، د ځلمي

توب تـه نـژدې، څواني تـه نـژدې. د پـنـاهـي وړو کـے ديـوال، هـغـه وړو کـے ديوال چې د ارتې د کانجن سر پرې پروت وي.

**بوتل** : کم عقل، بې عقله، بې مغـزه، د شيشې يا پلاستيک نه جوړ د مائعاتو د ساتلو دپاره يو خاص لوښے.

**بـوتلل** : بيـول، بوول، ځان سره روانول.

**بوته** : هـغـه مال چې په زور وړلے شوے وي. د لوټ مال، عـام طور سره هغه غوا، ميښې ګډې بيزې چې په زور بوتللے شي. هـغـه خاورينه پيالۍ چې زرګران پکښې زر ويلے کوي.

**بوتي** : ګوتي، د ماشوم د پيدا کيدلو نـه پـس هـغـهٔ تـه ور کيدونکے وړومبے خوراک.

**بُوتيدل** : غصه کيدل، خفه کيدل، مروريدل.

**بوتى** : د غـوښـې ټکره، د غـوښې چم، سره غوښه، هغه غوښه چې هډو کے نهٔ لرې.

**بوتيے** : هـر هغه شينکے چې د زمـکـې نه راټو کيږي تر څو چې ئې تنه پيدا شوے نهٔ وي. خش و خاشاک.

**بوج** : بار، پيټے، وزن.

**بوجکى** : وړه بوجى، وړه کڅوړه، بوجنګړى.

**بُوجه** : د هـرمـائـع لرونکي ظـرف د خـلـې بندولو دپاره د کـارک ، کپـړې يـا کـاغذ نه جوړ څيز.

**بـوجـى** : بـورى، ګـونـى، ګونى.

**بوچړه** : خـاشاک، خځله، د سوځولو وچه ګياه،

**بـوچے** : بـوچ، بـې شرمـه، بيباکه، بې حيا،

**بـوخت** : اختـه، مشـغول، لګيا، مصروف، نښتے.

**بـوخته** : هـغـه زمکـه چې سـرے پـکښې بـوختيږي يـا ښـخيـږي. هـغـه غوښه چې د پـخـلـي دپـاره پـه مـاستو او

مـصـالـحـو کښې ترسکونـه کړې شوې وي. لانجه، ګرانه کشاله، پیچیده خبره.

**بُود :** ګـټـه، حـاصل، نفع، فـائـده، عـام طور سره ناجائز. لیوه شوې بوساړه.

**بُودول :** ترلاسه کول، فائده اخستل، حـاصـلول، تر ګوتو کـول عام طور سره په ناجائزه باندې.

**بوده :** کـم عـقـل، د تنستې هغـه تـار چـې پـه سور یعنې عرض کښې لګیدلے وي.

**بُودیدل :** حاصلیدل، تر لاسه کیـدل، عـام طـور سـره ناجائزه طریقه باندې.

**بوډا :** زوړ، ضـعیف، زیـات عمر لرونکے.

**بوډۍ :** د بوډا مؤنث، مشره ښـځـه، زړه ښـځـه. هغه شین رنـګـے ملخ چې نرۍ ملا لري او وږدې پښې ئ وي.

**بور :** پـرانګ، سـوربـخن رنګ لرونکے توت.

**بُور :** د ځیـرلـو پـه نتیجـه کښـې راوتـونکې براده، وړې وړې ذرې.

**بورا :** په ګلونو ګرځیدونکے تـور ګـونـګټ چې خلهٔ ئ عام طـور زیـړه وي. رقیـب، تـور مخے سړے.

**بـورجل :** د نـاستې ځـاے، مقام.

**بورچنډه :** هـغـه ښځه چې اکـې یو ځوے ئ مړ وي. هغه ښـځـه چـې د تي ماشوم ئ مړ وي.

**بورړے :** ځلموټے، ځوانې ته نژدې.

**بُوره :** چیـنې، ترې، د لرګي د ځیرلو په نتیجه کښې راغلے سـفـوف، د اوړو نـه وتلې هغه حصه چې د ځناورو خوراک کښې استعمالیږي.

**بُوره :** هغه ښځه چې بچے ئ مـړ وي. هـغـه ښاروے چې بچے ئ مړ وي.

**بُوریدل :** اولاد مړ کیدل، د

ښځې بچي مړ کيدل.

**بوړے** : هغه لوښے چې خلهٔ ئې ماته وي. هغه سړے چې مخامخ غاښونه ئې وتي وي.

**بوزغلے** : د بوټو ذخيره، پنيري.

**بوزه** : د روژې ضد، کوژه، د وخت په تيريدو سره د څهٔ څيز سخا کيدنه،

**بوزى** : تربوزک، د مخ نه لوپتيه يا څادر تاوونه، مخ په لوپته کښې پټونه. تام بوزى،

**بوړنول** : ډارول، ويرول،

**بوس** : د غنمو، اوربشو د دروزې او پلالې يا نورو داسې وښو چوره چې د غوبل نه وروستو پاتې شي. پروړ، بې خونده، بې مزې، بې کاره، مرور، بوخ، پړسيدلے.

**بوساړه** : د بوسو هغه امبار چې په يوه خاص طريقه جوړ شوے او بيا ليو شوے وي. وهلے شوے، ښهٔ سزا کړے شوے. غټ او پيړ سړے يا ښځه، هر پړسيدلے او له معموله غټ څيز، دروغ خبره.

**بوستان** : د خوشبو ځاے، د ګلونو باغ، ګلستان.

**بوسه** : ښکلونه، چپى، پپه، کوکى.

**بوسيده** : سخا، زوړ، وروست.

**بوغره** : وړوکے کور، کوډله، خاوره. حدبندي،

**بوکره** : بوکه، بورکه، بورقه، ډولچه، ډولکه د کلکې څرمنې هغه لوښے چې د کوهي نه پرې اوبهٔ را ايستلے شي.

**بوکول** : تيتهول، پړمخ کول، داسې تيتهول چې د بدن لاندې حصه ئې بهر راوځي.

**بوکيدل** : تيتهيدل، په بوکه کيدل، پړمخ کيدل، داسې تيتهيدل چې د وجود لاندينى برخه بهر راوځي.

**بوګرمار** : د چا زمکه په تحفه کښې خوړونکے، بوګرے خوړونکے، بوګرے کونکے، هغه سړے چې د بوګري جاروګانې خرڅوي.

**بوګرے** : مچونی، هغه زمکه چې مالک ئې دهقان ته ورکوي او څۀ حاصل ترې نۀ غواړي. خود کاشت زمکه، وړوکے درمند.

**بوګړی** : هغه وازده چې دل یا شله ترې وبشکلے شي. وړه سپږه، کنه،

**بول** : ژبه، قول، وینا، لوظ، وعده، نیته، شهرت، داؤ. بولې، متیازې. د سندرې سر، بند، هغې کلمو ته وائي چې یو راګ پرې ادا کیږي. کله چې د څلور سره یو ځاے راشي نو معنیٰ ئې پښې وي لکه څلور بول.

**بوله** : پښي ارته، خوږه کاسه، پښه ماتې، کم عقل، ناپوهه، بې خبره، ناکاره، ناجانه.

**بولي** : د نیلام یا په بله داسې موقع غږ. د وادۀ نه پس د ناوې د پلار له خوا د ناوې میلمستیا.

**بوم** : سست، لټ، نارکه، ناکره، ناجوتي غوئے ګونګے، ګونګ، یو مارغۀ.

**بونجے** : بونګے، پوز پریکړے، هغه څوک چې پوزه ئې پرې شوې وي یا جزام خوړلے وي. مړاوے، مړڅپن،

**بونډے** : بونډے سونډے، لکی پریکړے، ږیره بریت خرئیلے، بونډ سونډ.

**بونسټ** : بنسټ، بنیاد، بیخ، اساس.

**بونګه** : د مال یا بنده د خلاصي قیمت، یرغمال.

**بوڼ** : د مونجو، میزري یا لوخې نه غښتلے شوے پړے.

**بوډل** : کټ کښې پړے غځول، کټ په بوڼ پټول،

کتې کښې بوڼ ګیول.

**بوڼي** : د دکان د پرانستلو نه پس ورومبی سودا، د سودا خرڅولو ابتدا.

**بویول** : د شامې د حس استعمالول، د شامې د حس په ذریعه د مختلفو څیزونو د بویولو او ښهٔ او بد تر منځه فرق کول، پته لګول، درک لګول، سراغ لګول، زړه خبره معلومول، موضوع روښانه کول.

**بویه** : د شک او اخلاقي قید دواړو دپاره استعمالیدونکے حرف، ګوره چې، شاید، باید، ګوندې، پکار ده، مناسب، ښائي،

**به** : غوره، ښهٔ،

**به** : د مستقبل د زمانې، ماضي شکیه، ماضي استمراري او جواب شرط جوړولو کښې استعمال کیدونکے حرف لکه "زهٔ به لاړ شم"، "هغه به راغلے وي."

**بها** : قیمت، بیعه، ارزښت، قدر، ګرانښت.

**بهادر** : بادر، نهٔ ویریدونکے، میړنے، دلیر، توریالے، غیرتي، ځوانمرد.

**بهار** : د ګلونو موسم، سپرلے، پسرلے، په شرقي کلاسیکي موسیقی کښې د یو راګ نوم.

**بهانه** : بانه، حیله، پلمه، چل، عذر.

**بهبود** : فائده، بهتري، ښیګړه، رفاه.

**بهتان** : د دروغو الزام، تهمت، تور.

**بهتر** : نسبتاً ښهٔ، ډیر ښهٔ.

**بهترین** : له ټولو بهتر، ډیر زیات ښهٔ.

**بهر** : ورچنې، د باندې، بار، باهر.

**بهرحال** : په هر حال کښې، خامخا، هر حال چې وي، بهر کیف، ارومرو.

**بهرلے** : بارنے، د ورچنې، بیرونے، باندینے.

**بهروپیا** : رنګ او شکل بدلونکے، دوکه باز، ټګ، مکار.

**بهره** : برخه، قسمت، نصیب، حصه.

**بهشت** : جنت،

**بهشتي** : جنتي، مشکي، سقه، بیشتي.

**بهیدانه** : د بهی دانه، بیدانه، د بهی تخم، د بهی زړے، هغه تورې تورې دانې چې د بهی په منځ کښې وي. د انګورو یو قسم،

**بهیر** : د چاوڼی خلق، د فوځ هغه حصه چې سامان وړي، د لښکر نۀ جنګیدونکې حصه،

**بهیدل** : جاري کیدل، روانیدل، د اوبو یا نورو مائعاتو حرکت کول، په ځناورو یا انسانانو دستونه لګیدل، احتلام کیدل

**بی** : زخمي، ژوبل، خوږ، د ماشومانو په ژبه.

**بي بي** : ښځه، میرمن، بیګم. د محترمې ښځې د درناوي نوم، هغه ښځه چې بې وادۀ ئې سر سپین کړے وي.

**بیا** : دوباره، بل ځل له، پس له دې.

**بیالي** : بیاتی، قینچې، قیچي، کینچي.

**بیاج** : سود، ګټه، د جنس په تبادله کښې هم هغه جنس اخستل، هغه غله چې په پیسو یا د آئنده ورکولو په وعده اخستې شوې وي.

**بیاسته** : رسی، پړے، غټ او مضبوط پړے،

**بیاض** : سپین والے، صفا والے، د یاداشت یا د حساب لیکلو کتاب، دیوان، د اشعارو کتاب، چاپ شوې فرمه کښې د حاشیې سپین ځاے.

**بیاموندل** : لاس ته راتلل، بیاموندل، پیدا کیدل، موندل.

**بیان** : وینا، خبرې، تقریر،

وعظ، د قانون په اصطلاح کښې د عدالت هغه خبرې چې مقدمې سره ئ تعلق وي.
**بیانګ** : د چمیارانو د لرګي نه جوړ هغه اوزار چې څرمنې پرې پلنولے شي.
**بیانول** : بیان تیرول، بیان کول.
**بیانه** : د پیشکي قیمت حصه، بیعانه، تهپي، تاپې سائي، سئ.
**بیجک** : بل، د پلورلي مال هغه رسید چې پوره تفصیل او قیمت پکښې لیکلے وي.
**بیرته** : برخیره، پرانستے، خلاص، واپس، لرې.
**بیړندے** : بیړه کونکے، تادي کونکے، تلوار کوندے، تیز، چالاک،
**بیړه** : تادي، تلوار، جلتي،
**بیز** : پسهٔ، چیلے، ځیرلے،
**بیزو** : سوپی، شادو، د بیز ماده.
**بیس بسیار** : ډیر زیات، پریوان،
**بیعنامه** : د زمکې، جائداد یا نوررو ځیزونو د خرڅون دستاویز، قباله، قواله.
**بیعه** : قیمت، سر، بیه.
**بیګار** : د زور کار، جبري کار، بې مزده کار، بې اجرته کار.
**بیګاري** : په بیګار کار کونکے، په بیړه بیړه کار کونکے، هغه سړے چې په خپله کار نهٔ کوي او خپل کار هم په بل کوي. د بیګار. جبري، په زور، بې مزده، بې اجرته، بې دیاړې.
**بیګو** : مرغ زرین، غرنے چرګ، سارانے چرګ، صحرائے چرګ.
**بیل** : جدا، جلا، یواځے.
**بیلول** : جدا کول، جلا کول.
**بیلیدل** : جدا کیدل، جلا کیدل.

**بیم** : د پاړوګانو د سُر یوه آله چې اکثر پرې ماران ګډوي.
**بیمار** : ناروغه، ناجوړه، رنځور.
**بیمارول** : ناجوړه کول، ناروغول، رنځورول.
**بیماریدل** : ناجوړه کیدل، ناروغه کیدل، رنځوریدل.
**بیماري** : مرض، رنځ، ناجوړتیا، ناروغتیا.
**بیمه** : په یوه خاص موده کښې د ځان یا مال د تاوان یا ژوبلې په صورت کښې د یو مقرر رقم د ادائیګۍ د انتظام معاهده چې عام طور سره د حکومت په ضمانت چلیدونکې کمپنیو سره کیږي.
**بینا** : هغه سړے چې نظر ئې لګي، د الله پاک یو صفت، د نابینا متضاد.
**بینائي** : د سترګو نظر، د سترګو رڼا، هوښیاري، هوښیارتوب. بصارت.
**بینی** : د دروازې د دواړو وروتو د مضبوط بندولو دپاره هغه لرګے چې ورته تړک وهلے شي.
**بې** : د "ب" حرف، د "ب" د حرف نوم. بغیر. غیر، پرته.
**بې ژبان** : ځناور، حیوان مطلق،
**بې شکه** : چې شک پکښې نهٔ وي. بې ګومانه، بغیر له شکه.
**بې شماره** : له شمار نه زیات، بې حسابه، له شمیره وتې.
**بې غیرته** : چې غیرت پکښې نهٔ وي. بې پته، دوس، بې ننګه،
**بې فائدې** : چې فائده پکښې نهٔ وي.
**بیکاره** : وزګار، فارغه، بې روزګاره، لټ، سست، نامرده.
**بیکسه** : یواځے، تنها،
**بې لوظه** : بې وعدې، وعده خلاف، بې قوله.
**بیوفا** : د وفادار ضد، قول او

وعده نهٔ ترسره کونکے.
**بیوقوف** : بـې شعوره، ناپوهه، ساده، کم عقل.
**بیهوشه** : چې پـه هوش کښې نـهٔ وي، چې په ځان نهٔ پوهیږي.
**بیباق** : ختمونـه، برابرونه، خلاصونه.
**بیباک** : بې ویرې، بې ترسه، بې ډبه، بې پروا.
**بي بي** : مور، ادې، مشرې خور یا ښځې تـه د خطاب توری.
**بیهار** : لین دین، لین دین، سوداګري، تجارت،
**بیهاري** : سوداګر، تاجر، بیهار کونکے.
**بیت** : جاسوس، شیطاني، مخبري، څارنه، د دوؤ مصرعو مجموعه، شعر چې یو مضمون لري. کور، ځاے، مکان، خونه.
**بیت الخلا** : ټټي، پاخانه، د اودس ماتے ځاے.
**بیټهک** : د کـور سـره جوخت د میلمنو دپاره جوړه کوټه یا کمره، حجره، ډیره.
**بیچون** : د خداے پاک یو صفتي نوم، چې مثال نهٔ لري.
**بیخرته** : ډیر زیات، پـه وزن، مقدار یا شمیر کښې ډیر زیات.
**بیخي** : لـه بیخـه، بالکل، قطعي، له مونډه.
**بیدار** : ویښ، د اودهٔ او غافل متضاد، چالاک، هوښیار، تکړه، باخبر.
**بیدارول** : ویښول، له خوبه پاځول، هوښیارول، پوهول، خبرداروول.
**بیداري** : ویښتوب، ویښه، بیداروالے، چالاکي، تکړه والے.
**بیداریدل** : ویښیدل، لـه خوبـه راپورتـه کیدل، هوښیاریدل، پوهیدل، خبرداریدل.
**بیدیا** : وچه میره، بیابان،

دشــت، صــحـرا، بیرون، بهر، ورچنې.
**بیرته :** خلاص، بـرخیره، پـرانستـے، لـرې، پـه فـاصله، بعید.
**بیرغ :** جـنـډه، عَلم، نشان، توغ.
**بیرون :** بهـر، بـار، ورچنې، څـرګـنـد، ښکـاره، بـربنډ، ویستلے.
**بیره :** د خوراک په سلسله کښې نوکر، خادم، خدمتګار.
**بیره :** یوه ونه او د هغې میوه.
**بیړا :** بـودلے، نـاپوهـه، کم عقل، شوده، ساده.
**بیړندے :** بیړه کـونکے، تـادي کـونکے، تیز، چابک، تند، چالاک،
**بیړی :** لویه کشتی، بحري جهاز، انکوټ.
**بیزار :** بیـل، ویزار، نا امیده، ناراض، خفه، زړۀ سترے.
**بیزارول :** ویزارول، بیلول،
**بیزاره :** ویــزاره، نـا امیده، لاچار، مجبور.
**بیسن :** بیسن، د چنو اوړۀ.
**بیشتي :** بهشتي، مشکي، په مشک کښې اوبۀ راوړونکے.
**بیګا :** تیـره شپــه، بـرائي، راتـلونکې شپه، د دواړو دپاره استعمالیږي.
**بیګانه :** پردے، غیر، اجنبي، بې میـنـې، هـغـه سړے چې محبت پکښې نۀ وي.
**بیګانی :** د بیګا سره متعلق، د تیرې شپې.
**بیګم :** ښځه، خاتون، ملکه، د مسـلـمـانـانو د څنو ښځو د نومونو لاحقه.
**بیـګمی :** د غـنـمو وریژو یو قسم.
**بیل :** د ګـنـو د ګـانی یا ارټ هـغـه وړد لـرګـے چې څـنـاور ورپورې تړلے شوے وي. یوم، د زمـکـې کـنستلو یوه آله چې بیلچه ئ اسم تصغیر دے.
**بیلات :** د ګـتـهـات متـضـاد، باثلل.

**بيل بيل** : جدا جدا، گوښې گوښې.

**بيلتون** : بيلوالے، جدائي، فراق، هجران.

**بيلچه** : هغه آله چې زمکه پرې کنستے شي. د بيل اسم تصغير.

**بيلدار** : د بيل او بيلچې نه کار اخستونکے.

**بيلول** : بيل بيل کول، جدا جدا کول.

**بيله** : د سيند په منځ کښې وچه زمکه، وچکی، ټاپو.

**بيليدل** : جدا کيدل، ځان له کيدل، گوښې کيدل، بيل بيل کيدل.

**بيينجو** : د گټار غوندې د موسيقۍ يوه آله.

**بينډۍ** : بنډۍ، بينگلی، يوه سبزي.

**بينک** : بنگر، بنک، د حکومت د قانون لاندې رجسټر شوے د رقم د تبادلې ځاے.

**بينوا** : بې اسرې، نامراده، ناکام،

**بيوړه** : غير مناسب، بې جوړه، نامناسب.

**پ** : (پـــې) د پښتـــو دریـــم حرف، د ابجدو په حساب ئ قیـمت د "ب" برابر یعنې دوه (۲) دے.

**پـابند** : ګـرفتـار، پـائ بند، تابع، مجبور، پابندي کونکے.

**پــابـنـدي** : ګــرفتــاري، مـجبـوري، بـنـدیــز، قـدغن، ښکیـلـونـه، ایسارونـه، پښې ترنه، التزام، په ځان لازمونه.

**پاپا** : بـابا، پلار، داجي، والد (د ماشومانو په ژبه)

**پاپړ** : د میو یا مهو له اوړو نه جوړه یوه نرۍ چپاتۍ چې د تـلـولـو نـه پس ډیره کرپندی شي.

**پاپلې** : پـاپـلې، پاپی، پلی، د مـاشـومـانو پـه وړومبي ځل د ګرځولو دپاره وئیلے کیدونکے تورے.

**پاپلین** : یوه سوتي کپړه.

**پاتاؤ** : لـوے نهر یا لویه وله، لویه بیاله، ستره وله.

**پاتې** : پاتې، پس مانده، پاتې شـوے، بـقـایـا، نـاکام، ایسار، اټال، معطل،

**پاتړ** : لـوښے، د ماشومانو یا بیمارانو دپاره د متیازو لوښے.

**پاتک** : د لرګو وسپنې او سیـخـونـو نـه جوړه دروازه، پیـره، کیړ، جندر، د حکومتي مـحصـول دپاره د ودرولـو ځاے،

**پـاتـلی** : د اور د ګـاډي د چلـولـو دپـاره د وسپنې هغـه راښـکـلـې د دوه خـطـونو لار چـې ســرونــه ئ نـهٔ یو ځـاے کیږي. پټړی، پټلی.

**پاتې** : پیټار، پیټاره، پنډیر،

**پاټے** : پټـاخه، پټاره، پټاخ، په لینده کښې د کاڼي ایښودو ځاے. جلب، لګام، واکې،

**پـاجامه** : پـائـجـامه، تنګ پـرتـوګ، عـام طور سره د شپې اغوستے شي.

**پاچړ** : سـخا، خسا، خیرن، ناولے.

**پـاځول** : وچتول، ودرول،

ولاړول، جګول، بیدارول، له خوبه ویښول، لیکلے شے لوستل.
**پاڅه** : له پاڅیدل نه امر، چې د تعجب د کلمې په طور استعمالیږي.
**پاڅیدل** : وچتیدل، ودریدل، ولاړیدل، جګیدل، له خوبه ویښیدل، بیداریدل، قبضه پریښودل، الوتل.
**پاخانه** : ټټی، د اودس ماتے ځاے، بیت الخلا،
**پاخهٔ** : د اومهٔ ضد، پوخ شوے څیز، تجربه کار خلق، هوښیاران، رسیدلي، کلک، مضبوط، د پوخ مغیره حالت، له خښتو جوړ شوي.
**پاده** : ګواره، ګوېر، پوده، ګورم، د څناورو ګله.
**پار** : د وار تابع مهمل. چابي، کونجي، کنجي، کلي، چمتها، نوسے، د وخت اندازه، شومه، حصه، برخه، د ورځې او شپې د اتو برخو نه يوه برخه، درې ګینټې، وس، طاقت، توان، اختيار، اقتدار.
**پارچاؤ** : د ژرندې د ناوې سره نژدې ناوه چې د ژرندې د ودریدو نه پس پرې اوبهٔ رواني وي. پارچاوے.
**پارچاوے** : د اوبو د اړولو هغه لار چې د هغې په جارې کولو د ژرندې په ناوه کښې د اوبو تلل بند شي.
**پارچوړ** : ټانګر، تانګر، هغه ګیاه وغیره چې څارويَ ئ پریږدي. د څاروو پس خورده.
**پارچه** : ټوټه، ټوکړه، ټکره، کپړه، رخت.
**پارڅنګ** : اندرپایه، درم پایه، سیړی، د لرګي پوړی، پوړخنګ، پاړکے.
**پارسا** : متقي، صالح، نیک، پرهیزګار،
**پارسنګ** : پاړسنګ، کڼاوې، هغه وزن چې د تلې د برابرولو دپاره په تله کښې

ایښوے یا ډنډی پورې تړلے شي. هغه وزن چې تله کښې د بې ایمانۍ او د ګاهک د غولولو دپاره ایښوے یا ورسره تړلے شي.

**پاروګی** : ږمنځ، منګز، ګومنز، یوه غاښونه لرونکې آله چې ویښته وړی یا پشم پرې بیلولے او صفا کولے شي.

**پارول** : وچتول، چیړل، لمسول، پورته کول، قهرول، جنګ جګړې ته تیارول، ساتل، پرورش کول، حفاظت کول.

**پاره** : ټوکړه، ټکړه، پارچه، شلیدلے، څیرے، بڅه، بهره، څوکی. یو نقرئي عنصر چې په عامه درجهٔ حرارت کښې مائع وي، ایتهمي شمیر ئې اتیا دے.

**پارینه** : زوړ، پخوانے، قدیم، لرغونے.

**پاریدل** : قهریدل، جنګ ته تیاریدل، غصه کیدل، ژوندے وسیدل، بچ کیدل، پرورش کیدل.

**پاړ** : کوډې، منترې، جادو، سحر. د لرګي یو وړه او پلنه تخته چې د ګرګې یا غونډ نه په مشین یا اره بیله کړې شي او بیا ترې تختې جوړوي.

**پاړسوب** : پړسوب، په حجم کښې زیاتیدنه، د هوا د ډکیدلو په وجه د حجم زیاتیدنه، د مرض په وجه په بدن کښې پړسوب پیدا کیدنه.

**پاړکے** : قطعه، شعر، بیت، ټوټه، فال، بخت، طالع.

**پاړو** : هغه آله چې د میزرې څپلی پرې جوړولے شي. پاړوګر، د مارانو ووده کونکے، دم، وودہ، منافق، بدچلن، چلباز،

**پاړوګر** : پوړیګر، مارګیر، جادوګر، پاړو،

**پاړه** : د دوؤ کیلو په منځ کښې د اړولو نه پاتې شوې د پټې حصه، په کار کښې

نیمګړتیا،
**پازیب** : پینزیب، پایزیب، د ښځو یو کالی.
**پاس** : پورته، وچت، بره، جګ، هسک، زیات.
**پاسبان** : پاسوان، څوکیدار، پیره دار، دربان، ساتونکی، حفاظت کونکی.
**پاستهٔ** : د پوست جمع، نرم،
**پاسداري** : لحاظ ساتنه، خیال ساتنه،
**پاسنی** : برنی، د بره، لوړ، د وچتې علاقې وسیدونکی،
**پاسه** : اصلي او سوچه سرهٔ زر چې له هیڅ قسمه ګډون پکښې نهٔ وي شوی. کره، روغ، رښتونی،
**پاسه** : پورته، وچت،
**پاشل** : نوستل، شیندل، دوړول، شنل، دانه دانه کول، خوروول، غورځول، تار په تار کول، خفه کول.
**پاغنده** : د نداف وهلی شوی مالوچ، غیبه چې عام طور سره ئ شکل غونډ وي. هر یو نرم او سپین څیز.
**پاک** : د پلیت ضد، صفا، سوتره، خالص، بې عیبه، بې ګناه، نیک، خوش اخلاقه، نمانځي، مکمل، بشپړ،
**پاکباز** : نیک، پرهیزګار، متقي، پاکدامن.
**پاکړه** : پلاڼ، د اوبش کته،
**پاک ساک** : کم عقل، نادان، ساده، معصوم، بې ګناه، صفا، سوتره، وینځلی.
**پاکول** : صفا کول، سوتره کول، خیری لرې کول، وینځل، پلیتي لرې کول، خبره سپینول، حساب کتاب بیباقول، اچه کول.
**پاکي** : پاکیزګي، پاک والی، صفائي، سوتره والی. د نایانو چاړهٔ،
**پاکیزګي** : وګوري پاکي.
**پاکیدل** : صفا کیدل، نمانځي کیدل، سوتره کیدل، وینځلی کیدل، د حساب

کتاب بیباقیدل، گناهونه توئیدل، پلیتي لرې کیدل.
**پاګل** : لیونے، سودائي، ناپوهه، کم عقل، نادان، دیوانه.
**پاګل خانه** : د لیونو د علاج او ساتلو ځاے.
**پاګن** : پګن، د فصلي کال یولسمه میاشت چې عام طور سره د فروری، مارچ سره مطابق وي.
**پالان** : کته، پالان، ساروان، ساربان.
**پالتو** : فالتو، ډیر، اضافي.
**پالش** : د پیزار، فرنیچر او ورونو وغیره پرقولو او ښائسته کولو رنګ، ځلا، پرق، روشنائي، روښوالے، چاپلوسي، خوشامندګر.
**پالشي** : پالش ور کونکے، چاپلوس، خوشامند ګر، چالاک.
**پالک** : چرګ سابهٔ، وړدې او پلنې پاڼې لرونکے ساګ.
**پالکوړے** : له میزري جوړه هغه تیلی چې زمیدار پکښې رمبے او لور وغیره ږدي. هغه کوټه چې د زمیداری اسباب پکښې پروت وي.
**پالکی** : یو خاص قسم ډولی، چوپان. یو قسم چینجے، منا، مناګی.
**پالل** : پرورش کول، لویول، تربیه کول، پالنه کول، دوستي کول، حق ادا کول، په عاجزی او خاکساری سره د چا خدمت کول.
**پالنګ** : چپر کټ، کټ.
**پالوان** : پهلوان، کبډمار، د کشتی ماهر، طاقتور، مضبوط، غټ، بهادر، تکړه.
**پالوده** : فالوده، د پخې او چک کړے شوې ناشستې مینچې چې د واؤرې شربت سره په یو ځاے خوړے شي.
**پاله** : پال، سسپار، سسپال، په یوې کښې د زمکې ځیرلو

د وسپنې آله.
**پالیز :** د هندوانو، ختکو، خربوزو یا بادرنګو باغ.
**پام :** فهم، خیال، فکر، هوش، احتیاط. د اتڼ سره یو ځای سندره وئیل، د ورېدو پاڼو لرونکې د کوپرې یا کجورې شان یوه ونه.
**پامال :** پائمال، د پښو د لاندې مښلې شوې. چتۍ، چخۍ.
**پامته دار :** حاجت من، محتاج.
**پاملرنه :** فکر، خیال، تدبیر، توجه، احتیاط، څارنه، ساتنه، اتیات،
**پان :** پاند، پلنې پاڼې لرونکې یوه ونه او د هغې پاڼې چې کته او چونه پرې لګوي او تماکو، چالیا او سپین لاچې پکښې ونغاړي، د تاش له څلورو رنګونو څنې هغه سور رنګ چې په پاڼو ئ د پان د پاڼې تصویر وي. تپان، پاند، پیکه ګنې چې د څاروو د خوراک دپاره استعمالېږي.
**پانجشنبه :** پنجشنبه، پانشنبه، له جمعې نه مخکښې او د چارشنبې نه پس ورځ،
**پاند :** وګورئ پان.
**پانډي :** پنډی، پیټوارے، پیټي یا پنډونه چلونکے.
**پانزیب :** پینزیب، د پښو یو کالے.
**پانسي :** تیزندي، زندی، سولی، په ځوړنده وژنه، غرغره، دار.
**پانوس :** د فانوس عامیانه قرأت، وګورئ فانوس.
**پانه :** فانه، چیني، چنی، د لرګي یا وسپنې هغه ټکړه چې د لرګي څیرلو په وخت پرې د لرګي درز ارتولے شي. هغه سکنجه چې ملزم پرې د جرم په اقرار آماده کولے شي. شپیته، هغه لرګے چې د دروازو په چوکاټونو د کټونو په چوړونو کښې د مضبوطیا

دپاره ور کولے شي.
**پاڼ** : نیم سیر وزن. منا، مناګی، د وسپنې اوبهٔ، آب، د پتې پوله، سریښ، سلیښ، ګوند، هغه پټرے چې د غم یا بیمارۍ په حالت کښې ئ شوندېږ نیسي، پوتکے، پوټ، پټ،
**پانکی** : پاټکے، د اندرپایې دستکے، اړیکے،
**پانه** : په ونې، په بوټې یا ګل زرغونه شوې پخه چې د هغې په ذریعه دغه نباتات خوراک حاصلوي. د جارجر په خلهٔ دپاسه نرے پترے. د تاش پته، د کتاب مخ،
**پانی** : په زمکه رابښکلې هغه دائره چې ماشومان پکښې غوزان یا مرد کي ږدي او د ټیک په ذریعه چې کوم غوز یا مرد کے وباسي نو هغه وګټي.
**پاؤ** : څلورمه حصه، څلور چیتاکی، څلور انې، پنځلس منټه، شپږ جریبه زمکه.
**پاورقه** : حاشیه، شرحه، د صفحې اخرینی برخه، فټ نوټ.
**پاوکے** : د پاؤ اسم تصغیر، د خیرات یا نذر د پاره د سړي په سر پاؤ غله راټولونه.
**پاولے** : جولا، په کلهٔ کپړه جوړونکے.
**پاونده** : ګوجر، غوبه، څاروي پیاونکے، پونده، کوچے، کله په سر، خانه بدوش.
**پاویزه** : د پاؤ پیو پیمائي لوښے،
**پاوے** : د پاؤ د وزن کاڼے.
**پاهه** : پته، د زخم پټی چې ملهم پرې لګیدلې وي.
**پائي** : جلب، پیزوان، تیزندي، پانسي، یوه پخوانی سکه، د زرې پیسې دریمه، د انې دولسمه .
**پایاب** : سیند، ولې او تالاؤ وغیره کښې دومره اوبهٔ چې

پښــه تــل سـره لګي. پـايـاؤ، پاياوه، چړ، ګودر.

**پـايان** : انـجام، انتها، ښكته برخه،

**پــايـاو**: وګــوری پــايـاب.

پيــاوړے، ميــړنــے، تيــزرو، زوراور.

**پـايه** : درجـه، مـرتبـه، رتبه، عـزت، قـدر. د ډرى په ذريعه حـركـت وركـونـكې د غونډ شكـل هـغـه آله چې عام طور سـره ګـاډيـو وغيـره كښې استعماليږي.

**پایٔ** : انجام، اخر.

**پایٔ تخت** : پـايه تخت، د باچا د ګدی ځایے.

**پائنځه** : پينځه، پوچه،

**پائيدار** : مـضبوط، ټينګ، كلك، محكم، پوخ،

**پــائيدان** : پيـدان، د پښـې ايښولو ځایے، موټر، ټانګې يا بـلې كومـې سورلـى تــه د ورختـلو دپاره د پښې ايښولو ځایے.

**پــائيدل** : ژونــدیے پـاتې كيـدل، ژونـډ كـول، له مرګه بچ كيدل.

**پـائيكو** : پيـكـو، د مينځو د جوړولـو يـو مشيـن، د شـولو صفا كولو آله،

**پائينځه** : پينځه، پيڅه.

**پــائينده** : پــائيـدونـكے، پــائيـدار، مـضبـوط، قــائـم، محكم. پاتې كيدونكے.

**پپ** : هـغـه مـخروطي شكل لـرونـكـے د نـاوې په شان آله چې دكــانـدار پـرې پـه لفافو كښې سودا اچوي.

**پپړ** : پـلن، څپاړ، څپړ، ټپړ، هـغـه شے چې بې ډولـه وړد وي،

**پپو** : ترور، د پلار خور.

**پپه** : پپــي، پپى، چچى، كـوكـى، د مـاشـوم ښكلونـه، مچكه، مچه. روټى، نمړى.

**پت** : پــم، د خـاربښت يـو رنـخ. نـاموس، عزت، عظمت، وقــار، آبـرو، وفـا، د دوستى

پالنه، دود، دستور.
**پتاسه :** پتهاسه، دشلمه، تشلمه، خوږه او کرېږدونکې د بوړبوکی په شان یوه متائي چې په مختلفو رنګونو کښې جوړيږي.
**پتاوه :** پاتابه، جرابه، غړې، پنډوغړې. د پنډو ترړلو دپاره له وړغنو جوړه کړې پټۍ، پيتاوه،
**پترکې :** د زخم خيږ، پترې، د وسپنې وړوکې پترې، توتنکې، توتنې،
**پترلاک :** د لاکو يو قسم.
**پتری :** د ګنو او نورو داسې بوټو وچې پاڼې چې د سوځولو او د څاروو د خوراک په کار راځي.
**پترې :** د پوزې يو کالې، ميخکې، د سرو سپينو وړې وړې پاڼې چې مختلفو کالو کښې استعماليږي.
**پتلون :** د مغربي ملکونو د وسيدونکو پرتوګ، پينټ.
**پتمن :** غيرتي، پتي، د پت خاوند، عزت من، ابرومند،
**پتنګ :** اورپښتې، پتن، الوتونکې يو وړوکې چينجې، عاشق، مئين. باديوه، کانکوک، ګوډۍ،
**پتنوس :** تړې، د چايو، شربت يا بل داسې کار د سامان د وړلو دپاره استعماليدونکې مجمه. فتنوس، فطنوس.
**پتنه :** فتنه، کينه، دشمني، بغض، جګړه، شيطاني، عداوت، مخالفت، فساد، غوبل، شور.
**پتن :** پتنګ، اورپښتې،
**پتون :** ورون، د پښې هغه حصه چې د زنګانه له سترګې تر مغانو پورې وي.
**پته :** درک، ځاې، ادرس، هدف، څلې، نښه، معلوم. لهه، ليهه، خړه، متهه خړه، متينه خاوره، هغه ختهه چې د سيلاب نه وروستو پاتې شي.
**پتې :** شراکت، کاروبار

کښې برخه، د ځنو څیزونو پاڼې مثلاً د چایو پاڼې.
**پتیره** : د خمیره متضاد. هغه اخیستلي اوړهٔ چې د تخمیر عمل پکښې نهٔ وي واقع شوے.
**پتیله** : د ارتې خلې دیګچے.
**پتې** : پاڼې، د چایو پتې، د تاش پتې.
**پټ** : پوټ، پوتکے، پوستکے، څرمن، د ونې وچ پوستکے،
**پټ** : پناه، په نظر نهٔ راتلونکے، د ښکاره ضد، د لوڅ متضاد،
**پتاخ** : پتاره، په لیندهٔ کښې د کانې ایښولو د څرمنې جوړه پتۍ،
**پتاخدار** : پتاخه لرونکے، د پخوانی زمانې د دارو او پتاخو توپک، پتاقدار، پتاخیدار.
**پتاخه** : د آتش بازی یو څیز، د کارتوس پیشه، پتاقه، شوخه مسته جینی، چالاکه ښځه یا جینی.
**پتاری** : تونګی، تونۍ، تونګ.
**پتاس** : د پوتاش یو مرکب، باروت، د کارتوس دارو، پوتاشیم پرمنګنیټ، سرهٔ دارو چې په زخمونو لګولے شي او یا پرې زخمونه وینځلے شي.
**پتاکے** : پتاخ، پاتے، د لیندې پاتے.
**پټ پتانے** : پټ پټونے، د ماشومانو یوه لوبه.
**پټ پنا** : پټ او یو خوا ته. پوشیده، راز، سازش.
**پټ پنهم** : خفیه، پټ پنا، د نظر نه په ډډه.
**پتخ** : کلک، پتوخ، مراوے، د زوال له عمله تیریدونکے. زوړ، باسي.
**پتخه** : سرمایه، پنګه، پانګه، هغه سرمایه چې پټه ساتلې شوې وي، مورې،

خر ګی، پشکالی ګونګټه، بخملی.
**پټرول** : له زمکې راوتونکې یو خاص قسم تیل چې د صفا کولو نه پس د مختلفو انجنونو د چلولو دپاره پکاریږي.
ګشت.
پټکه : درکه، کاوړه، دوړه دباؤ، پټله.
**پټکے** : زنانوال څادر، د اغوستلو څادر، لونګی، پګړی، دستار،
**پټمخے** : ګونډې مال، د غنمو هغه دانې چې د غوبل نه پس په وړې کښې پاتې شوې وي. ګونډے.
**پټن** : وګوری پتنګ. غم، ماتم، ژړا، ویر.
**پټو** : څادر، پیړ وړین څادر،
**پټوار** : د زمکو د کچ میچ علم، د پټواري پیشه. جریب کښ، جریب ګوندے،
**پټوار خانه** : د پټواري د ناستې ځاے،
**پټواري** : د حکومت له طرفه د زمکو حساب کتاب ساتونکے، جریب کښ،
**پټوالے** : ناڅرګند، پوشیده، د څرګندولو متضاد.
**پټوخے** : پټخے، پټخے، د کب په بدن وړې وړې غونډې نښې.
**پټوسکے** : لږ، ډیر کم، پوټسکے، پیسانې، بکسکے، بکس.
**پټول** : د بدن د ځنو حصو هغه عمل چې زخم یا دانه کښې نو پیدا شي، لکه اوبۀ پټول. کوټه، دالان یا بل کوم ځاے باندې لرګي اچول، چاته جامه ور اغوستول. د بل چا مال په دوکه د هغۀ له ملکیته وښکل، غلا کول، د څه څیز دپاسه داسې پرده اچول چې هغه ترې نۀ ښکاري.
**پټولے** : څادر، پټو، وړین څادر، شال، پړونے. پټون،

هغه ځای چې ښکارې ترې دز کوي.

**پټه** : د چرې، تورې او توپک د کڅوړې تسمه، پتاخ، د نایانو د چرې تیرولو څرمن، د سپې د غاړې پټی،

**پټه** : د پټ مؤنث، پوشیده. مخفي، پنهان.

**پټېدار** : لکیر دار، رنګینه، پټې پټې، پټې لرونکی.

**پټېدل** : د څر ګندېدل متضاد، یو خوا ته کېدل، د څهٔ څیز دپاسه داسې څهٔ اچولې کېدل چې هغه ترې نهٔ ښکارې. د بدن د څنو حصو هغه عمل چې زخم یا دانه کښې نو پیدا کیږي.

**پټیره** : شاه تیر، بش، بینش، چالي، کړی، تیر، ویشه، تمبې، دړه، بوټې، وګړې.

**پټی** : د پرهر دپاسه ترلې د کپړې ټوټه، پاڼ، پوڼه، د الف بې پټی، د ماشومانو سر ترونې، تخته، د ملا ترلو پټه، د کپړې وړده ریښه، نوار، پتهار، د مرزو نیول جال، د پښې ترلو تسمه، څناورو ته غاړه کښې اچونکې پټه.

**پټې** : د کر کروندې قابل د زمکې ټکړه. زرعي جائداد.

**پجه** : په سیند کښې د جمع شوو ګرګو ځای،

**پخ** : زخم، پرهر، شګاف.

**پچاړی** : ورروستو، شاته، هغه رسی یا پړی چې د اس ورروستو پښو ته اچولې شي. پیچوارې، پچواړی.

**پچموزه** : ملنډه، مسخره، پیشاړه، ټوقه، وشته، ټټوبه،

**پچنه** : پچ، د حجامت چاړهٔ یا مشین، د حجامت له وجې په مخ زخم جوړیدنه، چرې سره زخمي کیدنه.

**پچواړ** : د خبرې ورروستې سر او دنبال، د بارانهٔ د باد او سیلې په زور دننه راتلونکې څاڅکې. پاچړ.

**پچولې** : ډیر وړوکې،

پیچوڼے ،پیچوڼے.
**پچه** : د کدو، چیلو، اوښانو، سویو، او اوسیو وغیره فضله چې یو خاص شکل لري. د بنیادم کلک او وچ بول.
**پچی** : ټوکری، د میزري نه جوړه د ارتې خلې شکرې. د بادرنګو، ختکو، هندوانو او نورو سبزو وغیره کچرې.
**پخ** : د تیرهٔ ضد، هغه څیز چې تیرهٔ نهٔ وي. سست، بیکاره.
**پخول** : د تیرول متضاد، د غوڅولو نه ایستل، د چاقو، چړې د زیات کار له کبله خلهٔ اړول، له پریکولو ایستل.
**پخیدل** : د تیرهٔ اوزار تیزوالے کمیدل، لټیدل، سستیدل،
**پخ** : ګنجے، پخنتوب، پمن والے، ګنجے توب. د اوښانو یوه بیماري. پم.
**پختګي** : د پخته کیدو حالت، کلکوالے، پوخوالے، مضبوطوالے، هوښیاري، تجربه کاري.
**پخته** : پوخ، کلک، مضبوط.
**پخساک** : پسخاک، کړاک، کړاو، زړهٔ چاودون، خوراک.
**پخکړے** : نګولے، اینګولے، لمده بل، لاوڼ، سالن، پوروڼے، ترکاري، پخه کړې شوې ترکاري،
**پخلا** : د مرور متضاد، رضا، دلاسه، خوښ، خوشحاله،
**پخلے** : د پخول مصدر نه اسم، اخلے پخلے، انډې کونډې، تاکید، پشتي، کلکوالے،
**پخن** : په سر کښې پخې لرونکے، پشم دار، بنې یا پخې لرونکے.
**پخنے** : هغه ماشوم چې پخې پخې خبرې کوي، پوخ، مشروټ.
**پخوا** : تیره شوې زمانه، هغه

واقعه چې د حال له زمانې نه مخکښې تيره شوې وي. اګاهو، اول، وړومبے. د اوس متضاد.

**پخوانے** : د اوسني متضاد، لرغونے، نرغونے، څنلړنے، وړومبے، د پخوا سره نسبت لرونکے.

**پخول** : د پوخ نه متعدي مصدر، اخلے پخلے کول. په اور کښيښنودل او خوړينول، د خبرې کلکول او ټينګول، ژبه کول، وعده کول، په څۀ کار کښې ماهر کول،

**پخوندے** : د شاروو د پښو تړلو کړی، پخندے، يو قسم پسول،

**پخه** : د پوخ مؤنث، په اور حرارت يا وخت تياره شوې، سوے لوے، پخه شوې، عمر خوړلې ښځه. بروډی، زړه.

**پخيدل** : د بدن د څنو حصو د بيمارۍ په وجه سور رنګ اختيارول، د اوم څيز په اور يا حرارت يا د وخت په نتيجه کښې تکميل ته رسيدل، د خوړلو د څيز د خوراک دپاره تياريدل، په عمر کښې زوړوالي ته رسيدل، د ميوې يا فصل شوکولو يا لو ته جوړيدل، ختيکيدل، کتيدل،

**پلدر** : ابا، پلار، عام طور سره ميانديې خپلو کښې ځامنو ته د خپل خاوند په باره کښې طنزاً وائي.

**پديد** : ښکاره، ظاهر، نمايان.

**پر** : ښکه، ښه، وزر، کونځر، پخه. دپاسه، په، باندې،

**پُر** : د خالي متضاد، ډک، پوره، برجق.

**پراته** : د پروت جمع، غزيدلي، څملاستلي، اوده، ايښوے شوي، سست، بيکاره،

**پراته** : هغه روغني روتي چي عام طور سره په تبخي يا کړيچي کښې په غوړو کښې

پخولے شي.

**پراچه** : سوداګر، پرانچه، کرایه کښ، چې په کرایه مالونه په خرو یا خچرو وړي. هغه هندو چې مسلمان شوے وي او بیا هم د کان کوي. بې لحاظه، بې مخه، چالاک.

**پراخ** : فراخ، ارت، پلن، وسیع، ډېر زیات،

**پراخي** : فراخي، د پراخ کیدو حالت، زیات والے، کشادګي،

**پراګندګي** : پریشاني، انتشار، تشویش.

**پراګنده** : منتشر، پریشان.

**پرانستل** : خلاصول، سپړدل، څرګندول،

**پرپرکے** : یو قسم وزر لرونکے چینجے چې اکثر په ګنو کښې پیدا کیږي او فصل ته نقصان رسوي. د ماشومانو دپاره د وسپنې نه جوړ چکر وهونکے پریدار د لوبو څیز، د هوائي جهاز، موټر وغیره هغه پرزه چې د خپل چکر په ذریعه مشین په حرکت کښې راولي.

**پرپیچ** : له پیچونو نه ډک، تاؤ راتاؤ، پیچدار، ول ول، کوږ ووږ.

**پرپیړه** : خریړے، پوڅکی، دینګړی، مرخیړی، دوړنے، دیرنګ، ګوبلګه، ګوجے.

**پرتوګابڼ** : پرتوګابڼ، ناړه، باګه، بګه، ازاربند، ګنډه، د پرتوګ د ترلو هغه جالي دار مزے چې بلډه کښې اچولے شي.

**پرته** : عبث، فضول، اپلته، چتیات.

**پرخول** : په زمکه را خلاصول، غورځول، نسکورول، شکست ورکول.

**پرخولي** : کشتي، د یو بل د راپرځولو لوبه.

**پرخیدل** : په زمکه راخلاصیدل، نسکوریدل، پرتاویدل.

**پرچ** : رکيبي، نالبکے، لالبکے، د چايو د پيالی سره وړوکے شان لوښے چې پيالی پکښې پرته وي.
**پرچم** : بيرغ، جنډه، توغ، عَلم.
**پرچون** : د توک متضاد، خورده، په يوځاے د خرڅولو په مقابله کښې په لږه لږه د خرڅولو کار او پيشه.
**پرچه** : د کاغذ ټوټه، اخبار، رساله، پرزه، ټکړه، پارچه، خط، چيټي، رقعه، تحرير، د امتحان سوالنامه، د مقدمې په حقله د پوليس اندراج،
**پرخاش** : دښمني، جنګ، مخالفت، مقابله، جګړه، ورانے، کينه، فساد.
**پرخټ** : په اينګولي کښې ماته شوې روټۍ،
**پرخه** : شبنم، د شپې چې کوم څاڅکي د اسمان نه راپريوځي. نرے باران.
**پرداخت** : غور، فکر، توجه، پروا.
**پرده** : پرده، ستر، حجاب، حيا، پټ راز، پناهي، د غوږ جلی، د ستر ګو جلی، د دوؤ حصو نازک حائل، د کړکيو او دروازو د پټولو کپړه، پردهٔ بکارت، د کوټې دپاسه تاؤ ديوال دُ موسيقی سُر يا اواز. نغمه،
**پرده پوشي** : پرده ساتنه، پرده اچونه، راز نهٔ ښکاره کونه. پرده داري.
**پرده پوښ** : پرده پوش، پرده ساتونکے، پرده اچونکے، پرده داري کونکے،
**پرديس** : بيګانه ملک، پردے وطن،
**پرديسنه** : د پرديسي مؤنث د پردي ملک، د بل وطن.
**پرديسي** : د غير ملک، د پردي وطن، د بيګانه ملک،
**پرزه** : ټوټه، ټکړه، حصه، د فيشن سامان، رقعه، د کاغذ

تکره.
**پُرس** : تپوس، پوښتنه، تحقیق، پرسان.
**پرسان** : وګورئ پُرس.
**پرست** : د پرستش (عبادت، محبت) په معنو کښې د بل اسم سره لاحقه لکه خدا پرست، وطن پرست وغیره.
**پرستار** : عبادت کونکے، پرستش کونکے، عاشق، مئین،
**پرستان** : د ښاپیرو وطن، یو خیالي او افسانوي ملک.
**پرستش** : اطاعت، بندګي، عبادت، تعظیم.
**پرستي** : د پرست د لاحقې یو بل شکل چې د خپل ځان نه مخکښې لفظ سره د عبادت او محبت کولو د کار مفهوم ورکوي لکه خدا پرستي، وطن پرستي وغیره.
**پرسش** : پوښتنه، تپوس، تحقیق،
**پُرسي** : د پُرس د کار او د مشغولا د معنې لرونکې لاحقه لکه بیمار پرسي.
**پرشیدل** : پرشار کول، پرشارے کول، انتروشے کول، اینګے کول، پرنجیدل.
**پرښه** : غټ کاڼے، تره، غټه تیږه، سنګه، ښوئیدونکے کاڼے.
**پرغټ** : نرغوټ، برغوټ، پیش پړانګ، کټه پیش.
**پرغز** : وارخطائي، بې هوشي، غوټه، د میرګي غوټه، غصه، قهر،
**پرکار** : د یو پښې لرونکے د وسپنې، لرګي یا پلاستک هغه آله چې دائرې پرې راښکلے شي. هم د دې غرض دپاره د ترکاڼانو یوه آله، څرخ، چکر، قطب نما، قبله نما.
**پُرکار** : غټ، تکره، د ساده متضاد.
**پرکال** : له خوبه جوتې

وهونکے، لـه خوبه جوتي خوړونکے، خوب ته نزدې.
**پرکټ** : وګوري پرکټے.
**پـرکـټ** : مـات وزرے مارغـهٔ، هغه مارغهٔ چې وزرې ئ پـريکړې شوي وي، متازه، بيکاره، بې وسه، حاجت مند،
**پرکټے** : هـغـه ځوے چې کـونـډه ښځه ئ دويم وادهٔ نه پـس د خاونـد کور تـه ځان سره بوځي او ساتي.
**پرکټۍ** : د پرکټي مؤنث.
**پرک** : د بـوزغلي په ځاے لـه تخمه حاصل شوي پياز، يا نور داسې بوټي جمع پرګان.
بـوس، هـوا سـره الـوتونکے د خنو غلو پوستکي.
**پرګنه** : جاګير، د ضلعې يوه حصه، خاندان، کورمه،
**پرګه** : خاندان، نسل، خيل، خپل خپلوان، کورمه، قبيله.
**پـرګے** : د خيـرې د ونـې پلے، پيرګے. چرګے، برګے.
**پرلت** : د نـاستې هغه طريقه چې يـوه پښـه د بـلـې پښـې دپاسه داسې واچولے شي چې د يوې پښې پنجه د بلېَ پيڼۍ په زنګانهٔ راشي.
**پـرله پسې** : يـو بل پسې. متـواتـر، مسـلسل، په يو مخ، لګاتار.
**پـرمختګ** : پـرمخ تيـا، وړاندې تګ، پيش رفت.
**پرمهره** : هغه خيرے چې باز يا نور ښکاري مارغان ئ سحر کښې د خلې نه غورځوي. د مـارغـانو بڼې چې ښکـاري مارغـان ئ سحر کښې د يوې دانې په شکل کښې راوباسي.
**پرناله** : د کور له چته د اوبو بهيدلو لاره، ناوه،
**پـرنجل** : انتـروشـے کول، پرنجے کول.
**پرنجيدل** : پـه پرنجو لګيا کيـدل، ايـنـګـي لـګيـدل، انتروشي لګيدل.
**پرنجے** : انتـروشـے، اينګے، انتوشے، پرش، پرنج،

**پرنډ :** کنګل، منجمد، پړم، پړن.
**پروا :** فکر، لحاظ، خاطر، خيال، اند، ويره، باک.
**پرواز :** الوت، الوتنه،
**پروانه :** ليکلې اجازت، ليکلې حکم، شاهي فرمان. اور پښتې، پتنګ، پتن.
**پروت :** له پريوتل نه صفت. ايښودې شوې، پريوتې، بې احتياطه ګزار کړې شوې، په اراده يا بې ارادې په يو ځاې کېښې محفوظ کړې شوې.
**پروردګار :** پالونکې، خداې پاک.
**پرورش :** پالنه، روزنه، سنبالښت، خصمانه، تربيت کونه،
**پروړه :** پلاله، د غوبل شوو شولو بوس، درويشنه، پروړ، پروټ.
**پروژه :** پراجيکټ، منصوبه، پروګرام، نيت، قصد.
**پروسږ کال :** تير کال، هغه کال چې د سږ کال نه مخکښې او له مخې کال نه وروستو وي.
**پروسکال :** وګورئ پروسږ کال.
**پروسکلن :** د تير کال.
**پروسکنې :** د تير شوي کال.
**پروسه :** مرحله، پروس، عمل.
**پرون :** تيره ورځ، د شپې دپاره د صفت په طور راځي لکه پرون شپه.
**پره :** ترازه، تنګره، توته، تکړه، غاښې، د غرۀ څوکه، څرخ، پلو، طرف، مخه، ډله، طرفداري، ننګه، جنګ جګړه، د خفګان ښکاره کونه.
**پره جنبه :** طرفداري، ډله بازي، حمايت.
**پره دار :** پره کونکې، مل،

ملګرے، طرفدار، حمايتي.
**پرهار** : زخم، پرهر، پرار،
**پـرهيز ګار** : متقي، نيک، تقويٰ دار، بزرګ.
**پـرهيز ګاري** : نيکي، تـقويٰ، عبـادت، د بـدو او نـاکـاره کـارونـو نـه ډډه او پرهيز.
**پري** : پـر، د پـاسـه، باندې، ورباندې، ذريعه، واسطه.
**پري** : د پريکيدل مصدر نه اسم صفت، پريکړے شوے، غوڅ. قطع.
**پـريـاسـل** : پـرخـول، ارتـاوول، نسـکـورول، ښکته ګوزارول، لاندې اچول.
**پريدار** : پيره دار، څوکيدار، څارونکے، ساتونکے، پيره ورکونکے، پرې لرونکے،
**پـريړ** : غـټ، پـنډ، څورب، چاغ، شلنډ.
**پـريړی** : تـمبولـه، کندو، ډولـه د غـنـمو يا نورې غلې د سـاتـلـو دپاره د پوزي نه جوړ
پنډيرے.
**پـريستل** : پـرې ايسـتـل، څملول،
**پـريشان** : خـفـه، غمګين، دلـګيـر، ابتـر، سرګردان، بې چرته، غريب، خوار، کړياب، بـې وزلـه، تـار په تار، ګډوډ، تيـت پـرک، خـورووړ، ګنګس،
**پـريښودل** : پـريښـول، خـلاصـول، خوشے کول، ازادول، لاس تـريـنه اخستل، ورروستـو پـاتـې کـول، شـاتـه پريښودل، طلاقول.
**پـريکړے** : شـلـولے، غوڅ کـړے شـوے، فيـصله شوے، بيل شوے، غوټ پريکړے،
**پـريـکول** : څيـرې کول، غـوڅـول، ادا کـول، فيصلـه کول، ختمول، کنستل،
**پريکون** : خبـره خلاصونه، فيصله کونه، لنډون، د هلک او جيـنـی لــه څوا د وادهٔ ورکـولـو او کيـدلـو فيـصلـه،

بیلتون، جدائـي، بیلـوالے، فیصلـه، پـریکړه، مخالفت، غوڅونه.

**پریکیدل :** غوڅیدل، قطع کیدل، شلیدل، څیرے کیدل، ختمیدل، کنستل.

**پـریمان :** پـریوان، بیـس بیسیار، ډیر زیات، بنیرازه، د مور پـه ګیدړه کښې له بچي چارچاپیره پرده.

**پریماني :** سو کالي، ابادي، بنیـرازي، ډیر والے، زیاتوالے، فراواني.

**پـریوان :** پیـروان، هغـه کـڅوره چې د مور پـه ګیډه کښې پـکښې بـچے نغښتے وي او وضع حمل نه پس هغه بهر راشي.

**پـریوالي :** فـراوانـي، ډیـر والے، زیات والے، کثرت،

**پـریوتـل :** غـورځیـدل، نسکـوریـدل، راګوزاریدل، ارتـاویدل، ناڅاپه حمله کول، یرغل کول، توئیدل، رژیدل، رنګیـدل، نـرېدل، ناکامیدل، پـاتـې کیـدل، رنـځـوریـدل، ناروغه کیدل.

**پـړ :** د جـواری ځـاے، تیکرے،

**پړ :** د وړ متـضـاد، مـغلوب، ګرم،

**پړان پیش :** غـټ ځنګلي پیـش، ګـوتړک، کټه پیش، کـرپـش، پـڼـاپیـش، پیشو پړانګ.

**پړانګ :** ټکي ټکي ځرمن لـرونکے یو ځیرونکے ځنګلي ځناور.

**پـړانـه وړانه :** حق نـاحق، ګـرمـه نـاګـرمـه، پـړه وړه. جواري، قمار، شرط.

**پړاو :** مـنـزل، مقام، تیکانه، قیام ګاه،

**پـړپـړے :** دسـت، پـړپـړه، پړت پړت، پړتار.

**پـړپـنج :** پـړپـنجـه، نـهٔ ختمیـدونـکې جګړه، نهٔ حل کیدونکې تنازعه.

**پړپوس** : پپوس، سړے، شش، بيکاره سړے، پړسيدلے، بزدل، ويريدونکے.
**پړتال** : په دويم ځل د صحيح يا غلط معلومولو طريقه، چيکنګ، چيکن.
**پړتاؤ** : واټن، فاصله،
**پړتل** : د نښتر يو قسم.
**پړسمن** : ډډ، پړسيدلے، خوړين، ډډو، نرم، پوست، بې وجې، نابوره، لټ، ناراست، سوړ.
**پړسو** : ادوبدو، ادوکدو، ډډبډ، اوک پوک، پړسيدلے، د غټ دپاره د تحقير لفظ.
**پړسول** : ډډول، له باده ډکول، غصه کول، قهرول، بلاربول، حامله کول، ښۀ وهل تکول، پړقول، پړق ورکول، ځپيړه ورکول.
**پړسومبه** : پړسمن، ډډ، بوګه، چې ډير غټ وي او د کار نۀ وي. بيکاره، بې غيرته.
**پړسيدل** : د ګوزار يا د زخم په نتيجه کښې د بدن د يو ځاے وچتيدل، ډډيدل، ټنډيدل، قهريدل، غصه کيدل، حامله کيدل، د حيواناتو د ګيډې يو مرض جوړيدل. وهلے کيدل، پړقيدل،
**پړق** : پړک، چپوته، پړخ. بريښ، ځلق، د رڼا ځريکه، لړ وخت، خلا، بريښنا.
**پړقول** : ځلقول، پړکول، بريښول، په لاسونو اواز ايستل، نيني ورتول، وزرې وهل،
**پړقيدل** : بريښيدل، ځلقيدل، پړکيدل.
**پړک** : تهه، ځل، وار، کرت، پيره. پړکه، لټ، دام. د ناپانو د چړې تيرولو ځرمن. د خلقو ټولے چې لس شل تنه وي، د ګډو وړه رمه، ويره، اضطراب، د تلې چابړے، حمايت، طرف، يوه جنبه. د مرغلرو لړ،

**پـړمخ** : نسـکور، سر د لاندې، اپوته.

**پړمخے** : برغولے، د کتهوی سرپـوښ، د کـتهوی خاورین سر. نسـکور، سر د لاندې، اپوته.

**پـړونے** : د زنـانـه څادر، پـتـهکـے، داوڼ، داهو، چکاله، تیکرے.

**پړه** : د وړه متـضـاد، ملامته، ګرمه.

**پړهٔ** : د پـړ جـمـع، ملامتـه، ګـرم، شـکست خوړلي، مات شوي.

**پړي** : د پړ خاوند، جوار ګر، شـرطي، پـړ چـلـونکے، هغـه سړے چې هر کار کښې خنډ اچوي.

**پړي واله** : پـنډي، مزدور، هـغـه مـزدور چې په شا پيتهے وړي. د رسـو او پـړو وغـيـره خرخونکے،

**پړيخ** : پـلن، چيت، پړيت، چيتک،

**پړی** : د ګـتهو، خښتو، کاڼو يـا خـاورې پـه تـرتـيـب سـره جـوړه شـوې دلـی يا انبار چې مختلف ځايونو کښې مختلف وړدوالـے، پـلـنوالـے او بلندي لـري. د غـلـې د بـورو انبـار. پـوړی، پـوړی، کـڅـوړی، کـڅـوړه، ګـوتـی، د کاغذ نه جـوړه لـفافه چې پکښې سودا وغيره ور کيدے شي.

**پړے** : لـه ميزري، سپـهسو، وښـو، لـوښـې، پـلاسـتـهک، مـنـجـو، سـنـو يـا داسې نورو ځيـزونـو نـه غـښتلـے شوے مزے. بدريژه، رسی، بياسته.

**پژمرده** : مـړژواندے، خفه، مړسپن، جينجړ، مړغيږن،

**پژه** : پژاوه، د کلال بتهی،

**پس** : مـعـمولي، کمزورے اواز، نرے اواز،

**پس** : بيا، نو، وروستو.

**پسات** : فساد، شر،

**پساتي** : فساديِ، بد سړے، وران، شري، فساد جوړونکے.

**پساري** : پنساري، د دوائي دپاره د جاړو بوټو خرڅونکے،

**پسپا** : په ماتې.

**پسپائي** : د پسپا کیدلو حالت، شکست، په جنګ کښې وروستو کیدنه.

**پس پس** : چا سره په غوږ کښې پټې خبرې کول.

**پس پسے** : پس پس، غوږ لوڅي، د شونډو په سر پټې پټې خبرې، په غوږ کښې پټې پټې خبرې، پسیدنه،

**پست** : ښکته، لاندې، ټیټ، ذلیل، کمینه، پریوتے.

**پستنه** : واپس، واپسي، پستو کی، پوځکی.

**پسته** : وروستو، بیا، بل وار، بل ځل.

**پسته** : د م غربي ایشیا په ملکونو کښې کیدونکې د بادام په شان یوه وړه ونه او د هغې میوه.

**پستي** : ذلت، لاندې والے، ښکته والے، ذلیل توب.

**پسخند** : پیشاره، ملنډه، پچموزه، ټوقه.

**پسر** : ځوے، فرزند.

**پسرلے** : سپرلے، بهار، د ګلونو موسم، څوړمنے، د ژمي او د اوړي تر منځه د کال هغه څلورمه حصه چې پکښې ونې بوټي وغیره زرغونیږي.

**پسمانده** : وارث، میراث خور، میرات خور، د مړي اولاد، وروستو پاتې، د ترقی نه شاته پاتې، بچت، باقي پاتې شوے.

**پس منظر** : د منظر شاته موجود خو په نظر نهٔ راتلونکے، د یوې واقعې اصلي محرک او علت چې ځرګند نهٔ ښکاري.

**پسند** : خوښ، غوره.

**پسندیده** : خوښ، عزیز، مرغوب، محبوب.

**پسور** : سور، عرض، پلنوالے، وخت، موده.

**پسول** : ګانه، کالي،
**پسهٔ** : ځيرلے، چيلے،
**پسې** : ورپسې، ورروستو، اخري.
**پُشت** : خاندان، نسل، خيل، پيړى. د چرګې په ګيډه کښې د اګې ځاے، د چرګې په يو مخ اچولې اګې.
**پشتاره** : بار، ډير مقدار، بوج، ډيرے، انبار، دلى.
**پشته** : تکر، بند، ډانګه، د سيلابي اوبو د مخ نيوي دپاره د خښتو جوړه ډيرى. هغه کپړه يا چمړه چې جلد ساز ئ د کتاب شاته لګوي. متوا، وقايه. ډډه، د غرهٔ يا غونډۍ ډډه،
**پشتي** : تيک، پيشتي، زوړ ديوال ته د مضبوطيا په غرض وهلے شوے وړوکے ديوال يا ډبه.
**پشکال** : د فصلي کال څلورمه مياشت، ساوڼ، د اوړي د بارانونو موسم.

**پشکالے** : هغه ميوه يا فصل چې پشکال کښې رارسي يا کرلے شي.هغه سور رنګے چينجے چې په پشکال کښې پيدا کيږي او کبان پرې نيولے شي.
**پشکے** : لوے بول، چې لکه د اوبو نري وي.
**پشم** : وړى، پرخه، نرے باران، ډير نازک او نرم ويښتهٔ. د شرمګاه ويښتهٔ.
**پشمينه** : ريښمينه، پشمي لوپټه چې د پاسه پرې نرے نرے پشم يا غونے يا بور وي.
**پشې** : متيازې، (د ماشومانو تورے)
**پښ** : لوهار، آهنګر،
**پښت** : خاندان، پشت، نسل، پيړى، خيل، ټبر، اصل، ريښه.
**پښتانهٔ** : د پښتون جمع.
**پښتنواله** : د پښتنو دود دستور، غيرت، وفاداري، د پښتنو ضابطه اخلاق.

**پښتنه** : د پښتون مؤنث.
**پښتو** : د پښتو ژبه. ننګ، غيرت، د پښتنو دود دستور.
**پښتورګے** : ګرده، بلوګے، بلهوډے، هغه اندام چې تشې متيازې ترې پوکښې ته ځي.
**پښتون** : د پښتانۀ د نسله، د پښتون قام يو غړے، پښتون قام، غيرتي، د ښو اخلاقو خاوند، د ننګ او پت خاوند.
**پښتونخوا**: د پښتنو سيمه، د پښتنو د وسيدو ځاے.
**پښتونولي** : پښتونواله، د پښتنو دود دستور.
**پښتيدل** : پښتنه کول، پوښتنه کول، تپوس کول، تحقيق کول، سوال کول،
**پښتۍ** : اړخ، ډډه. هغه هډوکے چې د سينې پنجره ئ جوړه کړې ده.
**پښويه** : د "پښه" او "ښويه" مرکب د قرآن کريم روانه لوستنه، ګرامر، صرف و نحو.
**پښه** : ښپه، د بدن هغه حصه چې ګرځيدل پرې کيږي، د هر څيز د تکيې يا اډې لګولو حصه لکه د ميز پښه، د قبيلې يا خاندان يوه څانګه.
**پښه ارته** : پښې ارتې، د پښتنو هغه دستور چې پکښې د چغلې د کور له خوا د چغول کور ته تحفه ځي.
**پښه نيولے** : ماتل، ايسار، ساوے، په تلو تلو کښې رفتار کمونکے.
**پښه يبل** : يبلې پښې، پښې لوڅے، بې پيزاره، پښې ابله، په پښو پيزار نۀ لرونکے.
**پښې ابله** : وګورئ پښې يبل.
**پښيمان** : په شوي کار افسوس کونکے، پښيمانه، شرمنده، ملامته، افسوس او پښيمانې کونکے.
**پکار** : په ښه راتلونکے، پسنديده، غوره، فائده من، ګټه ور.

**پکړ** : په جیب کښې پیسه نهٔ لرونکے، خوار،

**پکښې** : دننه، په منځ کښې، کنه ور کونکے.

**پکل** : تلے اچول، لپه اچول، پینل، ورغوے اچول، تلے وهل.

**پکوړه** : پیکوړه، د ویسهو، پیازو او مرچکي وغیره نه جوړ یو ترسکون غونډه شان یا بل شکل لرونکے څیز چې په تیلو یا غوړو کښې تلولے شي.

**پګ** : لویه پګړی، پګه، منجیله، د منګي یا پنډ وړلو دپاره منجیلګی.

**پګړی** : غټ پتهکے، دستار، پګ، غیرت، همت، عزت.

**پګن** : د هندي کال یوولسمه میاشت د فروری او مارچ میاشتو کښې راځي.

**پل** : قدم، ګام، د پښې نښه، منډ، د ژرندې یا میچنې غونډه برنے کاڼے. د کُلال څرخ، د ستر ګو رپ، یوه ګړی، کم وخت، لږه شیبه.

**پُل** : د سیند یا نهر دپاسه جوړه شوې لار.

**پلاچه** : د څاروي د څټ غوښه،

**پلار** : و ګورئ ابا، پدر،

**پلاز** : د بادشاهانو د ناستې ځاے، د ناوې او ځلمي دپاره د وادهٔ په ورځ خاص جوړ شوے ځاے.

**پلاس** : یو خاص قسم امبور.

**پلاله** : پروړه، دروزه، واښهٔ، د شولو دروزه.

**پلاؤ** : پولاؤ، ګرمه مساله کښې پخې شوې وریژې چې غوښه، چرګ یا بل مارغهٔ، مټر، دال یا داسې نور څیزونه پکښې هم ګډولے شي.

**پلته** : پلیته، د ډیوې وټ چې د مالوچو نه جوړ وي. په کاغذ یا پلاسټک کښې د څیزونو راجمع کړے شوے شمیر لکه د ستنو پلته، د تیلو

پلته، د ګولو پلته.
**پلټل** : اړول راړول، لټول، تحقیق کول، تلاش کول، کتل، مطالعه کول.
**پلستر** : پلاستر، پلاسټر، د سیمټو یا چونې لیو، په مات ځاے ترلې شوې یوه خاص قسم پټۍ چې چونه پکښې شامله وي.
**پلستري** : د عمارتونو د پلستر کار کونکے.
**پلشته** : د پلشت مؤنث، بدچلنه ښځه، ګشتي، بد عمله ښځه، پلیته، رنډۍ، بدکاره، بدفعله، کچنی.
**پلک** : د لوهارانو د استعمال دپاره د وسپنې غټ څټک.
**پلکے** : لاسکے، لاستے، دسته.
**پلمه** : عذر، بانه، بهانه، دوکه، مکر، حیله، فریب، ټګي.
**پلن** : ارت بیرت، چې پسور ئ لوړے وي. بر لرونکے، غټ پټ، څورب، هوار، هموار.
**پلندر** : پرندر، بځنے پلار، میرنے پلار.
**پلنول** : ارتول، خوررول، ویړول، اوارول، په زمکه راغورځول، وهل او ټکول، دربله کول.
**پلنیدل** : ویړیدل، ارتیدل، اواریدل، په زمکه غورځیدل، څربیدل، تیاریدل، متهه کیدل، شله کیدل.
**پلو** : پیڅکه، پیڅکے، پیڅه، طرف، لوړے، څنګ، اړخ، طرفداري، ننګه، لنګه.
**پلوځه** : یوه ازغي لرونکې ونه. ژرګه، بلنځه.
**پلور** : بیه، قیمت، ارزښت، سر، بها، ادل بدل، ورکړه راکړه.
**پلورل** : خرڅول.
**پلوشه** : هغه نرۍ کرښه چې د رڼا له رفتاره پیدا کیږي او پکښې نرۍ نرۍ ذرې په

ګډېدو ښکاري. ځړيکه، ځيره، تجلي، وړانګه، شغله.

**پله** : طرف، خوا، موقع، وار، ځل.

**پله** : وژه، د انسان او حيوان د بدن اعصاب.

**پليت** : پليد، ګنده، خراب، مردار، سخا، ناولې، بيلماځه. د پاک متضاد.

**پليتول** : ګنده کول، د مانځځه نه ايستل، مردارول، ناپاکول،

**پليتي** : ناپاکي، ګندګي، ناولتيا، بداخلاقي، بدمعاشي، ورانکاري.

**پليتيدل** : ناپاکيدل، مرداريدل، ناولې کيدل، ګنده کيدل، بيلماځه کيدل،

**پلی** : د لوبيا، مټر، ميو او داسې نورو ځيزونو د ګوتې په ناپ هغه وړه شان حصه چې دانې پکښې وي. پلې . د ځځ لوښي نه په مقدار کښې د پيو يا د تيلو راچولو آله.

**پلې** : پياده، په خپلو پښو، د سوارۀ متضاد.

**پم** : يو متعدي جلدي مرض، خارښت، خارش.

**پمبه** : خځوځکې، ځځانې، ټوټه، ذره. پومبه، پنبه.

**پمپ** : د اوبو راوښکلو يا ويستلو مشين. د باد ورکولو آله، پچکاري، د هوا پمپ، ټيوب ويل، مشيني کوهې، بمبه.

**پمن** : پم وهلې، خارښتي، نيستمن، غريب، خوار، بدبخت، ناجوړه،

**پمنکې** : پمنې، پمانې، يوه ترخه سبزي.

**پمنيدل** : خارښت لګيدل، پم لګيدل، پمن کيدل. خواريدل.

**پنا** : فنا، غائب، غيب، له نظره پټ، په ډډه، حفاظت، مرسته، پرده.

**پناهي** : بيتر، پرده، چک، لنډې ديوال چې د کور ستر

پړده پرې راشي.

**پنج** : دو که، تکي، پینځهٔ.

**پنجالی** : ژغ، جغ، د جغ لاندینی حصه. دریچه، دریځه، جنګله، هغه پنجره شان چې په مکانونو کښې د ډول او پناهی دپاره لګولے شي.

**پنج بنا** : د اسلام پینځهٔ ارکان، کلمه طیبه، مونځ، روژه، حج، زکوٰة.

**پنجره** : د مرغانو یا ځناورو د ساتلو دپاره بندي خانه، له وسپنې یا بل داسې مضبوط څیز جوړ محفوظ ځاے، تاله، ژرنده.

**پنجشنبه** : پانشبنه، د زیارت ورځ، د چارشنبې او جمعې تر منځه ورځ.

**پنج غابنے** : هغه ځناور چې عمر ئ پینځهٔ کاله وي. د لرګي نه جوړ هغه زراعتي آله چې پینځهٔ غابښونه لري او په پټي کښې پرې پولې جوړولے شي.

**پنجکے** : د مچې مار د کونډې سره لګیدلے هغه لرګے یا کاک چې مچې مار ته پرې د کب د چک پته لګي.

**پنجګانه** : پینځهٔ واړه.

**پنجوتره** : پنجک، هغه پینځهٔ فیصده کمیشن چې نمبردارانو ته د وصول شوې مالیې نه ورکیدے شي.

**پنجه** : منګل، منګول، د پینځو ګوتو په مناسبت سره هر هغه څیز چې پینځهٔ غابښي لري.

**پنځوس** : له یو پنځوس نه یو کم او له نهٔ څلویښت نه یو زیات. (۵۰)

**پنځه** : خته، طبیعت، فطرت.

**پنځهٔ** : پنج، د څلورو نه یو زیات.

**پنچایت** : د مشرانو جرګه، د ثالثانو ټولے.

**پند** : نصیحت، وعظ، ښه

خبره.
**پندار :** ګومان، خيال، تکبر، غرور.
**پنډ :** بار، بوج، هغه درووند وزن چې انسان يا څناور ئ په شا يا په سر وړي.
**پنډ :** هغه وسپنه چې قصابان پرې چاړهٔ د غوړوالي نه پاکوي.
**پنډار :** ګڼه ګونه، ډير خلق، بانډار، اژدهام، د څو تنو مجلس.
**پنډال :** هغه ځاے چې څهٔ غونډه يا جلسه پکښې کيږي، دونکاچه.
**پنډ بکر :** پونډ بکرى، اورټک، بکوره، بکره، سپينه ګټه، چقماق، ډبره.
**پنډت :** بامبن، بامبړ، برهمن، د هندوانو مذهبي عالم،
**پنډوس :** غنډوس، غونډسکه، ګيند، بال.
**پنډول :** ټولول، غونډول، په يو ځاے راجمع کول، څربول، چاغول، غټول، حجم زياتول، مضبوطول، ټينګول.
**پنډي :** مزدور، پانډي، قلي، جوالي، مالي، هغه سړے چې په پيسو پيټي وړي.
**پنډيدل :** راغونډيدل، راټوليدل. څربيدل، غټيدل، پړسيدل، ډډيدل.
**پنډيړے :** پوزے، پوزکے، انډيړے.
**پنډۍ :** پړکي، د زنګون او ښينګري په مينځ کښې د پښې حصه.
**پنساري :** وګورئ پساري.
**پنسل :** د لرګي او سکې نه جوړ د ليکلو قلم.
**پنسن :** پنشن، هغه مياشتنے رقم چې د نوکرى د مقرره وخت پوره کولو نه پس ئ حکومت سرکاري ملازم ته ورکوي.
**پنسني :** وظيفه خور، هغه

ځوک چې پنسن اخلي.
**پنګه** : سرمایه، ذخیره، پانګه.
**پنهان** : پټ، چې ښکاره نهٔ وي.
**پنهم** : پنهان، پټ.
**پنیرک** : پنډیرک یو قسم خودرو ساګ.
**پنی** : یو قسم واښهٔ چې جارو ګانې ترې جوړولے شي. نلکه چې چرس پرې څښلے شي.
**پناپش** : پیشو پړانګ، غټ پیش، پړانګ پیش.
**پنه** : ترمکیا، چړ کاؤ، اوبهٔ شیندنه. یو قسم پیزار، کوښه، مګاوله، مچنه، رکی.
**پو** : د فصلي کال د یخنۍ میاشت چې د مګر نه وروستو او د ما نه مخکښې وي.
**پوار** : سخا، میلا، خیرن، ناولے، خیچن، بې هنره، بې سلیقې، شډل، ساده.
**پوټ** : پوستکے، پسټ، پټهوکے، پټهخے، پوست، خرمن،
**پوټسکے** : پوټهے، لږ مقدار کښې،
**پوټکے** : پوټ، پوټخے، پټخے.
**پوټې پوټې** : ټوټې ټوټې عام طور سره د ورانو پیو د پاره استعمالیږي.
**پوټے** : لږ شان، پیشانے، تیکه، ډکره، د غوښې ټوټه، ذره شان.
**پوټے پوټے** : ریزه ریزه، بسمې بسمې، ټوک ټوک، پوټې پوټې.
**پوځ** : فوج، فوځ، عسکر، لښکر.
**پوچ** : سپک خلے، بد خلے، بې ادبه، بې عزته، سپک، بې فائدې، عبث، چټې،
**پوچ ګو** : پوچ ګویه، پوچ خلے، سپکې او عبثې خبرې کونکے.

**پوچ ګوئي** : کنځل، سپکه وینا، عبث خبرې.
**پوچیدل** : غل کیدل، د کارتوس نهٔ خلاصیدل.
**پوځکی** : نرمی، پستکی، د غوږ لاندینی نرمه حصه، بوځکی،
**پوځه** : خام پنیر، پرنډ، پوچه، د شاتو د مچو ګبین. د هډوکي دننه مغز یا چکی چې اکثر د خوړلو دپاره ایستلے کیږي.
**پوخ** : د اوم او کچه متضاد، پوه، تجربه کار، هوښیار، زیرک، تر کماله رسیدلے، د خوراک قابل وخت ته رسیدلے فصل یا میوه، کلک، ټینګ، مضبوط، غوره، چوړ، مشروټ، پوخمے، پخمے، د بدن د ځنو حصو د سرو کیدو یوه بیماري لکه پخه خلهٔ، پخې سترګې، پخه ژبه.
**پوخلې** : توره توخلې، توره غاړه، شنه توخلې.
**پودر** : د کُس بچے، د کُسی ځوے، یو کنځل.
**پودینه** : یو تیز خوشبودار بوټے چې د چټنی جوړولو دپاره استعمالیږي. ویلنے، ایلنے.
**پوډر** : باریک میده کړے څیز، سفوف، په مخ د لګولو یو مخصوص سفوف، یو خطرناکه نشه.
**پور** : قرض، قصاص، بدل، نقصان، تاوان، زیان.
**پُور** : د ګنو رس چې ګوړه ترې جوړولے شي.
**پورتنے** : پورته سره نسبت لرونکے، د لاندیني متضاد، د بره، د پاس، پاسنے، د غرهٔ یا پښتونخوا وسیدونکے.
**پورته** : پاس، بره، وچت، لوړ، جګ، په هوا کښې، په فضا کښې، په مرتبه کښې وچت، په درجه کښې لوړ،
**پوروول** : قرض اخستل، پور ور کول، قرضول، غونډل،

جمع کول، زبادول، زباتول.
**پُوره** : کامل، تمام، ثابت، کرد، سالم، مکمل، اجل، مقرره، قضا، ختم، موړ او پټ، دولتمند، ډیر چالاک، ډیر فریبي.
**پوره** : د سپوره متضاد،
**پورې** : نژدې، خوا ته، د سیند یا نهر بله غاړه، بند، کمره، قرض شوې، لګیدلے.
**پوریستل** : د سیند، نهر، خوړ یا بل ځاے نه بلې غاړې ته رسول، بلې غاړې ته اړول، پورې باسل.
**پورې کول** : پوریاسل، پوریستل، لګول، کیښودل، ړدل، بندول، شروع کول، بلول، تپل، مښل، د اینګولي یا بل کوم څیز سره روتې خوړل.
**پورې کیدل** : بلې غاړې ته پورې وتل، لګیدل، ورته کیدل، د دروازې وغیره بندیدل، تپله کیدل.
**پورې وتل** : عبور کیدل، د سیند یا نهر وغیره بلې غاړې ته رسیدل، په مشکله کامیابی ته رسیدل.
**پوړ** : بنیاد، بیخ، ویخ، رده، اساس، بنسټ، د کني پوګ، لوے او پلن پوزے، کچه، نیم پخته، ځلموټے، ژړے، ځواني ته نژدې. چې لا پوخ شوے نۀ وي.
**پوړه** : بیلچه، کری، راشپیل، پاکوونے، بیم، د تان یا اصطبل صفا کولو پوړی یا بیلچه.
**پوړی** : پړوی، اندرپایه، پارځنګ، پارچنګ، زینه، هغه بیلچه چې پړے پکښې وي دوه کسان ورباندې کار کوي، چارې، کراه، پنګه، مانجه. ینجه.
**پوزکے** : انډیرے، وړوکے پوزے.
**پوزه** : د سترګو په منځ کښې د مخ هغه اندام چې سا

پرې اخستے شي او بوئ پرې محسوسولے شي.شونډه، ورسک، د غرۀ يا غونډې راوتې څوکه.

**پوزے** : انډيړے.

**پوست** : د کلک متضاد، نرم، نازک، ملائم، ځرمن، پوستکے، چمړه، د خشخاشو غوټې، ډوډه.

**پوستين** : د ګډوررو له ځرمنې جوړ واسکټ، نيم تنے.

**پوسکاوړ** : پوسکى اچونکے، پوسکن، بيکاره، سست، لټ، بې همته.

**پوسکى** : باد، پسکه، ټس، له ګيډې خارجيدونکې بې اوازه هوا.

**پوسکى** : نرمه، د غوږ لاندينۍ برخه.

**پوشاک** : لباس، جامه، کالي، نمري، پوښاک.

**پوشيده** : پټ، مخفي، پرده کښې، چې ښکاره نۀ وي.

**پوښتول** : لوړے تير، بش، شاتير، ويشه.

**پوکل** : هوا ورکول، باد ورکول، په خلۀ غبرول،

**پوکے** : پف، پوکاره، د خلې غونډه هوا،

**پوګ** : پګ، اګ، پوتل، د رس لرونکو څيزونو هغه حصه چې د ژوولو يا استعمالولو نه پس پاتې شي، ډډ، پوڅه، خالي، تش، بيکاره.

**پوله** : حد بندي، بريد، بند، څيره، ټک، سرحد، د پټي موره.

**پولي** : وچ وابښۀ، بوساړه، ګيلې، د ريشقې قوده، د ښځو د ګومنزې سره وتلي ويښتۀ.

**پُولي** : د شولو يا جوارو دانه چې په بټ کښې وريته شوې وي. تناکه، پوناکه، د سوځيدو په وجه پړسيدنه او پړک پړک چودنه.

**پومبه** : کربوسکه، کربسکه، یو بوټی او د هغې ګل چې ترې کپړه جوړیږي.

**پوندانه** : د پومبې تخم، پومبه دانه، چګت.

**پونده** : د پښې وروستی حصه چې غوښه ئ سخته وي، هغه حصه چې د پښې د پوندې لاندې وي.

**پونډ** : د برطانیې د شلو شلنګونو لرونکې یوه طلائې سکه او نوټ.

**پونه** : نرے باران، ښورمک، پشمک، شبنم.

**پونې** : پوخې، لیخې، لخې، د وړی هغه ګونجې چې د وریشلو دپاره په لاس باندې راتاؤ شوې وي.

**پوه** : هوښیار، پوے، د پوهې خاوند.

**پوه** : د فصلي کال نهمه میاشت چې په ژمي کښې د مګر نه پس او د ما نه وړاندې راځي. د پنځلسم دسمبر نه.

تر دیارلسمه جنوری وي.

**پوهان** : د پوه جمع، لوے استاذ، پروفیسر، پوهاند.

**پوهنتون** : یونیورستې، جامعه.

**پوهنه** : پوهه، پویه، هوښیارتیا.

**پوهول** : علم ورکول، مطلب ته رسول، لار ښوول.

**پوهه** : علم، هوښیارتیا،

**پوهیدل** : علم موندل، خبر موندل، مطلب ته رسیدل.

**پویه** : منډه، د اس یو مخصوص چال، پوهه.

**په** : دپاره، باندې، دپاره، حرف قسم، د حالت د بیانولو کلمه لکه په خندا، په ګډا، په تللو، په شروع په اخر وغیره. د متعلق فعل عام علامت.

**پهار** : د ورځې یا شپې څلورمه حصه، د شواروز اتمه برخه، درې ګینټې. پهر.

**پهره** : پیره، څوکی، څوکیداري، ساتنه، حفاظت،

**پهره دار** : څو کيدار، پهره ورکونکے، محافظ، پيره دار.
**پهـــره داري** : د پهـــره دار پيشه، د پهرې ورکولو حالت.
**پهلوان** : پـالـوان، طـاقتور، تکړه، مضبوط، زورور.
**پهه** : پاهه، ترمه، پتهی.
**پیٔ** : شودهٔ، شيدهٔ.
**پياپے** : مسلسل، په يو مخ، پرله پسې، مکرر.
**پياڅه** : د باجرې يا د جوارو روټی.
**پياده** : پـه خپلو پښو، د ځنو مـحکمو چپړاسي، د محکمه مال چپړاسي.
**پيارمه** : چيړه، څيره، ريتاړه، لتوړه، رنـجـه، خـرڅوړے، چنيا. د کټ لنگه، لنگه،
**پياز** : د عـام استـعمـال يوه بوئ داره سبزي چې د پخيدو نـه پـس د پيـازي رنگ غوټو کښې بدله شي.
**پيازکے** : د پياز په رنگ يو وابښهٔ.
**پيـازه** : سپيــازه، زيـان، سره کيدنه، هغه ښځه يا ماده ځناور چې د وخت نه مخکښې بچے وغورځوي. ضائع، عبث، د يو داسې څيـز ښکاره کيدل چې دانسته پټ ساتلے شوے وي.
**پيازي** : د پـوخ پياز په شان رنگ لرونکے.
**پيـاسه** : د تـورو مـچو هغـه گبين چې شهد پکښې نهٔ وي. وړے، خالي گگ.
**پيـالـه** : د څښـلـو لوښے، د شرابو څښلو پيمانه.
**پيالی** : وگورئ پياله.
**پيام** : سوال ځواب، جواب، پيغام، خبر،
**پيـانو** : يـوه لـويــه انگريزي بــاجــه چې پـــه دواړه لاسـه غږيږي.
**پيـاوړے** : زورور، تـکـړه، قوي، طاقتور، بهادر، بادر.
**پيپړ** : بـوډا بـوق، بوډا، چې مخ ئ گونجې وي.
**پيپل** : پـلـنـې او غـټـې پاڼې

لرونکې یوه ونه چې هندوان
ئ ډېر احترام کوي.
**پیپه** : ډرم، د تیلو دپاره
پکاریدونکې د لرګي، ټیم یا
پلاستیک نه جوړ لوښے.
**پیت** : چیت، چپېړ، تیټ،
پلن، اوار، د جګ متضاد.
**پیتاؤ** : پیتاوے، د نمر ګرمي،
هغه ځاے چې په ژمي کښې
خلق پکښې نمر ته ناست
وي.
**پیتل** : زیړ، د تانبې او جستو
نه جوړ یو زیړ رنګے دهات.
**پیتي** : د غابښونو خیرې، د
شوملو غړ کـه، د شوملو
غړ کې منګ،
**پیتے** : پتهاخدار ټوپک،
باتي دار، د پخواني زمانې یو
ټوپک چې باتو ته به ئ اور
ورته کیدهٔ نو ډز به ئ کولو.
**پیټ** : یو مخصوص قسم
طبعي سکارهٔ چې د کاربن
اندازه ئ پنځوس فیصده نه تر
شپیتهٔ پورې ده. بوج، په ملا
پروت بار.
**پیتو** : لعنتي، ملعون، یوه
ښیره.
**پیچکے** : پیکے، د تندي
ویښتهٔ.
**پیچلک** : لکه منے،
ډونډاکے، د لکی ځلے،
دنباله، هغه ځوک چې د چا
شاته د مرید یا نوکر په شان
روان وي.
**پیچواړی** : هغه رسی چې
اس پرې په وروستو پښو
تړلے شي. پیچوانی، په
ګوډی کښې د تولې برابرولو
دپاره اچولې تارونه.
**پیخالے** : پوتے، بکسکے،
لږ شان، ډېر کم.
**پیخکه** : پیخکے، پیسکے،
څنډه، د لوپټې یا څادر
ګوټ.
**پیچي** : پیچ دار میخ، تاؤ
راتاؤ شوے،
**پیر** : بزرګ، لار ښوونکے،
زوړ، سپین ږیرے، بوډا،

مشر.
**پیري** : زوړ والے، زړولي، بوډا توب. د پیر کار.
**پیس** : برص، د برګي مرض،
**پیش** : د وړو جینکو شرمګاه. نرغوټ، پش، د پیشو نر.
**پیشاړه** : ټوقه، ملنډه، مسخره، پچموزه.
**پیشتاکي** : یو خاص قسم چرګه چې په قد وړه وي پیشتکی، منډری، قدوقامت کښې وړه،
**پیشتکے** : د پیشتکی مذکر، پوړی، اندرپایه، پارخنګ،
**پیشو** : بلیګی، بلیکی، د پیش ماده،
**پیشوګی** : پیشی، وړه نتکی، یا وړه نته، یو قسم چینجے چې خاربښت لګوي، پیشی، د وړې جینی دپاره د میني تورے. وړه پیشو.
**پیشونګړے** : وړوکے پیش، د پیشو بچے.
**پیشه** : څرېکه، په مغزو اور بلیدنه، مازغهٔ خوټکیدنه.
**پیشی** : سخت زهر لرونکے یو قسم وړوکے مار، لنډی، لویشتی، لټکه، ګوسنه. د ماشومانو آله تناسل.
**پیکه** : بلمنګه، کم خواږهٔ لرونکے، هغه رنګ چې شوخ نهٔ وي. کچه، شرمنده.
**پیل** : اتي، فیل،
**پینځلس** : له څوارلسو نه یو زیات، د شپاړسو نه یو کم (۱۵)
**پینځهٔ** : له شپږو یو کم او له څلورو نه یو زیات.
**پې** : د پښتو په حروف تهجي کښې د "پ" د حرف تلفظ،
**پیهنی** : کرته، قمیص، خت، د ارتو لستوڼو قمیص.
**پیټه** : یو غټ او غونډ کدو چې حلوا ترې جوړیږي، د

خناورو لرې کولمې وغیره،
**پیته کدو** : پیته غونډ کدو، د شودو کدو، پیته.
**پیتی** : کمربند، هغه کمربند چې سپایان پرې ملا تړې، د فوځ او پولیس د ملازمینو د وردی هغه تړوکے چې دوئ پرې ملا تړې او په ولو ئ ګرځوي. د لرګي یا کتي جوړه صندوقچه. د کارتوسو ګړدنی.
**پیتے** : بوج، بار، پنډ.
**پیچ** : ول، تاؤ، د ګیډې درد، مروړ، پیچش، نس خوږے، هغه رخدار میخ چې په سر کښې ئ د تاوولو ځاے جوړ وي. د مشین پرزه، چابي، کنجي، نوسے، پلے، د مینځو جوړولو پیکو.
**پیچس** : پیچش، د ګیډې مروړ، په لوړے اودس ماتې کښې د رمې تللو مرض.
**پیچکس** : د پیچونو تاوولو او ټینګولو آله.
**پیچل** : تاوول، غبنتل، پیچ ورکول.
**پیچومے** : ستغ، چړائې، ګران، مشکل،
**پیچي** : پیچ لرونکي څیز، پیچدار، تاؤ راتاؤ، تنګ، د میخونو یو قسم.
**پیچیدګي** : د پیچیده کیدو حالت،خنډ، مشکل، ګرانوالے.
**پیچیده** : ګران، مشکل، سخت.
**پیدا** : ښکاره، څرګند، جوت، زیږیدلے، بیاموندنه،
**پیدا ګیر** : مال پیدا کونه، ټګ، په فریب مال پیدا کونکے.
**پیداوار** : د پټي یا باغ حاصلات، آمدن، حاصل، ګټه، نتیجه.
**پیداوښت** : پیدائش، مخلوق، مخلوقات، زیږیدلي څیزونه.
**پیدائش** : پیدا کیدنه،

زیږیدنه.

**پیدل** : پلی ، پیاده، په خپلو پښو. پیاده لښکر.

**پیر** : چورلک، دور، چکر، نیولی،

**پیــرزو** : ســود، پــرزو، پیــرزوینه، نیکه خوښه، نیک خواهش.

**پیــرزوینه** : پیــرزو کیــدنه، ســود، تسـلي، مینــه، د زړهٔ نیک خواهش.

**پیرل** : بـوڼل، اوډل، بڼل، په بوڼ کــټ جـوړول، پـه بیـه اخستل، پیرودل.

**پیـرو** : پیــرو کـار، پیـروي کونکی، مرید، تقلید کونکی، پس رو.

**پیروي** : اطـاعـت، تـقلید، پس روي، پیرو کاري.

**پیره** : پهـره، ثوکی، ساتنه، گــردش، چــکـر، وار، ځـل، نـمبر، د سـوداګری د مال یو خوا بل خوا وړنه،

**پیــریـان** : د پیــري جـمع.

**پیریانی** : پیریانو نیولی، هغه ثوک چې پیریان پرې ناست وي. اوتر.

**پیری** : پری، جن، په نظر نهٔ راتلونکی مخلوق.

**پیږ** : مـضبـوط، غټ، پنډ، د لـنګری لرګی، د غنمو سپین بـوس، پـه ګانی کښې د ګني ورکولو کار.

**پیـړمار** : پیـړ کـونکی، پـه ګـانـی کښـې د ګني ورکولو کار کونکی.

**پیره** : زغـالـه، ثوغـالـه، د اخښـلـي شـوو اوړو یو خاص مقدار چې روټی ترې پخولی شي. پیړه کچالو، پړسیدلی،

**پیـزار** : څپـلـی، کـوښـې، بوټان، په پښو کښې د اچولو څیز.

**پیزوان** : د پـوزې یو کالی، د څـنـاورو پــه پـوزه کښـې اچولی کیدونکی پړی، ډنډر، پیـزوانډی، د پنجې دار پیزار هـغـه تسـمـه چې د دوؤ ګوتو

منځ کښې راځي.

**پیزواني** : هغه ځناور چې پیزوان پکښې اچولے شي. مطیع.

**پیزی** : هجه. هڅه، په تکو، په جوړ، په زور زیر.

**پیژندګلوي** : پیژندنه، پیژندون، واقفیت، شناخت، تعارف، بلدتیا.

**پیژندل** : علم لرل، خبر لرل، شناخت لرل، واقفیت لرل.

**پیسه** : یوه زړه پاکستانی سکه چې د روپی څلور شپیتمه حصه وه.

**پیش** : پیښ، وړاندې، دوڅار، مخامخ، ضمه، هغه اعراب "ُ" په علامت څرګندیږي او د نیم واؤ اواز ورکوي.

**پیش رفت** : وړاندې تلنه، ترقي، وده.

**پیش رو** : مخکښې تلونکے، راهنما، رهبر، په څرګو کښې د خپل حد نه تیزي کونکے، د دښمن د پسپا کولو په ذریعه د جنګ میدان کښې وړاندې تګ،

**پیش قوزه** : پیشکوزه، چاړه، خنجر، ستوه.

**پیشکش** : ډالی، سوغات، تحفه، نذرانه،

**پیشکي** : پیشګي، سائي، بیانه، بیعانه، له وړاندې ورکړے شوے اجرت یا مزدوري.

**پیشګوئي** : مخکښې وینا، د حادثې یا واقعې د پیښیدو نه اګاهو د هغې په باره کښې اظهار کونه،

**پیش منے** : پیشلمے، پرشمے، د سبا د اذان نه مخکښې وخت، چې د رمضان په میاشت کښې مسلمانان هغه وخت پاځي او خوراک کوي، سحري،

**پیش نهاد** : درخواست.

**پیشوا** : رهنما، لار ښونکے،

**پیشواز** : جامن، خلکې،

تیلک، هغه ګګره چې ګډیدونکي ئ د ګډا په وخت اچوي. یو قسم زنانوال قمیص.

**پیشه** : کسب، چار، هنر، روزګار، عادت، خوئ،

**پیښ**: یو اعراب، پیش، ضمه، مخکښې، وړاندې شوے، پیش.

**پیښه** : ملنډه، نقل، ټوقه،

**پیښیدل** : حاضریدل، واقع کیدل، مخې ته راتلل، مخې ته کیدل، څۀ واقعه پیدا کیدل، ناڅاپه په یو ځاے یا په چا تیریدل،

**پیغام** : پیام، خبر.

**پیغامبر** : پیغمبر، پیغام رسونکے، قاصد، نبي، رسول.

**پیغلتوب** : د پیغله کیدو حالت.

**پیغله** : ناوادۀ شوې جینۍ، بالغه.

**پیغمبر** : وګورئ پیغامبر.

**پیغمبري** : رسالت، دِ پیغمبر کیدو حالت.

**پیغور** : طعنه، تانه، ملامته، بدې ردې،

**پیکار** : جنګ، جګړه.

**پیکان** : توبرے، غشے.

**پیکر** : شکل، جسم،

**پیکو** : پائیکو، د شولو مشین، د مینچو مشین.

**پیکے** : پیچکے، ځتوکے، د تندې ویښتۀ چې ډول دپاره ساتلي شوي وي.

**پیل** : اغاز، ابتدا، شروع،

**پیلامه** : نښه، نښاني، علامه.

**پیمان** : وعده، عهد، قول، اقرار، لوظ.

**پیمانه** : د غلې دانې د پیمانه کولو لوښے، پیمانه کونه، مسطر، د ناپ تول آله، ډک، برجغ، برجق، خلې تر خلې.

**پیمائش** : کچ، ناپ.

**پیمائشي** : د پیمائش جوګه، کچ کونکے، ناپ کونکے.

**پیمخے** : ښائسته، ښکلے،

ډولي، حسين،

**پينځه** : وربخله، د پرتاګۀ هغه حصه چې پښې ترې بهر ښکاري.

**پينډه** : ګڼه، جمع، په يوه تالي راغونډ ناست کسان.

**پيوست** : جخت، متصل، خوا ته، پورې، سره، يو ځای.

**پيوند** : جوړ، بند، ټوټه، دوه جوړونه يا ټوکي پخپلو کښې يو ځای کونه، ټانکه،

**پيوندي** : پيوند شوي، ټانکه شوي، مات هډوکي سره پيوندونه، جوړ لګولی شوی.

**پيهم** : متواتر، مسلسل، پرله پسې.

**پی** : د زمکې يو خاص مقدار. پريکړه، قطع، لږې ژورې اوبۀ چې پکښې پښې په زمکه لګي.

**پی پی** : ډلې ډلې.

**ت** : (تې) د پښتو څلورم حرف چې د ابجد په حساب څلور سوه (۴۰۰) شمیر لري.

**تاب** : ګرمي، تاؤ، طاقت، وس، توان، غصه، قهر،

**تابان** : روڼ، ځلاند، ځلنده، ځلان.

**تابدار** : تاؤ لرونکے، کوږ وږ، تاؤ راتاؤ. تاؤ شوے، روښان، ځلان، ځلاند، تابان.

**تابع** : ایل، مطیع، فرمان بردار، ماتحت، نوکر.

**تابعدار** : منونکے، فرمان بردار، مطیع،

**تابعي** : هغه مسلمان چې د رسول کریم صلي الله علیه وسلم صحابي ئ لیدلے وي او تر مرګه مسلمان پاتې شوے وي.

**تابناک** : روښانه، روڼ.

**تابنده** : روښانه، تابناک، ځلیدونکے.

**تابوت** : د لرګي هغه صندوق چې مړے پکښې دفن کولو دپاره ایښولے شي.

**تابیا** : انتظام، بندوبست، تیارے، ځان جوړونه، تکل.

**تاترین** : ډیره ژوره کنده، ډیره ښکته، تحت الثریٰ، دوزخ.

**تاثر** : اثر منه، اثر قبلونه، اغیزه منه.

**تاثیر** : اثر، اغیزه، پدل، علامه، نښه، خاصیت.

**تاج** : د بادشاه یا ملکې د سر مخصوصه ټوپی،

**تاجدار** : تاج لرونکے، بادشاه.

**تاجر** : سوداګر، بیپاري، بیوپاري، تجارت کونکے.

**تاجور** : بادشاه، صاحب تاج، د تاج مالک.

**تاخ** : طاق، طاقچه، توکے، په دیوال کښې دننه د ډیوې یا نور سامان د ایښولو ځاے.

**تاخت** : منډه، حمله، ځغاسته، برید، یرغل،

**تاخیر** : ډیل، سستي، ماتلي.
**تادي** : جلدي، جلتي، بیړه، تلوار.
**تادیب** : ادب ښودنه، تنبیه، زورنه، سزا.
**تار** : د سپنسو یا بل کوم ځیز نه جوړ شوے مزے یا نری رسي چې د مختلفو کارونو مثلاً ټیلي فون، بجلي، شپول او د موسیقی د الاتو وغیره دپاره پکاریږي. ټیلي ګراف، ټیلي ګرام. د نشې د ختلو حالت، ناجائزه تعلق.
**تاراج** : تباهي، حمله، لوټ، شوک، تالان، غارتګري.
**تار په تار** : خوارۀ وارۀ، تتر بتر، تس نس، دانه دانه، تیت، ګډوډ.
**تار تار** : شلیدلے، څیرې ویرې، بیل بیل، خوروور.
**تارکول** : هغه تور تیل چې د سړکونو د پخولو په وخت د باجری دپاسه اچولے شي.
**تارو** : تور تنخرے، تاروګے، د تنخرې د کورنۍ یو خوږ اواز لرونکے مارغۀ.
**تاریخ** : تاریک، نیټه، د عدالت د پیشۍ ورځ، د یو قوم په سیاسي واقعاتو مشتمل داستان او د هغې علم.
**تاریک** : تاریخ، نیټه، تیارۀ، توره، تورتم، دوند، تیره غونې، ترغونې.
**تاریکي** : تیارۀ، تاریکه.
**تاړاک** : شبخون، لوټمار، چپاؤ، یرغل، کړاک، کړاو، رنځ، غم، مصیبت، چور، تالان، لوټ.
**تازګي** : شین والے، طراوت، تازه والے، خرښت، ښوربی والے.
**تازه** : شین، غوړیدلے، ښیرازه، تنکے، د مړاوې، زوړ او باسي متضاد،
**تازي** : د عربستان باشنده، د عربستان ژبه، عربستان سره تعلق لرونکے.
**تازیانه** : متروکه، چابک،

بینـت. تـنبیه، دبکه، هدایت، خبرداری.

**تـاسف**: افسـوس، ارمـان، خواشیني، حسرت، پښیماني، زړهٔ سواندي، .

**تـاسو**: تـاسې، تـاسې، د تا جمع.

**تـاسیس**: اسـاس، بنسټ، بـنیـاد، مـوسسـه، پـرانسته، ایجادونه.

**تاغیر**: متـغیر، بدل، مبدل، هغه څوک چې د رنځ، یا غم پـه وجـه ئ رنګ بدل شوی وي.

**تـاکید**: تـقـاضـا، کوشش، ټینګار، پخلی.

**تال**: لوی ښانک، د مصنوعي مـالګې تالاؤ، د موسیقی وزن، چال، رفتار،

**تالا**: تبـاه، لوټې شوی. تالهٔ، ژرنـده، قـلپ، قـفل، وګورئ تاله.

**تـالاب**: تـالاؤ، حـوض، د اوبو ډنډ.

**تالا ترغه**: لوټې شوی، تالا والا، تس نس.

**تالاش**: تلاش، لټون، لټونه، غـوښتـنـه، ډونـډ، تکل، کتنه، بیره، چالاکي.

**تالان**: شـوکه، لوټ، چور، ګړبړتیا.

**تالا والا**: لوټ شوی، چور شـوی، تـاراج شـوی، تـالا شوی، تباه شوی، تالا ترغه،

**تـالنده**: د اسـمـان تـنـا، تنا، غـړا، غرنده، ګړګړوز، تندر، رعد،

**تـاله**: قـفـل، قـلپ، جرنده، ژرنـــده. لـوټ شـوی، چـور شوی.

**تـالیف**: یـو ځـای کـونـه، کتاب لیکنه، تصنیف، دوستي کونه، په لفافه کښې بندونه،

**تـامکش**: هـغـه پـلـنـه غټه خـمـڅـی چې دیګمار پرې د دیګ نه وریژې راخلي.

**تامل**: غور کونه، فکر کونه، سـنـجـونه، سوچ، وقفه، دمه،

صبر، برداشت، تذبذب.
**تان** : د خامتا ځادر چې دولس ګزه وي. د کپړې یو مقدار چې د شلو نه تر پنځوسو ګزو پورې وي.د ځاروو ترلو ځاے.
**تاند** : تانده، تازه، تنکے، ښیرازه، تروتازه، سمسور، ابژن، پیور ځاروے.
**تانده** : تانده، ښیرازه، سمسوره، امیندواره ښځه، روانې اوبهٔ، تازه لنګه شوې غوا میښه.
**تانګ** : هغه پټۍ چې د ځناورو د ملا نه تاؤ شوې وي او زین یا کته وغیرهٔ پرې مضبوط شوې وي.
**تانګه** : ټانګه، ټمټم، بګی، د دوؤ پایو یو ډیر مشهور سپک ګاډے چې اس یا اسپه ئې راکاږي.
**تانیث** : د تذکیر متضاد، ښځینه جنس،
**تانه** : د پولیس لویه څوکی، د اولس د نظم و نسق انتظامي اداره. تنسته، تنه، د بودې ضد.
**تاؤ** : توروالے، تودوخې، ګرمې، تپ، حرارت، تودوخه، سوزش، تیز والے، چټکتیا، ګړندے نوب، زور، شدت، غصه، قهر، ول، پیچ، د ګیډې درد، کوږوالے، بریښ، سوخت،
**تاوان** : زیان، نقصان، ضرر، تروټه، جرمانه، پور، قصور، جرم، د نقصان تلافي.
**تاؤ راتاؤ** : کوږ راکوږ، نغښتے، منجیله شوے.
**تاوول** : تاوهل، چورلول، غښتل، غصه کول، ګرمول، تودول.
**تاویدل** : چورلیدل، چکر خوړل، تاؤ خوړل، غښتلے کیدل، څرخیدل.
**تاویل** : تعبیر، شرح، تفسیر، معنې کونه، د خوب تعبیر، شرعي بهانه،

**تاهم** : بیا هم، خو، خو بیا هم، په دې هم، سره د دې.
**تائید** : تقویت، مدد، طرفداري، ملګرتیا، رعایت.
**تایب** : توبه کونکے، توبه ګاریدونکے، توبه ایستونکے،
**تباخ** : طباخ، ښانک، تال، تبخ، تلبر، تالبر، تبخے، تیغنه، تبی.
**تبادله** : بدلې، تبدیلي، بدلیدنه، عوض ورکونه، بدلون، ادل بدل.
**تباه** : برباد، خراب، ویجاړ.
**تباهي** : بربادي، ویراني، تباه کاري.
**تبخے** : تیغنه، توبی، تبی، تباخ. پلن هډوکے چې عام طور سره د لاسو پښو په آخر کښې وي.
**تبدیل** : بدل، بدل شوے.
**تبر** : د لرګي لاسکے لرونکے د وسپنې آله چې د ځان د حفاظت او د لرګو د ماتولو دپاره پکارولے شي. د ښځو په قمیص کښې د ډډې یا د ترخ جیب، تبرغالے.
**تبرّک** : خورده، خوړده، د برکت څیز، برکتي، د بزرګانو یا د ښو خلقو د یادګیرنې څیز.
**تبریک** : تبارکي، مبارکي، ښادمني، چاته د برکت دعا کونه.
**تبزه** : د کاڼي تخته، د کاڼي نه جوړ شوے تبخے، تبز.
**تبږن** : لږ شان ګرم، نیم ګرم، تبې نیولے،
**تبسم** : مسیدل، مسکے کیدل، مسیدهٔ.
**تبصره** : یو موضوع روښانه کول، یادونه، نوټ، بینا کونه.
**تبق** : تبک، طبق، تبخ، د ځاروو یوه بیماري چې په خلهٔ او پښو ئې راځي.
**تبلیغ** : خلقو ته شرعي حکم بیانونه، پیغام رسونه، خبر رسونه، وعظ، نصیحت، د خدائے رسول صلي الله علیه وسلم د لارې خبرونه،

پروپیګنډه.

**تبه** : یوه بیماري چې د بدن درجه حرارت پکښې د ۹۸ فارن هیټ نه زیات شي او ټول بدن کښې درد محسوسیږي، بدن ګرم شي.

**تبۍ** : د کاڼي تخته، کاڼے، تیږه، تیغسه، هغه آله چې په انګرې پرې ډوډۍ پخولے شي.

**تبے** : ترکارۍ ته د غوړو سره کونه، ترکه، داغ، بګار.

**تپ** : ګرمي، تاؤ، براس، تبه، لیو، هوارے.

**تپاڼے** : څپاکه،غوشوے، تپنړے، سوبارے، هغه لرګے چې جامې پرې وینځلے شي. وړوکے مولے، سوټے، ډبلی.

**تپچه** : د مرزانو نیولو دپاره استعمالیدونکې یوه دستي آله چې غبرولے شي او په اواز ئ مرزان راځي.

**تپل** : پورې کول، بندول، لیو او تپ ور کول، په غاړه کول، پیوند اچول.

**تپلے** : تپلے، چې مخ ئ هوار نهٔ وي، تپي تپي مخ لرونکے، هغه کس چې مخ ئ د غټو ننکو په وجه ټکي ټکي شوے وي.

**تپنړے** : سوبارے، تپاڼے، د جامو وینځلو لرګے، څوبارے.

**تپوس** : تفحص، پوښتنه، د سوال جواب غوښتنه، بیمار پرسي، حال احوال معلومونه.

**تپه** : ډله، ټولے، قبیله، طائفه، د ملک یوه حصه، علاقه، سیمه، غونډۍ، شاګې، خټ، ډبه، پشته، ډپه، د تیارې کلمې سره یو ځاے راځي لکه تپه تیارهٔ.

**تپیره** : کچه خښتې جوړونکے، تپیرے.

**تپے** : داغ، خال، خاپ، ټکے، خول.

**تت** : کم رڼ، کم روښانه، کمه رڼا لرونکے. جوخت، پیوست، جخت، پرله پورې،

تینګ، هغه څيز چې روښانه نـه وي، خړ، تـرتړے، خفـه، غـمـژن، بـې طبعې، مړاوے، خجل، ړوند.

**تتبع :** تـحقیق، څیړنه، وروستو تلنه، تقلید، پیروي، نقل.

**تتمـه :** بقـایـا، بـچ شوې، ضمیمه، د کتاب هغه وروستی بـرخـه چـې ورسره زیاته شوې وي.

**تتوره :** چـاپړاخـه، څپیړه، تپړه، تماچه.

**تـجارت :** بیوپـار، سودا ګري، تاجري، لین دین،

**تـجاوز :** د حـد نـه اوړیدل، زیاتے، تیرے،

**تجاهل :** ځان ناجاڼه کول، ځـان نـاپوهـه کول، قصداً ستر ګې پټول،

**تـجدید :** جـدیـد کول، لـه سره شروع کول، نوے کول، زوړ شے پـه نوي طرز پیش کول.

**تجربه :** ازمائش، ازمائیښت، ازمیښـت، یوه مسئله په عمل ثابتونه، عملي زده کړه.

**تجرد :** د جره کیدو حالت، د مجرد کیدو حالت،

**تـجـرید :** یـوائـې کـول، بیـلـول، لـوځـول، بـربنډول، روح د مادي فکرونو نه پاک سـاتل، توره له تیکي ایستل، د ونـې خـصـي کول، د مجـرد کیدو حالت،

**تـجزیه :** د یو مـرکب څیز بیـلـونـه، د یو موضوع په بیلو بیـلـو برخو بحث کول، جزو جزو کول.

**تـجسس :** لـټون، تلاش، تـحـقیـق، جـاسـوسي کونـه، جستجو، پلټنه، لټونه.

**تـجلا :** رڼـا، تـجـلي، ځلا، جلوه.

**تـجمل :** جـمـال، ښـائست، شان و شوکت، زیب و زینت.

**تـجنیس :** د یـو جنس سره یـو ځـاے کـونـه، هم جنـس کونه، د علم بدیع په اصطلاح

کښېږي هغه صنعت چې هم شکله کلمې په بېلو بېلو معنو سره استعمالولې شي.

**تجوري** : ګلله، غله، هغه صندوق چې شتهٔ من خلق پکښې خپلې پیسې سمبالوي.

**تجوید** : نیکې کول، ښهٔ کار کول، هغه علم چې د قرآن مجید په تلاوت کښې د مخرج نه د حرفونو د ادائیګۍ طرز ښیي.

**تجویز** : رائ، تدبیر، انتظام، بندوبست، له یو نه زیاتو تدبیرونو کښې یو ته ترجیح ورکول.

**تجهیز** : تیارونه، برابرونه، سمبالونه، مړي د ښخولو د پاره تیارول.

**تحت** : لاندې حصه، اختیار، قبضه، کوزه، لاندې، ښکته.

**تحدید** : محدودول، حد جاري کول، سزاوار کول.

**تحریر** : لیک، خط، لیکنه،

**تحریص** : حرص ورکونه، وچتونه، ترغیب، دوکه، اغوا.

**تحریف** : ګرځونه، اړونه، بل شان کونه، بدلونه، د یو توري په ځاے بل توري ایښونه.

**تحریک** : حرکت ورکول، خوځول، هڅه، کوشش، لمسون، څهٔ خبره شروع کول، ډله جوړول.

**تحریم** : حرامول، مردار ګڼل، عزت کول، د نیت تړلو په وخت لاسونه وچتونه او الله اکبر وئیل.

**تحسین** : شاباشے، ستائنه، صفت کول، ښهٔ ګڼل،

**تحصیل** : حاصلول، لاس ته راوستل، ټولونه، کچهری، د ضلعې وړه انتظامي حصه.

**تحفظ** : ساتنه، ژغورنه، حفاظت، بچاؤ، یادونه، زده کونه.

**تحفه** : سوغات، بخشش، پیشکې، ډالی.عجیبه یا نادر

څیز، انعام.

**تحقیر** : ذلت، سپکاوی، بې عزتي، سپک ګڼل، سپک والی.

**تحقیق** : حقیقت معلومول، څیړنه، لټونه، پلټنه،

**تحلیل** : حل کونه، حل کیدنه، یوه موضوع برخو کښې ویشل.

**تحمل** : صبر، زغم، برداشت.

**تحول** : انقلاب، بدلون، اوړیدنه.

**تحویل** : حواله کول، سپارل، د یو څیز د یو ځای نه بل ځای ته اړونه یا چا ته حواله کونه. قبضه، قدرت،

**تحیات** : د تحیة جمع، دعاګانې، سلامونه، پیش کشي.

**تحیر** : حیرت، حیرانتیا، حیراني.

**تخت** : د بادشاه د ناستې ځای، له لرګي جوړ د ناستې

مسند.

**تخته** : د هر څیز پلنه وړده او هواره ټوټه، دړه، هر پلن او هوار څیز، پور، ډک، چوکۍ، پیړۍ، د مړي د لامبولو د لرګي وړده او پلنه ټوټه، جخت یا پیوست څیزونه، کیاري، د زمکې وړه ټوټه، بورړ.

**تخته پوش** : د مانځهٔ دپاره د لرګي جوړ چیت میز، په تخت د اچولو څادر.

**تختي** : د لرګي مستطیله تخته چې ماشومان پرې لیکل زده کوي.

**تخرګ** : ترخ، بغل، خوا، څنګ.

**تخریب** : زیان رسول، خرابول.

**تخریبي** : د تخریب سره متعلق.

**تخصیص** : ټاکنه، تعین کول، خصوصیت، مخصوص کول.

**تخفيف** : كمول، لږول، راښکته کول، د نوکرانو کمول.

**تخلص** : هغه وړوکے نوم چې شاعران ئ عام طور سره د خپل اصلي نوم په ځاے په شاعرۍ کښې استعمالوي.
کسر. تریدنه، ترهیدنه.

**تخليق** : پیدا کول، زیږول،

**تخليه** : تشول، خالي کول، ږواځې والے، خلوت.

**تخم** : زړے، دانه، اصل، نسل، نژاد، ختهه، ها، اګی، اویه، هویه. د خلي ځګ، د کټوی یا دیګ ځګ.

**تخمين** : ګومان، اندازه، قیاس، چاج.

**تخميناً**: په اندازه، په تخمینه، تقریباً.

**تخمينه** : اندازه، قیاس، چاج، بجټ، میزانیه.

**تخنول** : تخنول، ختنول، تحریکول، شوق ورروستل، تحرک د پښو تلي یا نورو داسې اندامونو له په دې مقصد ګوتې وروړل چې بنده وخندوي.

**تخنيدل** : د تخنول لازمي حالت. د خندا حالت پیدا کیدل، ختنیدل، تخنیدل،

**تخويف** : ویرول، درکه کول.

**تخيلي** : خیالي، تصوري، د تخیل سره متعلق.

**تخييل** : تخیل، تصور، خیال، ګومان.

**تدابير** : د تدبیر جمع، تدبیرونه.

**تدارک** : انسداد، منع کول، تیارول، اماده کول، تابیا، تابیه، تدبیر، بندوبست، د کومې اشتباه یا غلطي راګرځول، پته لګول، درک کول، موندل،

**تداوي** : دارو، علاج، دوائي کول، علاج کول،

**تدبر** : تدبیر کول، فکر کول، هوښیارتیا.

**تدبیر** : سوچ، خیال، فکر، غور، انتظام، بندوبست.
**تدریج** : په مزه مزه، درجه په درجه، ورو ورو، پوړی په پوړی.
**تدریجاً** : په تدریج، په مزه مزه، په ورو ورو.
**تدریس** : درس ورکول، لولول، سبق، تعلیم.
**تدفین** : دفن کول، ښخول.
**تدوین** : راټولول، تالیفول، مرتب کول، دیوان جوړول،
**تذبذب** : شک، شبه، حیراني، تردد کیدل، دوجاله توب،
**تذکره** : ذکر، بیان، یاداشت، یادونه، تبصره، د لویو شخصیتونو په احوالو مشتمل کتاب.
**تذلیل** : بې عزته کول، سپکول، تیټول، ذلت، رسوا کول، ذلیل کول.
**تر** : د ربط حرف چې د فاصلې انتها ښکاره کوي. پورې.
**تراب** : خاوره، ختټه.
**تراټ** : ترپ، خیز، ټوپ، وچتیدنه راخلاصیدنه. تیز زغل، تیزه منډه، زغاښت، ترټه، ټاټ، د غلې اچولو انډیړے، خمبه،
**تراجم** : د ترجمه جمع، ترجمې.
**تراخهٔ** : وګورئ تارخهٔ. د تریخ جمع.
**تراره** : ویره، ډار، خوف، ناقراري، ناقلاري،
**ترازو** : تله، کنډه، ترکړی، د وزن کولو آله، میزان.
**ترازه** : تنګره، پره، دړه، قاش، د ختکي یا هندوانې تنګره.
**تراش** : توږل، تراشل، طرز، طریقه، ایجاد، جوړښت، سینګار.
**تراشل** : توږل، ژوبلول، زخمي کول، خورګ وړل.
**تراکیب** : د ترکیب جمع،

رایو ځاے کول، تدبیرونه،
**ترانه** : سندره، نغمه،
**تراویح** : تراوېح، هغه مونځ چې سنیان ئې د روژې په میاشت کښې د ماسخوتن له مانځهٔ سره ادا کوي.
**تراوېح** : وګورئ تراویح.
**ترښت** : تربته، خفه، پرېشانه، تنګ، زهیر.
**تربت** : خاوره، قبر، مزار، ګور.
**تر بسه بسه** : ډېر زیات، تر وسه وسه.
**تربګني** : تربورولي، تربوروالے، دشمني.
**تربور** : د ترهٔ خوے، د کاکا خوے، د اکا خوے، دشمن،
**تربوزک** : تامبوزک، تمبزک، هغه څادر یا پتکے چې خلهٔ او پوزه پرې پټولے شي.
**تربیت** : پالنه، پرورش، روزنه.
**تربیه** : تربیت، پالنه، د ادب او د اخلاقو د ښودنې چاره.
**ترپال** : کلک، پیړ او غټ د جیم یا موم جامې څادر چې د باران یا نمر نه د بچ کیدو دپاره پکاروله شي. تراپړ،
**ترپکه** : ارغنجکه، ټوپ، غوړدانګه، غوررزنګ، ترټکه، ترانجکه، بې ترتیبه ټوپ، تیزه منډه، پښې په زور سره په زمکه وهل.
**ترتیب** : تنظیم، سمبالے، برابرے، د څیزونو په خپل ځاے ایښودنه.
**ترتیل** : په خوش اوازی سره صفا صفا لوستل.
**ترټل** : رټل، شړل، سپکول، کورې کول، د ځان نه شلول، شړتول.
**ترجمان** : مترجم، هغه څوک چې د یوې ژبې مطلب یا معنيٰ په بله ژبه کښې بیانوي، هغه څوک چې د دوؤ کسانو ترمنځه چې د یو بل په ژبه نهٔ پوهیږي د خبر

رسان فرائض سر ته رسوي.

**ترجمه** : له يوې ژبې نه بلې ژبې ته اړول، ژباړه.

**ترجيع** : پـه ستوني كښې د اواز ګرځونه، بيرته اخستنه.

**ترخ** : ځـنګ، ځـنګزن، پـه يـو طـرف كول، سخته خبره، ځنګ، ډډه، بې ارامي.

**ترحم** : زړهٔ سـوے، رحم او زړهٔ سوځيدنه، رحم لرنه،

**ترخ** : تخرګ، بغل.

**ترخځ** : هغـه ټوټه چې د قـميص پـه تـخرګ كښې اچولے كيږي.

**تردد** : نـازړهٔ والے، تـزلـزل، دوجالي، تذبذب، تګ راتګ، ګـنـه ګـونـه، محنت، كوشش، زيار، د دستونو ناروغي.

**ترديد** : رد كـول، مـنسوخ كول، د يوې خبرې د صداقت خلاف څهٔ رائ ښكاره كول.

**تره** : د كبـل خـيـلـې، كبله، بـروه، مـرغـه، يـو قسم واښهٔ، زغـل، مــنــډه، دؤ، تــراټ، تكليف، ستونزه، ربړ، د باران نرى شيبه، نرے باران.

**تړمى** : د ماښام لړه چې لاً تيارهٔ پوره نهٔ وي خوره شوې. هغهٔ شپه چې سپوږمى پكښې نهٔ وي.

**ترس** : ويـره، بيــره، ډار، رحـم، مهـربـاني، زړهٔ سوے، زړهٔ خوږے، خوا خوږي.

**ترسا** : مسيـحـي، عيسائي، نصراني، آتش پرست.

**ترسان** : ويـره كونكے، ويريدونكے.

**ترسناک** : تـرس كونكے، رحم كونكے.

**ترسنده** : ويـريـدونـكے، ترس كونكے، زړهٔ سوونكے.

**ترش** : تريو، ترووش، تراک، تروک، بوټ، برووس.

**ترشي** : د تــرش كيـدو حـالـت، اچار، تراوهٔ څيزونه، سركه، تريو والے.

**ترښځ** : د تـر كاڼانو يو اوزار چې لـركے پـرې توږلے او

ماتولے شي

**ترصيع** : د نظم يا نثر کلمات په وزن او قافيه مرتب کونه. مرصع کول.

**ترغوني** : د مابنام خړه، تردمي، په کوم ځاے کښې چې لږه شان تيارة خوره شي.

**ترغيب** : رغبت ورکونه، لمسونه، پارونه.

**ترقي** : وده، نوئيدل، ختل، رفعت، پرمخ تګ، وړاندې تګ، پراختيا، لوړوالے، انکشاف، لوړې درجې ته رسيدل.

**ترک** : ستره تله، هغه تله چې د کاندارانو پکښې کن شمير خوروته په يو وخت تلل شي. لويه تله.

**ترکاري** : سبزي، تلکاري.

**ترکاڼ** : پښ، د لرګي کار کونکے، استکار، ترکن، د يوې مرغۍ نوم، تکتکے، تکتکانړے.

**ترکش** : د غشو ايښو شخول، ترکښ.

**ترکه** : د ميراثي مال ويش، په ميراثي مال کښې د هر يو برخه لرونکي برخه معلومونه.

**ترکيب** : ساخت، جوړونه، طريقه، چل، فريب.

**ترله** : د ترهٔ لور.

**ترماميټر** : د درجه حرارت د معلومولو يوه آله.

**ترمباز** : چرمباز، د غوبل هغه غوئے چې په قطار کښې د تولو نه دننه ترلے وي. د ناوې غوئے

**ترمکيا** : پنه، چړکاؤ، پونه کونه، ترمکا.

**ترميم** : اصلاح کول، بيا سمول، بيا جوړول، بيا تيارول، ردوبدل کول.

**ترناؤ** : ترنا، ترې، ناوه، هغه لويه ناوه چې د لښتي يا ولې نه پرې بلې غاړې ته اوبهٔ اړولے شي. وله، وياله، د اوبو لښتے.

**ترنجبين** : ترنګبين، د خاص قسمه ازغو يوه خوږه

شیره په طب کښې د توخي او د سینې د درد دپاره استعمالولے شي.

**ترنګړ** : لوړے کوړے، ګرلڅه، ګرلاڅۀ، وړوکے کمبو، د میزرو نه جوړ شوے کمبو، ترنګن.

**ترنګن** : ترنګړ، جوال، و ګورئ ترنګړ.

**ترنم** : په خوږ اواز وئیل، پوزه کښې خبرې کول،

**تروتازه** : شاداب، شین، ډیر تازه، ډیر خوشحال.

**تروټه** : چټې، تاوان شوے، ذلیل،

**ترور** : د پلار یا د مور خور، مشرې ښځې ته د احترام کلمه.

**تروړه** : وړه بوجی، هغه بوری چې پوره ډکه نۀ وي.

**تروړی** : لومبړه، ګیدړه، ترورۍ.

**ترویج** : رواج ورکول، دود کول.

**تروې** : شوملې، شړومبې، شلومبې، شنیبې،

**ترویت** : د نجوم علم، فال معلومول، فال ګري، پال ګري.

**تره** : ترازه، تنګره، پره. د بادرنګ د کورنی یوه سبزي چې وړه وي. ناوه، پرناله، غوندې، په شان،

**تره غوټې** : د ماښام تیارۀ، د ماښام خړه، ترږمی،

**ترۀ** : کاکا، د پلار ورور، چاچا، هر مشر سړي ته د احترام تورے.

**ترهور** : تردد، ډیر زیات ناقرار، ویریدلے، وارخطا، هک پک، حیران، ړوند، بې ستر ګو.

**ترهه** : تره، ډار، ویره، ترس، خوف، اندیښنه.

**ترهیدل** : تریدل، ویریدل، ډاریدل، وارخطا کیدل.

**تري** : شکره، بوره، د پخوانی زمانې یوه ډیره میده سپینه بوره. نم داره زمکه،

شبنم، تازګي.

**ترياق** : د زهرو اثر ختم کونکې يو قسم دارو، زهرمهره، اپيم، ترياک.

**تريخ** : د خوږ ضد، د مرچکي په شان خوند لرونکې. غصه ناک، سخت مزاجه، خشکي، ګران، سخت، مشکل، بې خونده، خراب، غيرتي، همتي، مړنې.

**تريخې** : زهره، زاره، د انسان او حيوان په ګيډه کښې دننه يو اندام. ننګ، غيرت،

**تريناک** : ترهند، ترند، وحشي، زوړ باز، ساتلې باز، ښکاري باز، اموخته باز.

**ترينګړى** : ترينګلي چوټکي، تينګړى،

**تريو** : ترش، تروش، تناک. غصه ناک، قهريدلې.

**ترې** : ترې نه، ځنې، له هغه. څخه.

**تړ** : غوټه، غنډه، ګنډه، د اوبو بند، لويه ګټه، تيږه، تجويز، قرارداد، اتفاق، تړون.

**تړتړو** : د مرى غوټه، ګړ ګړو، ګوړ ګوړو.

**تړتړې** : تترې، تورې، چارې، هغه څوک چې ژبه ئې نښلي.

**تړتقه** : تړتکه، د ناقرارى او درد له کبله ټوپ، د حلال کړې ښاروې ټوپ، تړتک.

**تړکه** : داغ، د سرو کړو غوړو بګار، دباؤ، دړکه، ګوابن.

**تړل** : د دوؤ يا زياتو څيزونو تر منځه تعلق پيدا کول، غوټه کول، بندول، پابندول، بې بند کول، جوړول، د تار، مزي يا پړي په ذريعه سره نښلول.

**تړم** : لږ شان ګرم، نيم ګرم، تودمن.

**تړمول** : لږ تودول، تودول، ايله تاؤ ورسول.

**تړون** : تړنه، غوټه ور کول.

قاعده، رسم، دود، دستور، قرارداد، رابطه، تعلق، بندیز، تړه، ناغه، اتحاد کونه، اتفاق کول.

**تړه** : لار، لاره، سخته زمکه، اراده، مقصد، وعده، لوظ، د تیرې څوکې غونډی، لویه غټه کلکه تیږه، دود، دستور، رواج.

**تزکیه** : پاکوالے، پاکونه.

**تزلزل** : رپا، رپیدل، ریږدیدل، لړزیدل،

**تزویر** : چل، چل ول، فریب، تګي، دوکه.

**تزیین** : ښکلے کول، ښائسته کول، سینګارول. مزین کول.

**تږے** : تندې اخستے، د اوبو څښلو خواهش مند،

**تساهل** : سستي، غفلت.

**تسبه** : تسپه، تسبیح، د لرګي، شیشې، مسالې وغیره نه جوړه هغه دانه چې مزې کښې نورو داسې دانو سره پییلې شوې وي.

**تسبیح** : تسبې، د تسبو امیل، د الله پاک یادول، ورد، وظیفه.

**تسخیر** : په قابو کښې راوستل، تابع کول، ګیرول، مسخر کول.

**تسکوره** : سسکوره، د لرګي او د وسپنې وړد مخ لرونکې هغه آله چې د زمکې کنستلو دپاره پکاریږي.

**تسکین** : تسلي، سود، اطمینان، قرار.

**تسل** : ډاډ، اطمینان.

**تسلسل** : سلسله، یو بل پسې کیدنه، پرله پسې کیدل، متواتر.

**تسلط** : مسلط کیدل، په قابو کښې راوستل، بریالے کیدل،

**تسله** : تسل، تسلي، ډاډ، اطمینان.

**تسلي** : سود، ډاډ، تسله، ډاډګیرنه، اطمینان، تسل.

**تسلیم** : منه، قبلونه، غاړه

ایښودنه، تابع کیدل، سلامي کیدنه، سپارنه، حواله کونه.
**تسمه :** د څرمنې وړده نرۍ ریښه، د څرمنې پټۍ، کمر بند، ملاتړوړے، پټه.
**تسمیه :** نوم ایښودنه، بسم الله وینه.
**تس نس :** تیت پرک، ګډوډ، خوارۀ وارۀ، زر خلاص شوے، تمام شوے.
**تش :** خالي، ډډ، ګوګ، بې معزه، فقط، ایله، یواځې، محض، صرف، فرض رکعتونو کښې د دوؤ وړومبو رکعتونو نه پس ته رکعت یا رکعتونه. د منې د انزال نه پس د آلت حالت.
**تشاکل :** یو شان کیدنه.
**تشبیب :** د قصیدې تمهید چې شاعران پکښې عام طور سره د عشقیه تاثر مضامین پیش کوي.
**تشبیه :** مشابه کول، د دوؤ څیزونو یو بل سره مشابهت.
**تش تور :** بالکل خالي، بیخي تش، خالي لاس، ناکام، پاتې، محروم، بې برخې.
**تشخص:** امتیاز، شخصیت، انفرادیت
**تشخیص :** د ناروغۍ وجه معلومونه، تاکل، تعینول، اندازه لګول، بیلونه، فرق کونه.
**تشدد :** سختي، زیاتے، جبر، سخته رویه.
**تشدید :** زور اچونه، انتشار پیدا کونه، د شد علامت ور کونه.
**تشریح :** شرح کونه، بیانونه، وضاحت.
**تشریع :** شریعت ور کونه، قانون ور کونه، لاره ښونه، په سمه لار اچونه.
**تشریف :** عزت ور کونه، شرف ور کونه، بزرګي ور کونه، لویي ور کونه، دروندوالے.
**تشفي :** تسلي، سکون، دل جمعي.

**تشکیک** : په شک کښې اچونه، اندیښنه، شبه.
**تشکیل** : جوړښت، تاسیس، جوړنه.
**تشلمه** : کچلمه، دشلمه، یوه شیریني چې چایو سره خوړلے شي.
**تشناب** : غسل خانه، چارچوبی، چرچوبی، چمچوبی.
**تشنج** : د وجود اعصاب بې حسه کیدنه، د لاسو پښو کریدنه، تېتهنس.
**تشنه** : تږے، اوبو ته لیواله، د اوبو څښلو خواهش مند.
**تشول** : خالي کول، ډډول، ګوګول، خلاصول،
**تشویش** : پریشاني، فکر، سوچ، سودا، اندیښنه.
**تشویق** : لمسونه، هڅونه، ترغیبونه، شوق پیدا کونه.
**تشه** : خالي، ډډه، د زمکې دپاسه د هوا کره، فضا.
**تشهد** : کلمه شهادت لوستنه، دویم او څلورم رکعت کښې په ناستې کلمه شهادت وئینه.
**تشهیر** : شهرت ورکونه، مشهورونه، شرمونه، مسخره کونه، رسوا کونه، په غلط کار د خلقو په منځ کښې رسوا کونه، مخ تورونه او په خرهٔ سورونه.
**تشیدل** : خالي کیدل، ډډیدل، ګوګیدل، انزال کیدل، د ګیډې خالي کیدل.
**تشے** : د انسان او حیوان د پُښتو نه لاندې او د ډوډې دپاسه خالي ځاے.
**تښتول** : په منډه کول، ځغلول، په زور بوتلل، اغوا کول، لرې کول، پړول، شکست ورکول.
**تښتیدل** : په منډه کیدل، ځغلیدل، د ښځې خپل کور پریښودل او چا پسې تلل، پړیدل، د څهٔ خبرې نه په څنګ کیدل، شکست

خوړل.
**تصادم** : ډغره، ټکره، په خپلو کښې جنګيدنه، کرچ، د دوؤ کسو جنګيدنه.
**تصانيف** : د تصنيف جمع وګورئ تصنيف.
**تصحيح** : صحيح کونه، سمونه، اصلاح کونه، غلطي لرې کونه،
**تصدق** : صدقه، قرباني، خيرات.
**تصديق** : د تکذيب متضاد، رښتيا ګڼنه، تائيدونه، صداقت، تائيد، شهادت، شاهدي.
**تصرف** : قبض، اختيار، تبديلي راوستنه، ګوتې وهنه، خرڅ، صرف.
**تصريح** : شرح، تشريح، تفصيل، صفا صفا څرګندونه.
**تصريف** : صرف کونه، خرڅ کونه، اړونه، ګرځونه، د صرف علم.
**تصغير** : وړوکوالے، کوتاهي، هغه اسم چې وړوکے ظاهروي.
**تصفيه** : صفائي، صفا کونه، چاڼونه، فيصله، بيباقي، ثالثي، د معاملاتو حل کونه.
**تصنع** : جعل، تکلف، ظاهري نمائش، ځان ښودنه، دوکه، فريب، جعلسازي.
**تصنيف** : طبع زاد کتاب ليکنه، ټولګي ټولګي کونه،
**تصور** : خيال، سوچ، انديښنه، ګومان.
**تصوف** : له نفساني خواهشونو پاکيدنه، الٰهي اخلاق اختيارونه، هغه علم چې د هغې په ذريعه د زړهٔ تزکيه کيږي او د انسان او خدائے ترمنځه تعلق پيدا کيږي.
**تصوير** : انځور، عکس، نقش، بُت، صورت، څهره، څيره، خاکه، شکل.
**تضاد** : ورانوالے، ضد، د نظم او نثر هغه صنعت چې

مخالف لفظونه پکښې یو ځای راشي.

**تضحیک** : په چا پورې خندنه، توهین، ذلت، رسوائي.

**تضرع** : زاري، عاجزي او عذر کونه.

**تضلیل** : گمراهونه، په چا د گمراهی حکم کونه.

**تضمین** : ضمانت کونه، ذمه وهنه، ذمه واري، د چا په شعرونو باندې داسې بندونه جوړونه چې د هر بند وروستی او له وروستی نه مخکښې مصرع دواړه د اصل شاعر او نورې مصرعې د بندونو د جوړونکي شاعر وي.

**تطابق** : مطابقت، برابریدنه، متفق کیدنه، د نثر نظم یو صنعت چې د شعر لفظونه پکښې داسې راشي چې یو بل سره مناسبت لري.

**تطبیق** : مطابقت، موافقت، عملي جامه وراغوستنه، اجرا کونه.

**تطهیر** : پاکونه، صفا کونه، وینځنه،

**تعارض** : تیرے کونه، زیاتے کونه، سره نښتنه، برید کونه.

**تعارف** : واقفیت، پیژندگلو، اشنا کیدنه، یو بل سره پیژندنه، معرفي.

**تعاقب** : چا پسې اپه کونه، شکست خوړلے لښکر یا فرد په منډه را اړونه

**تعالیٰ** : د الله د ناموې نه پس راتلونکې کلمه چې معنیٰ ئې بلند، عالي مرتبه، له ټولو صفتونو وچته ده.

**تعامل** : رسم و رواج، دود دستور، رواج، یو په بل اثر کونه.

**تعاون** : مرسته، ملگرتیا، مدد، کومک.

**تعبیر** : عبارت کښې راوستنه، تفسیر، ناوبل، د خوب معنیٰ ښینه.

**تعجب** : حیرانتیا، حیرانې،

حیرانگي.
**تعجیل** : تلوار، تادي، جلدي، جلتي.
**تعداد** : شمیر، سمار، گنتي.
**تعدي** : زور ظلم، جبر، زیاتے، د حد نه تجاوز کونه.
**تعدیل** : صحیح کونه، درستونه، څهٔ څیز د بل برابرونه.
**تعذیب** : خورونه، ربړونه، عذاب ورکونه، کړونه، په عذابونه.
**تعرض** : حمله، یرغل، برید، تیرے، تجاوز، ورختنه.
**تعرف** : پیژندګلو، تعارف، معرفي، بلدتیا، بلدیدنه،
**تعریف** : صفت، مدح، ستائنه، خوبي، شناخت، پیژندګلي، د یو څیز جامعه او مانعه معنیٰ.
**تعزیت** : غم خواري، خواخوږي، د مړي د پسمانده ګانو سره د همدردی اظهار.
**تعزیر** : رټنه، غندنه، ملامتونه، تاوان، ګوښمالي، هغه سزا چې په قرآن شریف کښې ئې ذکر نهٔ وي او د قاضي په خوښه ورکولے شي. دبکه، دړکه.
**تعزیه** : غم رازي، تعزیت،
**تعصب** : مرسته، طرفداري، ننګه، هوډه، په څهٔ ټینګیدنه، کرکه، کینه، بغض
**تعطل** : اتاليدنه، معطلیدنه، ماتل کیدنه، وزګاریدنه، بیکاري،
**تعطیل** : رخصت، چوټي، چُټي، وزګارتیا، بیکاري.
**تعظیم** : لوے والے، ستر والے، ادب، عزت، دارمدار، خاطر، درنښت، احترام.
**تعفن** : وږم، بوئ، سخا بوئ.
**تعقل** : هوښیارتیا پیدا کونه، عقل لرنه، غور کونه، عقلیت پسندي.
**تعقیب** : چا پسې تلنه، څارنه. د نمانځهٔ نه پس د

وظيفې دپاره ناسته، هغه دعاګانې چې د نمانځۀ نه پس وئيلې شي. څنډونه.

**تعقيد :** غوټه ورکونه، په شعرونو کښې توري داسې په ثقالت مخکښې وروستو کونه چې د يو ځاے توري بل ځاے ته ورسي او مطلب ئې واضح نۀ وي.

**تعلق :** تړون، تړاؤ، پيوستون، اړه، تعلقه، سريکار، واسطه، خپلولي. رشته، مناسبت، مينه، ميلان، رغبت.

**تعلم :** زده کونه، د علم لوستنه.

**تعلي :** لوئي، لافې، ډوزې، بډائي، د شاعرى په اصطلاح کښې هغه وينا چې شاعر پکښې فخريه خپل لوړے والے وائي.

**تعليق :** يو متن سره د يو عالم سړي نوټ.

**تعليم :** زدکړه، علم حاصلونه، ليکنه لوستنه.

**تعمير :** ودانونه، ابادونه، وداني، ابادي، کور، خونه.

**تعميل :** عمل کونه، کړۀ کونه، حکم مننه، فرمان برداري.

**تعوذ :** اعوذ بالله وينه، له شيطانه د الله پاک پناه غوښتنه.

**تعويذ :** هغه دعاګانې چې يو کاغذ کښې ليکلې کيږي او. بيا په غاړه کيږي يا په مټ پورې تړلې شي. پنا ورکونه، تاويذ.

**تعهد :** ژبه، لوظ، وعده، قول، په غاړه اخستنه،

**تعين :** ټاکنه، مقررونه، ټاکلے کيدنه، غوره کيدنه، منتخب کيدنه، مخصوص کيدنه، د تصوف په اصطلاح کښې په موجوداتو کښې فرق کونه.

**تعينات :** تقررې، ټاکنې، انتخابيدونې، غوره کيدونې.

**تغاري :** خاورين لوښے،

تالې، مجمه.

**تغافل** : غفلت، بې خبري، بې پروائي.

**تغذيه** : خوراک ورکونه، غذا ورکونه.

**تغزل** : غزل وئينه، عشقيه مضامين د اثر او تاثير سره نظم کونه، غزليت، د غزل خصوصيات.

**تغليط** : غلطونه، يو څيز باندې د غلط حکم لګونه.

**تغليظ** : د مائع څيزونو ټينګونه.

**تغمه** : دغمه، د چابک يا لښتې د ګوزار نښه،

**تغير** : تبديل، تغيير، بدلون.

**تغيّر** : تاغير، بدلون، اوښتنه، بدليدنه.

**تف** : تو لعنت، د لعنت او ملامت د اظهار کلمه، توکاني.

**تفاخر** : فخر کونه، بډائي، ويار.

**تفاسير** : د تفسير جمع، تشريحات، وضاحتونه، اصطلاحاً د قرآن شريف شرحې.

**تفاصيل** : د تفصيل جمع، بيلونه، ټکرې ټکرې کونه، پوره بيانونه، تشريح بيانونه، فهرستونه، کيفيات.

**تفاوت** : فرق، توپير، وت، فاصله، لرې والې، جدائي، امتياز.

**تفاهم** : درک کونه، د يو بل په مقصد پوهيدنه.

**تفتيش** : تفشيش، پلټنه، لټونه، شننه، کتنه، څيړنه، تلاش، تپوس، پوښتنه، سراغ.

**تفحص** : تپوس، پوښتنه، شننه، لټون.

**تفرقه** : بيلتون، جدائي، بې اتفاقي، درز، د دوؤ څيزونو په منځ کښې بيلوالې.

**تفريح** : سيل، ساتيري، خوشحالي، دمه،

تفريط : کمې، لږوالې، لږتيا، بې پروائي، غفلت، د مال ضائع کونه.

**تفریق** : بیلونه، بیلتون، فرق، وت، تفاوت،

**تفسیر** : وګورئ تفاسیر.

**تفصیل**: وګورئ تفاصیل. وضاحت، تشریح کونه،

**تفضیل** : لوړ ګڼنه، یو شیز د بل نه ښهٔ ګڼنه، فضیلت ورکونه، لوئ والے.

**تفقه** : په علم فقه پوهیدنه، عقلمند کیدنه،

**تفکر** : فکر کونه، سوچ کونه، سوچ، اندیښنه، خیال، د فکرونو ترمنځ د رابطو بنیاد، د کلمو په وسیله د ذهني عمل اظهار.

**تفنن** : خوشحالي، خندا، د مشغلې په طور.

**تفوق** : برتري او لوړ والے غوښتنه، لوړیدنه، فوقیت موندنه، زیاتوالے.

**تفویض** : سپارنه، کار یا څهٔ شیز د چا تر غاړې کونه.

**تفهم** : پوهیدنه.

**تفهیم** : پوهونه، فهمونه.

**تقابل** : مقابله، مخامخ کیدنه، ودریدنه، برابر کیدنه.

**تقاریر** : د تقریر جمع. بیانونه، ویناګانې، ذکرونه، بحثونه، مباحثې.

**تقاضا** : طلب، غوښتنه، حاجت، ضرورت، خواهش.

**تقبیح** : غندنه، بد وئینه، قبح بیانونه، خرابي بیانونه،

**تقدس** : پاکیدنه، له عیبه پاکیدنه، پاکوالے، پاکي، پرهیزګاري، سپیڅلوالے،

**تقدم** : وړاندې والے، مخکښې توب.

**تقدیر** : اندازه، میچ کونه، نیته، برخه، نصیب، قسمت.

**تقدیس** : سپیڅلتیا، پاکي، پاکیزګي،

**تقلیم** : وړاندې کونه، فوقیت.

**تقرب** : نزدیکت، نژدې والے، خپلولي.

**تقرر** : مقرریدنه، ټاکلے کیدنه، ټاکنه، مقررونه، لګونه، مقررتیا.

**تقریب** : نږدیکت، نژدې والے، سبب، وجه، ذریعه، موقع، د څه رسم یا وادهٔ ښادی په موقع غونډه.
**تقریر** : وګورئ تقاریر.
**تقریظ** : ستائنه، مدح کونه، څرګندونه، نظریه، رای، تبصره، د چا په لیک، مضمون یا په کتاب خپل نظر او رایٔ ښکاره کونه.
**تقسیم** : ویش، ویشنه، ونډ، برخه، صف بندي.
**تقصیر** : قصور، خطا، ګناه، کمے.
**تقطیع** : ټکړې ټکړې کونه، د علم عروض په اصطلاح کښې د شعر اجزا په داسي طریقه په وزن برابرونه چې د متحرک په مقابله کښې متحرک او د ساکن په مقابله کښې ساکن حرف راشي.
**تقلید** : نقل، پیروي، بې سوچه په چا پسې تلنه.
**تقوا** : پرهیزګاري، له الله نه ویریدنه او له ګناهونو ځان ساتنه. تقویٰ.
**تقویٰ** : وګورئ تقوا.
**تقویت** : قوت ورکونه، قوي کونه، طاقت، قوت، زور، مدد، مرسته، ملاتړ، تسلي، ډاډ.
**تقویم** : جنتري، کلیزه، بیه کونه، بیه ایښونه، قیمت معلومونه، سمونه، کوږوالے ایستنه، د کال ویشنه په میاشتو، هفتو او ورځو.
**تقي** : پرهیزګار، تقويٰ دار.
**تک** : بیخې، بالکل، ټول، سکوټه، دا تورے اکثر د څو رنګونو سره استعمالیږي، لکه تک تور، تک سور وغیره.
**ټک** : فضول خبره، څوکه، د تورې یا خنجر څوکه.
**تکبر** : کبر، غرور، لوئي، ځان ښونه، ځان لوړ ګڼنه.
**تکبیر** : الله اکبر وئینه، الله پاک په لویی سره یادونه.
**تکذیب** : دروغ ګڼنه، په بل باندې د دروغو ترنه، د

دروغو الزام لګونه.
**تکرار** : بیا بیا وینا، بحث، جګړه، د علم بدیع په اصطلاح کښې قافیه، مضمون یا مصرعه بیا بیا راوستنه.
**تکریم** : نمانځنه، درنونه، عزت ورکونه، ادب کونه، خاطر، تواضع.
**تکړه** : مضبوط، پهلوان، تورزن، چست، خورب، بهادر، نر، قابل، ذهین، لائق.
**تکفیر** : پټونه، کفاره ورکونه، کافرونه، کافر ګڼنه، کفر ته منسوبونه.
**تکفین** : مړي ته کفن ورکونه، په کفن کونه، مړي ته کفن ور اغوستنه.
**تکل** : اراده، کوشش، تلاش، لټون، د سفر نیت، د سفر اراده، یو ادبي صنف.
**تکلم** : ګړیدنه، ګڼیدنه، خبرې کونه، کلام کونه، وینا، خبرې اترې، غږیدنه.
**تکلیف** : کړاو، زیار، خواري، جنجال، مصیبت، غم، رنځ، بیماري، ناجوړتیا، ناروغتیا.
**تکمیل** : پوره کونه، سر ته رسونه، ختمونه، مکملونه، پائ ته رسونه، کمال ته رسونه.
**تکون** : مثلث، درې ګوټیز، درې پریزه.
**تکوین** : پیدا کونه، پنځونه، د وجود ورکونه.
**تکیه** : فقیر خانه، د ملنګانو، چرسیانو او بنګیانو د ناستې ځاے، باور، یقین، ډاډ، اعتماد، اسره، بالښت، مُتکه، اډه، ډډه.
**تکی** : غوړ نیونه، د چا خبره په زور او تکلیف اوریدنه، ځک کونه. جوړه، جفت.
**تګ** : تلۀ، تلنه، حرکت، یون.
**تګ راتګ** : آمد و رفت، تلۀ راتلۀ، تلے راغلے، غم ښادي، تعلق، رشته.

**تګ و دو** : منډه تړړه، هڅه، چلا چلا، تګ و پو، کوشش.
**تَل** : ژور والے، تلے، تله، بیخ، داوبو یا تیلو یا بلې کوم مائع څیز ریښتلے، اړخ، خوا، تلے، د کور اسګن. ضائع، توی، عبث.
**تل** : همیش، مدام، همیشه.
**تلاش** : غوښتنه، لټونه، هڅه، خواهش، طلب، بیړه، تلوار، تادي، توندي.
**تلاطم** : غورځه، بادواسکه، موج، جوش، جنګ جدل،
**تلافي** : صله، عوض، بدله.
**تلاوت** : د قرآن مجید لوستنه.
**تلبیس** : پټونه، د جامې اغوستنه، چل، دوکه، ټګي، فریب.
**تلتک** : تولتک، برستن، تالي، نیالي، شیرک، کنځر، کند، کوډے.
**تلخ** : اشار، تریخ، د شیرین متضاد.
**تلخیص** : خلاصه کونه، لنډونه، خلاصه، لنډیز.
**تلف** : برباد، له منځه تللے، ضائع، ورک، مړ، هلاک.
**تلفظ** : خبرې کونه. بیان کونه، لفظ ادا کونه : وینا طرز، د یو توري په د، سته طریقه د ادا کولو طرز.
**تلقین** : پند کونه' وعظ کونه، نصیحت کونه.
**تَلل** : جوکل، تول کول، وزن کول، په تله یا پیمانه جوکل.
**تلل** : له یو حایه بل حاے ته حرکت کول، مړ کیدل، مړیدل.
**تلمذ** : شاګردي.
**تلمیح** : په شعر کښې یوې تاریخي واقعې ته اشاره کونه.
**تلمیذ** : زده کړونے، زده کونکے، شاګرد
**تلوار** : بیړه، حلتي، تادي، شتاب، جلدي.

**تلوسه** : لیوالتیا، هڅه، د بې قـــراری شـوق، ډیـر زیـات شوق، خواهش، آرزو.

**تـلـه** . تـرازو، د تـلـلـو آلـه، ترکړی، اسماني برجونو کښې د یو برج نوم، د شمسي اوومه میاشت.

**تـلیدل** : سـرهٔ کیـدل، پـه غـوړو یـا تیـلـو کښې سرهٔ کیدل. توئیدل، چپه کیدل.

**تـلی** : د بـوټـو دپـاره جوړه شـوې دوپچه. دوچه، د غنمو یا اوربشو ډنډري.

**تـلـے** : تـل، انګـن، میـدان، ډاګ، صـحن. د پښې لاندینی حصه، د پیزار لاندینی حصه، د زمکې ټوکره، د لاس د پنجې دننـه بـرخـه، ورغوے، ګپـه، چرتـلـی، پـه ورغوي کښې د دارو مقدار، تل، بیخ، ویخ،

**تم** : اټال، ایسار، ولاړ، تکیه وهـلـے. بـس، تـمـام. تبر، تبر ګـے.

**تماچه** : تـوپانچه، تومانچه، تـمـانچه، یوه وړه وسله، د تیر او ستنې ترمنځه لرګے.

**تـمـازت** : ګـرمـي، تـاؤ. تودوښه.

**تـمـاشا** : تـمـاشـه، ننداره. سیـل، نـظاره، د خندا او ټوقو ځیز.

**تماشه** : وګوره تماشا.

**تماکو** : د چیلم، سګریټ او نسـوارو د جـوړولـو دپـاره پکاریدونکے یو بوټے.

**تمام** : پـوره. مکمل، بشپړ، غـونـډ، ټـول، ګـرد، ختم، خلاص، کامل. سر ته رسیدلے، تمامي.

**تمایل** : علاقه ښکاره کونه. یو شـي یـا یـو لـوري تـه مائل کیدنه.

**تمباکو** : وګوره تماکو.

**تمبل** : دف، طبـل، داریال، داریا، دریه.

**تـمبو** : خیـمـه، کیږدی. د مرغو نیولو لومه،

**تـمبـه** : د دروازې یو ور، د

لرګي ستن.
**تمثال** : مثال، تشبيه، نظير، مشابهت، د مثال په طور قصه بيانونه، ډرامه.
**تمجيد** : بزرګي بيانونه، درونه، نمانځنه، قدر کونه، لويئ ګڼنه.
**تمدن** : يو ځاے د وسيدلو طريقه، په ښار کښې وسيدنه، د معاشرت طريقه، يو علم چې پکښې د معاشرت اداب او طريقې ښودلے شي.
**تمرين** : مشق، تکرار، بيا بيا وئيله.
**تمسخر** : مسخره کونه، ټوقه کونه، ملنډه کونه، ملنډې، پيشاړې، پچموزې.
**تمسک** : پنجه لګونه، ګرفت، د سند په طور منه، هغه لوظ نامه چې پوروړے ئ د سند په توګه ليکې چې پکښې د روپو د واپس کولو طريقه او ميعاد ليک وي.
**تمغه** : په مقابله يا جنګ کښې د ښه کار کردګی په مظاهره يادګاري نښه چې د انعام په طور ور کولے شي.
**تمليک** : د ملکيت حق ور کونه، تمليک نامه، څوک د څه څيز مالک يا خاوند کونه.
**تمنا** : اميد، غوښتنه، خواهش، آرزو، شوق.
**تمهيد** : ويړونه، خپرونه، غوړونه، سريزه، شروع، پيل، عنوان، ديباچه، مقدمه.
**تميز** : بيلونه، جدا کونه، پيژندګلو، فرق، پوهه، عقل، شعور، ادب، طريقه، قاعده، جاج
**تن** : بدن، وجود، ځان، صورت، جسم، جوثه، جثه، کاټي، کانټي، کس، بنده، نفر، سر، سړے،
**تناب** : طناب، تناؤ، رسی، هغه د وسپنې تار چې کپړې پرې نمر ته اچولے شي.
**تنازعه** : بحث، شور،

کړس، تنازعه، جنګ، جګړه، فساد، خبري اړونه.

**تناسخ** : شکل بدلیدنه، د هندوانو د عقیدې مطابق له مرګه پس په بل شکل کښې دوباره راپیدا کیدنه.

**تناسل** : نسل زیاتونه، پیدا کونه، اولاد پیدا کونه.

**تناظر** : یو بل ته کتنه، یو بل سره مخامخ کیدنه، تقابلي نظر.

**تنافر** : تنفر، کرکه، نفرت، د شاعری په اصطلاح کښې د یو حرف داسې په تکرار راتګ چې د کلام خوند خراب کړي.

**تناقص** : نقص، ورو ورو کمیدنه، زیانونه، نقصانونه.

**تناقض** : تضاد، اختلاف، مخالفت، سره مخالف کیدنه.

**تناو** : تناب، رسی، وړد پړے، بدریشنه، کیږ، د زمکې تلے، د کشتی د راښکلو د وسپنې تار.

**تناول** : خوړنه، خوراک څښاک کونه.

**تنبیه** : ملامته، ملامتیا، رټنه، خبردارے، ویښونه، پوهونه، نصیحت.

**تنځرے** : یو خوش شکله او خوش اوازه مرغی.

**تنخواه** : د میاشتې عوضانه چې سرکاري ملازم یا نوکر ته ورکولے شي.

**تند** : تووند، ګړندے، چابک، چټک، تیز، چست، غصه ناک.

**تندار** : تنداره، چاچي، تینداره، تندیار، د ترهٔ ښځه.

**تندر** : تنا، تنها، تالنده، اسماني بجلي، د نمر یا سپوږمۍ رڼا کمیدنه.

**تندرست** : صحت مند، روغ جوړ، تکړه، روغ رمټ.

**تندغرے** : تندې وهلے، تږے.

**تندور** : وګوړۍ تنور.

**تنده** : تږے والے، د اوبو

خواهش، خشکي، سوکړه.
**تندي** : تادي، تلوار، جلتي، جلدي، بيړه، تېز والی.
**تندی** : وچولی، تندی، وچويلی. د هر حيوان تازه زېږېدلی بچی.
**تنزل** : ښکته والی، غورځېدنه، رالوېدنه.
**تنسته** : هغه تارونه چې د کپړې په وېدوالي کښې استعمال شوي وي، د جولا کي جاله.
**تنسيخ** : منسوخونه، باطلونه، رد کونه.
**تنظيم** : په نظم کښې راوستل، سمون، برابرتيا، برابرونه، بندوبست، انتظام، په ترتيب ايښونه، ډله، غونډه، پارټي.
**تنفس** : ساه راښکنه، ساه اخستنه، سيليدنه، ساه لنډی.
**تنقيد** : لټون، جاج، د څۀ کلام ښۀ والی يا بدوالی په ګوته کونه.
**تنقيص** : کمونه، لږونه، ناقصونه.
**تنکی** : کچه، نرم، نازک، نوی تو کيدلی، نوی پيدا شوی.
**تنګ** : کم بر او سور لرونکی، د ارت متضاد، تربت، پريشانه، په تکليف کښې، غريب، خوار، اړ، محتاج، تنګی، د غرونو په منځ کښې لار، تانګ، وړوکی منګی.
**تنګدست** : تنګ لاسی، عاجز، خوار، غريب.
**تنګسي** : تنګ دستي، تنګسه، تنګسيا.
**تنګول** : تکليف ورکول، په عذابول، ځورول، پريشانه کول.
**تنګي** : تنګسيا، نيستي، غريبي، خواري، مصيبت، سپکوالی، لاچاري.
**تنور** : ترون، تندور، په کور کښې يا د نانبائي د روټو

پخولو ځاے،

**تنوع :** قسم قسم، رنګ رنګ.

**تنومند :** قوي، زورور، غټ کټ، تندرست.

**تنویر :** رڼا، رڼائي، رڼا کونه، روښانه کونه.

**تنوین :** په یو لفظ باندې د دوؤ زیرونو، د دوؤ زبرونو یا د دوؤ پیشونو په لګولو سره د نون اواز پیدا کونه، د دوؤ زیرونو، د دوؤ زبرونو یا د دوؤ پیشونو علامت.

**تنه :** قد، قامت، وجود، تن، بدن، ستهه، د ونې هغه برخه چې له ویخه تر څانګې پورې وي.

**تنها :** یواځې، ځان له، بیل، ګوښے.

**تناکه :** پولی، پړومبې.

**تنی :** بتهن، تکمه، تسمه، کړوې.

**تواب :** توبه قبلونکے، الله تعالیٰ.

**تواتر :** برابر، پرله پسې، یو مخیز.

**توارد :** په یو وخت او یو ځاے راتلنه، د دوؤ مختلفو شاعرانو د شعرونو په معنو کښې یو شان والے.

**تواریخ :** د تاریخ جمع، د تیرو وختونو د حالاتو کتاب.

**تواره :** سائبان چې د د کانونو مخکښې د سیورې دپاره لګولے شي.

**تواضع :** عاجزي، کمیني، خاطر، مدار، نیاز، نذر، دعوت، میلمستیا، د تکبر ضد.

**توالد:** د اولاد پیدا کیدنه.

**توام :** غبرګ، جوړه، غبرګوني، دوه ماشومان چې په یو وار د مور نه پیدا شي. یو ځاے، پرله پسې، پیوست.

**توان :** وس، طاقت، زغم.

**توانا :** مضبوط، طاقتور، زورور، زبردست،

**توانګر:** شتهٔ من، دولتمند،

زورور، د نیستمن متضاد، مالدار، بختور.

**توب** : د اسم یا صفت په اخر کښې د کیفیت یا حالت د ښکاره کولو دپاره استعمالیږي. لکه سړیتوب.

**توبره** : کڅوړه، هغه لنډه بوجی چې اس یا خر ته پکښې وښه اچولے شي. هغه غله چې اس ته سحر ماښام ورکولے شي.

**توبرے** : د غشي څوکه، د کجورې ازغے، وړوکے تبرګے چې په لاس کښې ګرځولے شي.

**توبه** : له ګناه اوړیدنه، پښیماني، استغفار، په کړو پښیمانه کیدنه، په بد عمل افسوس، د بیا نهٔ کولو وعده.

**توبیخ** : څوک رټنه، ملامتونه، چاته سپورې سنغې وئینه.

**توپ** : توپه، غټې غټې ګولۍ ویشتونکے یوه جنګي وسله. پنډوس، د کپړې تان.

**توپچي** : توپه چلونکے.

**توپخانه** : توپ، ګڼې توپې، د توپو مجموعه، د توپو رساله.

**توپیر** : امتیاز، فرق، تفاوت، بیلوالے.

**توت** : یوه ونه او د هغې میوه.

**توتنکے** : توتنے، خڅنے، توتنکه، توتنے.

**توتي موتي** : د ماشومانو دپاره له واوړې جوړ رنګدار غونډسکي.

**توتیا** : د رنجو کانړے.

**توثیق** : پوخوالے، پوختیا، مضبوطوالے، استحکام، په خلهٔ یا لیک کښې د څهٔ خبرې تصدیق.

**توجه** : پام، غور، رغبت، خیال، لحاظ، مهرباني،

**توجیه** : وجه بیانونه ـ ِجه ښئینه، حلیه.

**توحید** : یو الله مننه، د ،

ټوحيد يقين لرنه.
**تود** : ګرم، د سوړ متضاد.
**تودښت** : تودوالے، تاؤ، حرارت.
**تودوښه** : ګرمي، تود والے.
**توده سره** : زکام، ريزش، ساړۀ وهنه، د يخنی وهنه، بارونے، والګے، سخته، تکليف.
**تور** : د سپين متضاد، د تيرې رنګ، د تيرې رنګ لرونکے، ګناهګار، مجرم، بربنډ، لکه تور سر. تهمت، الزام، ترا، ګناه، قصور، ترمه، د زړۀ وسواس.
**تورات** : د زړې عهد نامې د شريعت کتاب، د موسیٰ عليه السلام کتاب، د اهل کتابو مقدس کتاب.
**تورانی** : تورانکه، توريانی، توره انا، باجونکه، يو قسم توره مرغی چې وړه لکی لري.
**توربخن** : لږ شان تور، تور والي ته نژدې، سکاڼ، سکن.
**توربريښ** : د تورې پړق، ځلق، توربيښ، دبکه دړکه، دباؤ، غصه، دباب.
**تورتم** : توره تيارۀ، تکه توره تيارۀ، ګړبړ، اړے ګړے.
**تورزن** : توريالے، مړنے، زړۀ ور.
**تورسرې** : ښځه، زنانه، سرتوره، بې کسه.
**تور لمے** : ګور ګښ، ګور ګتې، تورلمي، هغه ځناور چې نوے مړے له قبره راوباسي.
**تورن** : هغه څوک چې تور پرې لګيدلے وي.
**تورورانځه** : تورونځي، تورې دانې لرونکے يو بوټے چې په دارو او مسالو کښې ږکاريږي، کلونجي.
**توره** : د وسپنې او فولادو نه جوړه د پخوانی زمانې يوه جنګي وسله چې څوکه او اړخونه ئې تيرۀ وي او شکل

ئ عام طور سره د میاشتې په شان وي. زړه ورتیا، مړانه، بهادري.
**توريالے** : بهادر، مړنے، تورزن، د تورې مړنے.
**توری** : د اوړي د موسم یوه سبزي.
**توری** : شپیلی، سرنا،
**تورے** : معدې سره نژدې یو نرم او وینه صفا کونکے اندام، د دغه اندام د پړسوب بیماري. حرف، تکے،
**تورتورو** : د انسان او حیوان د مری کرپندے هډوکے،
**توړل** : تراشل، رنده کول، تروښل، موړل، مښل، لګول.
**توسط** : واسطه، ذریعه، وسیله.
**توسن** : سرکش اس.
**توسیع** : ارتوالے، فراخي، ارتونه، زیاتوالے.
**توشک** : تورشک، تولائي.
**توښه** : د لارې خرڅ، سفر خرچه، خوړے، د خوراک سامان.
**توصیف** : ستائنه، تعریف، صفت کونه.
**توضیح** : واضح کونه، ښکاره کونه، شرح کونه.
**توغ** : جنډه، بیرغ، نښان، علم،
**توفیق** : وس، طاقت، همت.
**توقع** : امید، انتظار، باور.
**توقف** : اتهالیدنه، ایساریدنه، صبر، وقفه،
**توقیر** : عزت، احترام، تعظیم.
**توقیع** : څۀ څیز باندې نښه ایښونه، شاهي فرمان.
**توک** : نسل، نوغے، جرړه، وینه، خاندان. ډول، توک، رنګ، څیز، د پرچون متضاد.
**توکاڼې** : د خلې لاړې، په خلۀ کښې راجمع کیدونکې څګ.
**توکل** : باور، یقین، په الله پاک تکیه، اراده، نیت.

**تُوكل :** د خلې نه لاړې يا بل څۀ بې خونده يا تريخ څيز غورځول.
**توكه :** توقه، شتى، د جوارو رژيدلې وړې.
**توكے :** جزو، عنصر، قسم، ډول، برخه، حصه، ونډه.
**توګه :** توكے، قسم، ذريعه، خبره، څيز، قاعده، اصول، طرز.
**تول :** وزن، تلنه، تلل كول، دروندوالے.
**تولتک :** برستن، برستنه، شيرک، نالى، نيالى، كنجن، تلتک.
**تولد :** زيږيدنه، پيدا كيدنه،
**توله :** كوترے، د دولسو ماشو وزن. يو قسم ښكاري سپے، شپيلى، موازنه، انډولتوب، دړه، توازن، برابرے، د ګاډي هغه لرګے چې په هغۀ د ګاډي ټوله توله برابر وي.
**توليد :** زيږونه، پيدا كونه.
**توليه :** توليا، هغه بورداره كپړه چې د مخ لاس او بدن د وچولو دپاره پكارولے شي.
**تومن :** تمن، تومان، ترم، د اشخار بوټے، ټولے، د كروندې تخم، ګرم شودۀ، د شلو روپو يوه سكه،
**تومنه :** مايه، خمير، د مستو جوړولو مائع، د منى قطره، بنياد، جرړه، اصل.
**تولى :** د المارى په شان د لرګي هغه صندوق چې وچتې پښې لري او عموماً د برستنو ايښوو دپاره پكارولے شي.
**توهم :** انديښنه، وسواس، ګومان، شک.
**توهين :** بې عزتي، سپكاوے.
**توپول :** اړول، عبث كول، مائع څيز په زور غورځول، رژول، دوړول.
**توې :** تل شوے، ضائع، فضول، عبث.
**ته :** د طرف، صلې، جار،

تعلق، ربط او نورو مختلفو معنو د پاره استعمالیدونکے حرف. پورې ورپورې، په ذمه.

**تهجد** : د نیمې شپې نه پس ته عبادت کول، د شپې مونځ.

**تهجي** : هجې کونه، د حرفونو مفرد وئیل،

**تهدید** : ډارونه، ویرونه.

**تهذیب** : ښهٔ اخلاق، سړیتوب، شائستګي، انسانیت، د یوې معاشرې د ژوند تیرولو مروجې لارې چارې، مادي ترقي.

**تهلکه** : هلاکت، بربادي.

**تهلیل** : د لا اله الا الله ورد کول، کلمه طیبه بار بار وئیل.

**تهمت** : تومت، تور، الزام،

**ته** : تاهه، تا، برخه، پرده، پرک، رده، طبقه، قت، پوړی، د کپړې سور.

**تهي** : تش، خالي، چې ډک نهٔ وي.

**تهیه** : برابرونه، تیارونه.

**تیار** : د پښتو ژبې یوه لاحقه چې عام طور سره له صفته اسم جوړوي، لکه د زړهٔ ور نه زړهٔ ورتیا. اماده، مستعد، مکمل، روغ، جوړ، چاق، غټ پټ، تازه، څورب، تکړه، ځوانی ته رسیدلے، پوخ، بالغ.

**تیارول** : اماده کول، د څهٔ کار دپاره راضي کول، درستول، سمول، جوړول، پخول، غټول، څربول، سمبالول.

**تیارهٔ** : تورتیپ، تورتم، تاریکي.

**تیاریدل** : اماده کیدل، د څهٔ کار دپاره راضي کیدل، پخیدل، جوړیدل، غټیدل، څربیدل، سمبالیدل.

**تیتو** : د تنخرې په شان د خړ یا تور برګ رنګ یو مارغهٔ.

**تیر** : غشے. شهتیر، ګاډر، ویشه، بش، لهړے، لاړے، دستک، د یوې په کندهٔ

کښېې د کلک والې دپاره لګېدلې لرګې.
**تیرک** : د وسپنې هغه میخ چې د ژرندې د پل په منځ کښې وي.
**تیرکش** : ترکش، تیرکښ.
**تیرکښ** : هغه سوړے چې هوا پکښې لګي، د مورچې سوړے، د غشو د ایښودو ځاے.
**تیزاوړ** : تېزاوړ، تېزونه اچونکے، بزدل، ډارن، ویریدونکے،
**تیله** : زرتار، ګلابتون، د زرتارو لړ، د زرتارو کوړی، د زرتارو کاړی.
**تیلے** : هغه نرے چنچے چې په سر ئ ګوګړ لګېدلي وي او د اور بلولو دپاره پکارولے شي.
**تیمار** : د بیمار خدمت.
**تیمارداري** : د بیمار خدمت، د بیمار پوښتنه، د رنځور تپوس.
**تیمم** : تیبون، هغه عمل چې د ناروغۍ یا د اوبو د نۀ پیدا کیدو په وخت کښې د اوداسۀ په عوض کیږي.
**تیندک** : ډغره، ټکره، تمبیدنه، دوکه، بدري.
**تیندورے** : تیندونے، د پوزې پیزوانک، د پوزې کرپندوکے.
**تیبون** : وګورئ تیمم، عزم کول، قصد کول.
**تیر** : وړاندې، مخکښې، پخوانے، تیر شوے، مړ، بغیر له شخوند وهلو له حلقه ښکته شوے. دوکه، چل، فریب،
**تیر ایستل** : غلول، دوکه کول، ټګل.
**تیرواتۀ** : تیروتنه، دوکه کیدل، خطا کیدل.
**تیروتل** : دوکه خوړل، خطا کیدل.
**تیرول** : زغمل، برداشت کول، خوړل، د نر حیوان په ماده ختل، وخت اړول، تیرۀ کول، بغیر له شخونده له

حلقه ښکته کول.
**تیریدل** : تلل، خواریدل، قربانیدل، ځاریدل، د ماده حیوان په وخت تاؤ سرېدل، زغملے کیدل، اوړیدل، بغیر له شخوندہ له حلقه ښکته کیدل.
**تیز** : تند، چست، چابک، چاخ، چالاک، هوښیار، پوه، تیرۀ.
**تیزاب** : یو ترش خوند لرونکے کیمیائي مرکب. یو قسم تیز عرق چې سړے پرې سوځي.
**تیزندي** : زندی، تیزندی، هغه پړے چې د چا د پانسي کولو دپاره چا ته ور په غاړه کولے شي.پانسي.
**تیزول** : جلتول، زر زر روانول، په منډه کول، چاړۀ یا/ چاقو، قینچي وغیره تیرۀ کول.
**تیزي** : جلتي، جلدي، غصه، تیرۀ والے.
**تیزیدل** : جلتیدل، زر زر روانیدل، په منډه کیدل، د وسپنې یا بل دهات یا آلې د پلکې په برجو وغیره تیرۀ کیدل.
**تیشه** : د ګلکاری هغه آله چې خښتې او کاڼي پرې ماتولے شي. د ترکاڼی هغه آله چې لرګي پرې توږلے شي، ترښځ.
**تیښته** : ځغل، منډه، تاخت.
**تیغ** : تیرۀ څوکه لرونکې وسله، توره، چاړۀ، خنجر وغیره. تیغے، تیغنه، تازه تۀ کیدلے.
**تیغنه** : تبخے، تبی، ککوړے، تیګوړے، د ریکاړې باجې ریکارډ.
**تیغه** : هغه خښته چې ګلکار ئ په بیم کښې په اړخ لګوي. نوغے، تازه تۀ کیدلے بوټے،
**تیل** : غوړ، هغه روغن چې د شړشمو یا نور داسې څیزونو نه حاصلیږي.

**تیلي**: د شړشمو او کونځلو وغیره نـه تیـل ایستونکے، د ګانړې چلونکے.

**تے**: د ښځو او ماده ځناورو د بـدن هـغه غړے چې پې ئ پکښې وي. د سـري پـه سینه دوه هغه نښې چې پې ئ نۀ لري.

**ټ** : (ټې) د پښتو د حروف تهجي پنځم حرف چې د ابجدو له حسابه ئ شمېر څلور سوه (۴۰۰) یعنې د "ت" هومره دے.

**ټاپ** : چجکے، خاله، څپر، چت، د ټانګې د پاسه د ترپال چت، ټاپه، مهر، نښه، نښانه، حسرت، ارمان، افسوس، خفګان.

**ټاپو** : وچکی، وړه جزیره، د اوبو په منځ کښې وچه، د خوړ یا سیند په منځ کښې هغه وچه غونډۍ چې اوبه ورختلې نهٔ شي، برج، مانې.

**ټاپوړه** : د جامو وینځلو تخته، شازه، خرخره، کراره، تابوله، ګړیکه، انټوک، ډانګوری، ډانګوره، ټاپوړی، هغه لرګے چې د څناورو سوټې پرې راغونډوي.

**ټاپوړی** : ډانګوره، ټوکان، د ترخ امسا، هغه امسا چې په پښو معذوره خلق پرې ګرځي.

**ټاپه** : چاپ شوې حکمنامه، مهر، چاپ، نښه، ټاپ، داغ، تور، تهمت، رټه، د چاپ مشین، په کپړه یا کاغذ د نښې لګولو مشین.

**ټاټ** : فخر، ویاړ، غرور، لوئي، کبر. د آهنګونو راغونډیدو مرکز، راګونه، له مونجو یا سڼو نه جوړ پوزے یا صف، د سڼو نه جوړه کپړه، موم جامه، ترپال، ټغر، ګلم، پلاسي.

**ټاټکے** : تغارے، چابړے، وړوکے ټب، هغه څادرې یا د وسپنې غونډ او رغے شان لوښے چې مزدوران پکښې شګې او سیمنټ مسترۍ ته خیژوي او جوړوي.

**ټاټوبه** : د استوګې ځاے، د وسیدو ځاے.

**ټاټوبے** : وګورئ ټاټوبه.

**ټاټی** : ټالی، جوټه، ځانګو، د ماشومانو په ژبه،

پانسي.

**ټـارۍ :** بـــرج، اټـــارۍ، بالاخانه، سنګر، د ښښتر ښاخ، د خیږۍ ښاخ.

**ټاک :** تـریو، ترش، ټاکلے ګلږ.

**ټـاکل :** مـقـررول، پـه ښښـه کول، مريض ته ټکور ورکول.

**ټـاکو :** د ځـنـاورو يـوه بيـماري، داړې مار، شوکمار، ډاکو.

**ټـاکی :** جـوړ، پيـونـد، د کـارتـوس اخـر تـه لګيدلې د ګتـې ټـوکـړه، د ماشومانو يو مـرض چـې پـه مـخ ئې دانې راوخيـژي، داغـونـه، چاپونه. هـغـه دانـه چې د وينې نه ډکه وي. ډير موړ انسان يا حيوان، ادو بدو، د اوبو بانګی،

**ټال :** پينکه، هغه پړے چې بره اچولـے شـوے وي او ځـانګل پـرې کيـږي. تـاخيـر، ځنډ، د جـولا تـار، د پارسنګ ټيکونه، د لرګو دوکان.

**ټـال مـتـول :** ډيـل، ځـنډ، بـانه، انه بانه، حيله حواله، هغه غر دغه غر، يو غر بل غر.

**ټالی :** جوټه، چکر، پيـر، پـه ټـال د ځـنـګـولو پـه وخت يو ټيله.

**ټـالته :** د جـوارو بوټـے چې وړے نۀ لري، ټامته، ټانډه.

**ټانچی :** د ډيـرو اوبو جمع کـولو دپاره د وسپنې، ټين، يا د سـمیـټـو وغيره جوړ ځاے، ټانکی، ټينکی،

**ټانګر :** پارچوړ، هغه ټانټې چـې د ښـاروو د خوراک نـه پـاتـې شوې وي. کنګر، لکړ، کنګر، لکړې.

**ټانګو :** نـاک، د بټـنـګ پـه رنـګ يـوه ميوه، يو قسم ونـه چـې لــرګـے ئې سخـت وي. ډانګی، ټانګی، ټنګی.

**ټانګه :** تانګه، بګی، پـه اس يـا اسپـه راښکلے کيدونکـے د سـورلـی هـغـه ګاډے چـې دوه پايې لري.

**ټبر** : خانـدان، قبيلـه، خيلـخانـه، کورنی، ښځه، کوروداني، ارتينه، بيګم.

**ټپ** : مانده، کمزورے، خوار، ډنګر، نرے نروچکرے، په سترګو ړوند، بند، بيخي، بالکل، ډيوان، ټب، د کيرړې ونه، د حکومت د کال ګټه، ماليه، ټيکس وغيره، سرکاري آمدن، سرکاري مال، بدل، قصاص. د کتاب د بنديدو اواز، د لاسونو د جنګيدو اواز، د وهلو اواز، د بره نه د څهٔ څيز د راپريوتو اواز، د ټپولو اواز.

**ټپال** : پياده ګرځيدل کول، زغل، منډه، چاق تلنه. بې مقصده ګرځيدل، پيغام رسونه، خبر رسونه، د خرو يا قچرو د مزدوری دپاره د زغلولو کار.

**ټپ پټ** : فضول، بې معنې، چټې، جزئي، بکواس.

**ټپ ټپ** : وګورئ ټپا، د روټۍ د پخولو، د لاسونو جنګولو، د څهٔ څيز د وهلو، د قدمونو، د کوټې د څڅيدو اواز.

**ټپس** : يو مُردار خور مارغهٔ، لم څټ، ټپوس.

**ټپک** : درز، زمکې لـه راخلاصونـه، پټون وهل. د ځناورو د څرمنې نه جوړ شوے بنين يا بلاوز.

**ټپول** : شاباشے ورکول، لمسول. ټپ ورکول، ګوزار ورکول، وهل، ډب ورکول.

**ټپه** : لنډۍ، د پښتو د اولسي شاعری يو صنف چې وړومبی مصرعه ئې نهٔ سيلابه او دويمه ئې ديارلس سيلابه وي. دريچه، کړکی، چاپ، مهر، نښه، کرامت، رقعه، ياداشت، پتې، د تاش پاڼې، بيانه.

**ټپي** : زخمي، ژوبل،

**ټټارے** : مس ګر، لوښي جوړونکے.

**ټټر** : سينه، ټټخه،

**تتنګ** : نایاب، خالي لاس، تــش لاس، نیستـي، مصیبت. میره، بیابان. ویره، تادي.

**تـتو** : ورو کـے اس، یـابو، تیټ شان اس.

**تـتوبـه** : خـنـدا، ټـوقـه، پچموزه، ملنډه.

**تـتي** : د لـويـو بـولـو کولو ځاے، لیتـرین، چونیانی. د قـافلـې د پـاتې کیدو ځـاے، بـولې، ډکې متیازې، غل، هغه پـرده چـې د لـر کـو، کهیو او غنو ازغو نه جوړولے شي.

**تر** : د کـولـمو د بادو د زور اواز، د تیـز اواز، د چیـنـدخو اواز، تـرا، چـا پـورې د خندا کـولـو په وخت ادا کیدونکے اواز،

**تـرتـاوا** : بـې غـمـي، خوشحالي، مزې، چرت،

**تـرن** : تـرو، تیـزن، ویریدونکے، ډرن.

**تـسکول** : ژړول، پـه ژړا کول.

**تُسـکیدل** : ژړیـدل، غـلـې غـلـې ژړیـدل، پـه ورو ورو ژړیدل، په سلګو سلګو ژړل.

**تغ** : کـونـتـي، تـونډ مونډ، ګنجلک، راکوډ،

**تغر** : کـمبل، یو قسم فرش، مـوم جـامه، یو قسم وله، د بار وړونـکـو خاروو په شا اچولے کیدونکے ځل چې خرخوړے هم ورته وائي.

**تغول** : خفه کول، زهیرول، ضـرر رسول، څوک په عبث خبرو مجبورول، د چرګانو نه د تغ تغ اواز ایستل.

**تـقاله** : نـقـل، پیښه، ټوقه، مـنـنـډه، ټوکه، وشته، د خندا خبره، دې سره ټوقه د سابقې په توګه استعمالیږي.

**تک په تک** : سمدستې، زر، پـه هـغـه سـاعـت، فورا، لګوترک.

**تکر** : تصادم، ډغره، بدري، تیـنـدک، ټکره، دیکه، ټیله، دوکه، نقصان.

**تکره** : تیندک، تکر، ډغره، ټوکره.

**تکسال** : هغه ځای چې روپۍ پکښې جوړیږي.

**تکنده** : تکنه، تکنه، د ګرمۍ نه سره شوې، یشیدلې، په ځوانۍ کښې، په پیغلتوب کښې.

**تکنے** : مست، ځوان، ځنړے، تریدونکے، پښه نیولے، مات زړے، رنړ، ګاګیرے، متردد، دوه زړے، مظلوم.

**تکنه** : سره تکنده، تکنی.

**تکنے** : بیرندے، ګرندے، تیز، ترهیدونکے ځناور. لټ، سست، ناراست.

**تکور** : بدري، تیندک، تکره، وجود له تود تیکري، کاني یا شګې یا بل څیز سره تپ ور کول، تبنه، تپ، د وجود یو اندام ته ګرمي رسونه.

**تکول** : وهل، دربول، ډبول، کوتل، قیمه کول، ورژل، خصي کول، چیچل، د غلي نه داني بیلول.

**تک وهل** : بخي لګول، منډل، ننه ایستل، ختمول، خلاصول، کیښودل،

**تکه** : کنده، ډوغلګے، اندیښنه، وهم، ویره، سمدستي، له سره، بغض، کینه، کرکه، نفرت، دښمني، دانې نیمه، دوه پیسیز، دوې پیسې وال. تڼا، د اسمان د ګړځیدو اواز، صاعقه. غرځنی بزه، سرکشه بیزه، هغه بیزه چې د رمې په سر کښې روانه وي.

**تکې په تکې** : بیدو، حرف په حرف، هو بهو، لفظ په لفظ.

**تکې تکې** : خال خال، داغ داغ، برګ بروګ، تپلے.

**تکیدل** : میده کیدل، وهلے کیدل، قیمه کیدل، خصي کیدل، زړهٔ توریدل، کتهاریدل.

**تکے** : حرف، توړے، لفظ، مصرعه، خال، داغ، څاڅکے، مقرر ځاے، نقطه، ثبوت، ذره،

غیرت.
**تګ** : تګي مار، تګي ژن، غل، تګي کونکے، دوکه باز، چلولي، چالاک، چلباز،
**تګل** : دوکه ورکول، تګي کول، فریب ورکول، چا سره تګي کول.
**تګي** : د تګ کار او پیشه، چل وته، فریب، دوکه، غولونه، چم، چمبازي، غلا.
**تل** : ملګرے، شریک، ګن فصل، ګڼې ونې، محلت، چم، محله، قبیله، باړی، پټے، د کليوالي زمکې څلورمه برخه، د ګلو غنچه، نژدې والے، نزدیکت، حد، پوله. ماتې شکست.
**تله** : ملګرتیا، پره، ډله، ملاتړ.
**تلی** : تالی، ووړوکے جرس، ګینګرے، غبره، د تنګ تنګ اواز کونکے آله، هغه آله چې د خبرداري دپاره یا ثوک رابللو دپاره پکارولے شي.
**تماتر** : کشمیرے، سور باتینګړ، رومي، سرهٔ بانجان، رومي بانجان.
**تمتم** : ټانګه، بګی، د دوؤ پایو ګاډے چې چت پرې نهٔ وي او په اس یا اسپه راښکے شي.
**تن** : د وزن پیمانه چې اتویشت کچه منه یا زر کلو ګرامه وي.
**تنډ** : هغه غوایهٔ چې خصي شوے نهٔ وي. ثورب، چاغ، شلنډ، پړسیدلے، ډډ، مرور، سخت زړے، بې رحمه، بدمعاش. یو قسم انګور. کلک، قوي، قارژن، قهر ژن، غصه ناک، خشکي، اواره.
**تنډه** : وچولے، تندے.
**تنک** : دروګه، دبدبه، رعب، اوازه، پړق، څپیړه. کلک، سخت، د ترنګ اواز، د څهٔ څیز د تنکولو اواز، د ساز اواز.
**تنک تکور** : د موسیقی

محفل، سرود، مجلس، ساز و اواز.

**ټنګره** : ترازه، پره، ډکره، قتله، ټکړه،

**ټنګه** : روپی، پیسه، د یوې زرې سکې نوم ټکه،

**ټنګه ټټه** : د ټنګ ټکور دپاره کلمه تحقیر، ټنګ ټوت، سرونه سوررونه، د ټنګ ټکور نه ورانده د موسیقی آلې ټیک کول، وارهٔ کارونه، معمولي سودا.

**ټنګه رټه** : ډنګه ډټه، ډیل، ځنډ، تاخیر، نکره نکره کول، ایسارتیا، توقف، عذر، دلیل، انه بانه، پریشاني.

**ټنګیدل** : ترنګیدل، د ساز د الاتو نه اواز ایستل، د لوښو یو تر بله جنګیدل، ګړیال غړیدل.

**ټوپ** : ارتاؤ، ورت، جست، دانګ، دانګه، خیز، ډیرے، امبار، دلی، لویه ټوپی، د ریلې شوي فصل دلی.

**ټوپک** : تفنګ، توپک، یوه آتشینه وسله چې کارتوس پکښې ایښودے شي او ډزې پرې کولے شي.

**ټوپي ټق** : هغه سړے چې ټوپی جوړوي. هینګر، دیوال ګیر.

**ټوپی** : خولی، خوله. د غرهٔ غونډی، د چیلم سر چې څښونکے خیز پکښې اچولے شي، یو قسم لوبه، ډیرے، امبار، کوټه، ډیران، پټاکی، پټاقی.

**ټوټکه** : ټوټه، کوډه، د مچوغنې خلهٔ، پټق، پټاق، کاسی، هغه علاج چې د تجربې په بنا کولے شي. هغه ډالی چې ناوې کره ورلے شي. دستور، رسم،

**ټوټکے** : بوړے، چیت پیت، چڼ وڼ.

**ټوټه** : ترازه، برخه، حصه، ټکړه، تیکه، ټوک، څپر، پمبه، څکالے، ټوکے، رخت

کپړه، پینه، پیاله، ګلاس، جام، پیوند، سرنا.
**ټوټی** : ټوټکی، د لرګي کاسه، د اوبو د نلکي هغه ځای چې اوبهٔ پرې ازادولی او بندولی شي. د نلکي سر، ښنکوری، ټوکړه، د رسی وړه ټوکړه، د پړي وړه برخه.
**ټوټې ټوټې** : ریز مریز، ذرې ذرې، ټوکړې ټوکړې.
**ټوقا** : یو قسم ټوپ وهونکې چینجې چې فصل خوري.
**ټوقمار** : ټوقې کونکې، هغه څوک چې د ټوقو خبرې کوي، خوش طبع، ملنډې کونکې، مسخره باز.
**ټوقه** : مسخره، ملنډه، پچموزه، د خندا خبره.
**ټوقه ټقاله** : ملنډه، چرلنډه، ټوقه وشته، ګپ شپ.
**ټوک** : هغه ټوکې چې تنګ تنګ ووبدلی شوی وي. تریو، ستغ، اعتراض، ټوکنه، مهین، هوار، ځیر.
**ټوکا** : یو قسم چینجې چې فصل وهي. ټوقا، غټه چاړهٔ چې غوښه یا ګیا پرې کوتره کولی شي. ټوکیا، هلهٔ کپ، ساتول، کټمیره.
**ټوکر** : پنجره، ټوکړ.
**ټوکری** : شکری، څکې، کاره، ټوکور، ټوکره.
**ټوکیا** : ټوکا، هلهٔ کپ، ټوکیه، ساتول، کټمیره.
**ټوکیدل** : زرغونیدل، د فصل سر وهل، تیغ راوتل، د زړیدو له کبله د کپړې دوړیدل.
**ټوکې** : کپړه، رخت، ټوټه، ټوکر،
**ټول** : ښادر، تول، سورسانې، یو قسم ټوکر، کپړه . درست، تمام، چربور، کل، کلهم، تمامي، واړه، پوره، ټولې، ډله، غونډه، مجلس، محفل، یو ځای،
**ټولګې** : وړوکې ټولې، جماعت، ډله، صنف، د سکول جماعت، کلاس.

**ټولنه** : غونډه، مجلس، اجتماع، مجمع، جرګه، مرکه، معاشره، انجمن، چنده، جمع، خزانه، پیسې غونډونه.

**ټولول** : یوځاي کول، راغونډول، جمع کول، ګرد ول، بوڑول.

**ټولیدل** : ګردیدل، غونډیدل، یوځای کیدل.

**ټولې** : جماعت، ډله، غونډه،

**ټومبل** : ننه ویستل، چوکه کول، ښخول، کېښودل، سکونډل، ټونګل، راپارول.

**ټونګاره** : نوکاره، سکونډاره، چونډی، چونګاره، زیږې، کنځل، ښکنځل.

**ټونګه** : د ګوتې بند، د پښې تلې، مښوکه، ټونګاره. چیږ، بلوسه.

**ټونه** : ټوټکه، منتر، جادو، کوډه، تعویذ.

**ټي بي** : ټیوبر کلوزز، نرې رنځ.

**ټیپ** : د سیمټو لیټی سره د خښتو د دیوال د چوندونو د بندولو کار، په جنس کښې د تیار فصل پیشګي قیمت.

**ټیټ** : کوز، ښکته، کوږ، چیت پیت، مندرے، ملامته، پړ.

**ټیټارے** : ټیغکے، ټیغے، یوه مرغی چې ډنډونو کښې کښیني او باران غواړي.

**ټیټال** : چاپلوسي، غوړه مالي، بوټ پاکي، خوشامندي، پستي، مکر، فریب، ټګي، چل، منافقت.

**ټیټول** : ښکته کول، کوزول، لاندې کول، کږول، رانزدې کول، کمزورے کول، سپکول.

**ټیټیدل** : کوزیدل، ښکته کیدل، سپیکیدل، کمزورې کیدل، پړ کیدل، شرمیدل.

**ټیز** : د ګیډې نه د بادو د خارجیدو آواز، تیز، ټغ،

ټنګ، ډوریا، ګوز.

**تېزاوړ :** ټېزن، تېزن، ټرن، ټېزمار، ټېزو، ټرو، ګوزاوړ، ویریدونکی، ډرن،

**تېزن :** وګورئ تېزاوړ.

**تېک :** ټېکه، یو کالی چې زنانه یئ مخامخ په تندي اچوي. صحیح، سم، برابر، پوره، درست.

**تېکاله :** ټکله، ډوډۍ، مړۍ، روټۍ، ټېکله، ملاچرګګ، هدهد، ګډي چرګ،

**تېکاؤ :** دمه، ایسار، قرار، د غصې یا تاؤ نه سړیدل،

**تېک ټاک :** روغ، جوړ، سلامت، صحیح، سم دم، په قاعده، په ترتیب.

**تېکرکی :** کودړی، کودنړی، کودړی، ټېکړی، د مات خاورین لوښي ټوکړه.

**تېکړی :** پړونی، څادر، پټو، پټکی، تازر، د جواری څادر، بساط.

**تېکه :** ټېکي، ککشه، هغه خال چې هندوان یئ د خپل رسم او رواج له کبله په تندي باندې وهي. څیره، د تندي یو قسم ګاڼه، ټېک، کهور. ستن، پچکاري.

**تېمګر :** د ټېم کاریګر، د ټین کار کونکی.

**تېنګ :** کلک، پوخ، محکم، مضبوط، سخت، د نرم او اوبهٔ ضد، کنجوس، بخیل، شوم، سُر شوی.

**تېنګار :** تاکید، اصرار، ټېنګ والی، مضبوطي، پائیداري، ټېنګتیا.

**تېنګول :** کلکول، مضبوطول، محکم کول، چاپې کول، کېنیمنډل، مضبوط نیول.

**تېنګه :** بیګار، په زور کار اخستل، څلور انیز، ټنګه، د پخوانی روپی څلورمه برخه. سپاربښتنه، پوخوالی، ټېنګون.

**تېنګېدل :** مضبوطیدل، محکم کیدل، کلکیدل،

وډریدل، پښــه لګول، ختــه کیدل،

**ټیونـال** : د نشـې یـو قسم ګولې یا کیپسول.

**ټیونالي** : د ټیونـالو نشـه کونکے.

**ټیپر** : شلغم، یو قسم سبزي چې په ژمي کښې کرلے شي.

**ټیکه** : هـغـه دکـانـونه چې پـکښې د حکومت په اجازت افیـم خـر څیږي. پـه ذمـه اخستل، ذمه داري، اجاره.

**ټیکه دار** : د ټیکې څښتن، اجاره دار.

**ټیل** : ګنه ګوڼه، دیکه، ټیله، ډغره.

**ټیله** : جـوتـه، دیکه، ډغره، د اوبـو د مـخـې رااړولـو دپـاره د کـاڼو یا د لرګو، لښتو ګیډۍ، د ریـل پـه پـټـړی تـلـونکـے هغـه وړوکـے شـــان مشیـن چـې د کـرسـی پـه شان جوړ وي دوه درې کسان پکښې کښیناستلے شـي او مـزدوران ئې پـه ټیلـه بیائي.

**ټیلیفون** : هغه آله چې پرې لـه لرې لرې د بجلی په ذریعه اواز اوریدے او اورولے شي.

**ټینکی** : ټـانـچی، ټانکی، ټینک.

**ټـے ټـے** : تـړتړے، چاړا هغه څوک چې ژبه ئې نښلي.

**ث** : (ثې) د پښتو حروف تهجي شپږم حرف چې د ابجدو په حساب ئې شمير پنځۀ سوه (۵۰۰) دے.
**ثابت** : لوار، مکمل، پوره، تړل، محفوظ، روغ، سالم.
**ثابت قدم** : مستقل مزاج، په لوظ او قول ټينګ،
**ثابتول** : رغول، مکمل کول، پوره کول، سر ته رسول، ظاهرول، څرګندول، ثبوت ور کول،
**ثابته** : لواره، روغه، پوره، تړله، سالمه، مکمله، محفوظه، د ثابت مؤنث. ثبوت ته رسيدلے، صحيح، درسته.
**ثاقب** : ځليدونکے، روښانه، روڼ، وروڼ، بريښيدونکے،
**ثالث** : دريم ګړے، ثالثي کونکے، فيصله کونکے، جرګتو، منځي ګړے.
**ثالثي** : روغه، جوړه، منصفي، تصفيه، د دوؤ کسانو يا ډلو تر منځ د روغې جوړې خبره کول.
**ثانوي** : دويم، د دويمې درجې.
**ثاني** : دويم، برابر، په شان، نظير، مثال، سيال، سارے، ډول، په څير.
**ثانيه** : سيکنډ، لحظه، لږ وخت،
**ثبات** : قرار، ټينګوالے، پوخوالے، پائيداري، قيام.
**ثبت** : ليکنه، داخلونه، تحرير، ليک، مهر، نقش، ريکارډ.
**ثبوت** : سپينونه، رښتيا کول، په دليل ثابتونه، رښتونوالے، رښتوني، رښتيني، شهادت، د خبرې تصديق.
**ثروت** : شتمني، دولت، مال، توانګري، موړ والے، شان و شوکت،
**ثروتمند** : دولتمند، شتمن، موړ، مالدار، توان ګر، مال لرونکے.
**ثريا** : د اوو ستورو جومپک،

پیرونې، پروین، پیمنې، پریوونې، اووهٔ خوینديې، پیرونه.

**ثرید** : پینډه، د غوښې ښوروا کښې چوري کړې روټۍ.

**ثقافت** : کلچر، کلتور، تهذیب او تمدن.

**ثقافتي** : د ثقافت سره متعلق.

**ثقالت** : دروندوالے، وزن، پیتهے، ګرانوالے.

**ثقل** : بوج، بار، پیتهے، وزن، دروندوالے.

**ثقلین** : دوه درانهٔ څیزونه یعنې د دنیا او اخرت، انسان او پیریان.

**ثقه** : معتبر، اعتباري، اتباري، باوري، درونـد، کره، سپین روږے.

**ثقیل** : کلک، درونـد، ستغ، ګران، وزني، هغه څیز چې په هضمیدو کښې ګران وي. هغه ټکے چې فصیح نهٔ وي.

**ثلاثي** : د درې حرفونو کلمه، د دریو شعرونو کلام.

**ثلث** : د جیل په اصطلاح کښې د نمبردارانو هغه ټولے یا د دې ټولې فرد چې د لویې دروازې او د جیل د احاطې دننه پیغام وړې راوړي. دریمه برخه، دریمه حصه، د خط یو قسم.

**ثمر** : میوه، ګټه، بدله، فائده

**ثمره** : حاصل نتیجه.

**ثمن** : بیعه، بیه، قیمت، اجرت، اتمه برخه، اتمه حصه.

**ثمین** : قیمتي، ګران قیمته.

**ثنا** : ستائینه، تعریف، حمد، صفت.

**ثنویت** : دوه والے، د وحدت متضاد،

**ثواب** : اجر، د نیک کار بدله، عوض، فائده، نیکي.

**ثور** : غوشکے، غوئے، غوایهٔ، د اسمان د دویم برج نوم چې شکل ئې د غوئي په شان دے. د شمسي کال یوه میاشت.

**ج** : (جیم) د پښتو د پتې اووم حرف چې د ابجدو په حساب ئې قیمت درې (۳) دے.

**جابر** : ظالم، جبر کونکے، تاوان رسونکے، تکړه، زورور،

**جاج** : اندازه، قیاس، جائزه.

**جاجر** : چارجر، د تماچې توپک او نورو وسلو د کارتوسو ایښودو ځاے، میګزین، میخزین.

**جاخه** : د ونو بوټو څانګې چې په یو بل کښې ننوتې وي، جاله،

**جادو** : سحر، منتر، کوډې، ټونه.

**جادو کر** : منتر کونکے، جادو کونکے، ټګ، چالباز، دوکه باز، کوډګر.

**جاذب** : هغه کاغذ چې سیاهي یا رنګ پرې وچولے شي، خشکه.

**جار** : پنډغالے، شپول، ګاره، د زنانو بیت الخلا، ډنډوره، ښکاره، جهر، د شپیلۍ پرده،

**جارح** : غوڅونکے، پریکونکے، زخمي کونکے، حمله کونکے، بې جوازه جنګ شروع کونکے.

**جارحانه** : د جارح په شان، د جارح په رنګ، جارح سره متعلق.

**جارحیت** : بې جوازه حمله، بې جوازه جنګ، بې جوازه ګواښ.

**جارو** : جاړو، ریبځ، جاروب، بوهاری، باری، کانټه.

**جاروانهٔ** : واپس کیدهٔ، د جاروتل نه د ماضي استمراري د واحد غائب صیغه.

**جاروتل** : منع کیدل، پښیمانه کیدل، بیرته ګرځیدل، د خبرې نه اوړیدل، واپس کیدل.

**جاري** : شروع، روان،

همیشه بهیدونکے. قرباني، حلاله. چل، چالو،
**جاري :** عام، ښکاره، مشهور، عام طور سره د لارې د صفت په طور راځي.
**جاړ :** جلاب، جاړې بوټي، پیداوار، د باغ حاصلات، دوند، جړ.
**جاړن :** د کپړې هغه ټوټه چې پرې ځیزونه ځنډلے شي.
**جاړه :** یو ازغن بوټے، جغاغه، د ازغنو بوټو ګن شمیر.
**جاسوس :** څرے، څارو، مخبر، پټ خبر ور کونکے، پټ حال لټونکے،
**جاکټ :** واسکټ، نیم تنے، جیکټ، جانکټ.
**جاګیر :** دوتر، سیری، زمکه، دفتر، جائداد، هغه زرعي جائداد چې د بادشاهانو یا د حکومت له خوا د وفادارۍ په انعام کښې ور کولے شي.
**جال :** دام، لومه. دستور، مکر، فریب، د ګلو بیزو غلانځو ته اچونکې بوجګۍ چې د بچو د رودلو نه پرې ساتلے شي.
**جالر :** ځونډے، تار. جومر، جومکې، یو پسول. حاشیه، کناره، هغه کپړه چې جال لري او عام طور سره د زنانو د قمیصونو او د کټ څادرونو وغیره سره د زینت دپاره لګولے شي.
**جالوان :** د جالې مالک، د جالې چلونکے، هغه سړے چې لویو لویو کارونو ته لاس اچوي.
**جاله :** د مشکونو یا شنازونو جوړه کشتی، په سیند د پورې وتو دپاره د لرګو جوړه کشتی چې لاندې ترې شنازونه تړلي وي، په غوبل کښې په غوایانو پسې لګیدلې د لښتو جاخه، د مارغانو د ناستې او بچو راوړو ځاے، منځوله، ځاله، منځاله،

نیستـــي، خـواري، غـریبـي، د ستر ګو پرده یا جاخه.
**جالۍ** : هـغه نری کپړه چې ورونـو یـا کـړ کیـو ته لګي، د وسپنـې له تارونو جوړه جاله، چاڼ څادر، د ولاړو اوبو شنې جاخې، جینجره کپړه.
**جام** : د میوې او شیـرې نه جوړه مربه، کنډول، کټوره، پیاله، پیمانه، کاسه، ګلاس، د څښلو لوښے، جسے، جرمنے.
**جامبړه** : بیـره، د بیرې ونه، جـاخـه، جـاړه، هغه جاړه چې څـانـګې ئې یو بل کښې ننوتې وي.
**جـامد** : کـلک، سـخـت، ټینـګ، هغه کلمه چې اشتقاق ترې نۀ کیږي.
**جـامع** : مـکـمـل، پوره، یو ځـاے کـونـکـے، جامـه، لوے جمات، مجموعه، د الله پاک یو صفاتي نوم.
**جامعه** : یونیورسټي، پوهنه، دارالـعـلوم، جامه، هغه جمات چې د جمعي مونځونه پکښې کیږي.
**جـامعیـت** : پـوره والے، مکمل والے،
**جـامن** : یـوه ونـه او د هغې میوه چې اودي رنګ لري. د ګډیدونکو تنګ قمیص.
**جـامـه** : پـوشـاک، لبـاس، کالي، کپړه، لته، جوړه.
**جـامې** : نـمـري، د زنـانۇ د میـاشتـې خـاصه موده، د زنانۇ پـه خـاصـه موده کښې حیض جاري کیدل.
**جان** : ډیـر خوږ، ډیر نزدې، د میـنـې کـلمه، زړۀ ته نزدې، ځان.
**جانان** : مـحبوب، معشوق، دلبر، جان، جانا، عجیبه.
**جــانب** : طـرف، سمـت، اړخ، خــوا، ډډه، لـور، ډلــه، فریق، سبب وجه،
**جـانباز** : ځـان ځـارونـکـے، بهـادر، تـوریالے، مجاهد، سر ښندونکے.

**جانبازي** : سر داؤ کونه، همت او کوشش کونه، بهادري کول.
**جانبدار** : طرفدار، ملګرے، مددګار، مرستيال.
**جانبداري** : ملګرتيا، طرفداري، مرسته،
**جانبين** : د جانب تثنيه، دواړه خوا. دوه جانبه، دواړه اړخه، دواړه طرفه.
**جاندار** : تکړه، مضبوط، تندرست، صحت مند، ساه لرونکے.
**جانشين** : قائم مقام، د چا په ځاے ناست.
**جان کتے** : د جيلخانې هغه ملازم چې په قيديانو کار کوي. جان نثار. د غرغرې د تختې راښکونکے.
**جانګے** : نيکر، کچه، کاچه، ووړکے پوشاک چې د لوبو او لامبلو په وخت اچولے شي.
**جانماز** : د مصلې په رنګ د کپړې يا بل څۀ جوړ څادر چې مونځ پرې کولے شي، جائے نماز.
**جانثار** : جانباز، سرتيرے، ځان ځارونکے، ځان قربان کونکے، سر شيندونکے ميړنے، زړور.
**جاودان** : ترتله، تر عمره، ابدي، لازوال، جاويداني.
**جاويد** : جاودان، هميشه، دائم،
**جاه** : عزت، درجه، جلال، شان.
**جاهل** : جهل لرونکے، بې علمه، ناپوهه،
**جاهليت** : د جاهل کيدو حالت،
**جاځ** : ځاے، مقام،
**جائداد** : دوتر، ملکيت، مال حال، دفتر، زمکه، کښت، فصل.
**جائز** : جواز لرونکے، روا، مناسب، ټيک، صحيح، درست، حلال، د شرعې او

قانون مطابق، اصلي، مستند، د منظورۍ قابل.
**جائزه** : اندازه لګول، قیاس اخستل، جاج، پړتال، کتنه، حاضري، شمار، ګنتي، لټون، انعام.
**جب** : جبه، زیمناک ځاے، هغه زمکه چې اوبهٔ پکښې ولاړې وي.
**جب جوب** : لوند خوشت، خوشت پوشت.
**جبر** : زور، ظلم، زیاتے، بې رحمي، په حساب کښې د کسر اختصار،
**جبل** : د وسپنې هغه تیرهٔ ډنډه چې زمکه پرې کنستے شي.
**جبلت** : پیدائشي خاصیت.
**جبه** : هغه زمکه چې اوبهٔ پکښې ولاړې وي، جب، ډنډ، بوخته، چقړه، هغه لوښے چې د ګانۍ تیل پکښې جمع کیږي.
**جبهه** : ډله، دسته، جماعت، محاذ، د جنګ د میدان مخکښې برخه، سرحد، باړر، تندے، د سپوږمۍ د یو منزل نوم.
**جبین** : تندے، وچولے، ټنډه.
جبې : د ماشومانو تالو پریوتل،
**جټ** : جاټ، پنجابے، ناړامه، ناپوهه، جاهل، ان پړ. داره، فواره، پواره.
**جټکانه** : د جټ سره منسوب، د جټانو په طریقه.
**جټکه** : خوزیدنه، لړزیدنه، جلکه، جیټکه، دیکه، جوټه،
**جُثه** : جوثه، شکل، صورت، ځیره، بدن.
**جج** : منصف، انصاف کونکے. د زنې کوترے، د زنې کوغالے، د زنې لاندې غوښه، غړے، ججوره.
**جحیم** : دوزخ، جهنم، جاندم.
**جُخت** : پیوست، نزدې، سلامت، روغ، سالم، تقریباً.

**جد** : نیکهٔ، د مور یا د پلار پلار، مورث اعلیٰ.
**جدا** : بیل، ځان له، ګوښې، یواځې، یو طرف ته.
**جدال** : جنګ و جدل، جنګ، دښمني، جګړه.
**جدائي** : بیلتون، جدا والے، هجران، فراق.
**جدت** : نوے والے، جدیدیت.
**جدل** : جنګ جګړه، شور، مخالفت، دشمني،
**جدوجهد** : هځه، کوشش، محنت، مشقت، خواري.
**جدول** : فهرست، لسټ، حاشیه، د کتاب د پاڼي نه ګیر چاپیره راښکلې کرښې، شیلهول،
**جدي** : د نیکهٔ له خوا، موروثي، لسم اسماني برج چې د ښکرورې بزې په شکل ځر ګندولے شي. د هجري شمسي کال لسمه میاشت.
**جدال**، تکړه،
**جدید** : نوے، د موجوده وخت، تازه.
**جدیدیت** : نوے والے، نوے توب، د جدید کیدو حالت.
**جذام** : پم، پمن توب، یو جلدي مرض.
**جذب** : راښکنه، اثر، کشش، جوش، په ځان کښې ځایونه، د بیخودی کیفیت چې په بزرګانو خلقو راځي.
**جذباتي** : جذبې سره متعلق، جوشي، جذبه کښې راتلونکے، هغه څوک چې په څهٔ خبره په جوش کښې راځي.
**جذبه** : د ذهن هیجان، جوش، د نفسیاتو په اصطلاح کښې د ذهن له هغو دریو خاصیتونو څنې یو چې د حقیقت ادراک پرې کیدے شي نور دوه خاصیتونه ئ په ترتیب سره احساس او علم دي.

**جزوبندي** : د کتاب جزونه بیلونه او ګنډنه.

**جزوي**: د جزو سره منسوب، نیمګړے، په نیمګړي ډول.

**جزیره** : ټاپو، هغه وچه چې ګیر چاپیره ئ اوبۀ وي.

**جزیه** : د اسلامي شریعت د لاندې هغه مقرره قلنګ چې ذمیان ئ اسلامي حکومت ته د سر او ناموس د سلامتیا ساتلو دپاره ور کوي.

**جسارت** : بهادري، زړۀ ورتیا، دلیري، بې شرمي، بې حیائي، رډتوب، کلک سترګي توب.

**جستجو** : تالاش، لټون، طلب، لټونه، پلټنه.

**جسد** : تن، بدن، وجود، جسم، جثه، جوثه، لاش، مړے، کالبوت.

**جسم** : تن، بدن، وجود، څټه، ګرګه، ځان، د جیومیټری په اصطلاح کښې هغه څیز چې درې اعتداده (طول، عرض او بلندي لري).

**جشن** : د ښادی موقعه، د عیش مجلس، په خاصو موقعو منعقد کیدونکے د خوشحالی مجلس.

**جعل** : ټګي، فریب، دوکه، چل ول، جوړښت، بناوټ، دیسي والے، ساخته کاري، د غوشیالو یا سوټو ګونګټ.

**جعلي** : نقلي، دیسي، چې اصلي نۀ وي.

**جغ** : غم، ژغ، چوغ، د لرګي جوړه هغه آله چې د قلبې په وخت د غویالو په غاړه کښې اچولے شي.

**جغرافیه** : د جیاګرافي معرب، د زمکې علم، د زمکې صفت یا احوال بیانونه.

**جغنلوے** : جوغنلوے، هغه لرګے چې په جغ کښې ورکولے شي او د هغې په وجه د غوئي څټ په جغ کښې بند وي.

**جفا** : د وفا متضاد، ظلم، زياتے، سختي.

**جفاکش** : خواري کښ، محنت کش، محنتي.

**جفاکشي** : د جفا کش کيدو حالت، محنت، خواري،

**جفت** : جوړه، غبرګ، برغ، د طاق متضاد.

**جفتي** : د نر او ښځې سره يو ځاے کيدنه.

**جفر** : علم جفر، د يو داسې علم نوم چې پکښې د قسمت د حال د معلومولو دعوې کيږي.

**جق** : جک، بکواس، فضول خبره.

**جک** : جق، بکواس، فضول خبره، عبث خبره.

**جک جوړ** : روغ جوړ، بيخي جوړ، روغ رمټ.

**جکړ** : جاکړ، بادو باران، خول، طوفان، تباهي، بربادي، خرابي.

**جګ** : دنګ، لوړ، ډينګ، چګ، ولاړ، نيغ، جيګ د اوبو لوښے.

**جګرخون** : خيګر خون، خواري، محنت.

**جګړمار** : جګړالو، پساتي، فسادي، جګړاوو.

**جګړه** : جنګ، شور، تنازعه، نښه.

**جګي جګي** : د زاری کلمه، د خواست کلمه، چيګي چيګي.

**جل** : ويړه، باړ، واړ، خندق، شپول. يوه وړه مرغی. جينی، جلی، جينوټی، نجلی، جلکی. جلبل، ترېے، سوے،

**جلا** : جدا، بيل، ګوښې، يواځې، ځان له.

**جلاب** : جاړ، جولاب، مسهل، د دستونو راوستو دارو.

**جلات** : جلاد، ډرې لګونکے، سر پريکونکے، ظالم، بې رحمه.

**جلا جلا** : بيل بيل، جدا جدا.

**جلار** : د سيند په غاړه

کنستلے شوے هغه کوهے چې د سیند اوبهٔ د ارټ یا پمپ په ذریعه ترې د اوبهٔ خور دپاره استعمالیږي.
**جلال** : لوئي، بزرګي، شان، دبدبه، د الله پاک صفت.
**جلاله** : د جارې اوبو چینه.
**جلالي** : جلال لرونکے. تاؤژن، قهرژن.
**جلاوطن** : له وطنه شړلے شوے، خارج شوے، له وطنه ایستلے شوے.
**جلب** : هغه پړے چې د ځاروو غاړې ته اچولے شي. چا سره د رخصتولو په وخت څو قدمه تلل. وچوړے.
**جلبل**:ستي، لوغړن، سوے،
**جلت** : جلد، تیز، چالاک، چست، چاق، تند، ګړندے، ځرګند، جوت، ښکاره.
**جلد** : څرمن، پوستکے، کانتهه، قایه، کتاب ته اچولے شوې ګته، یو کتاب، د کتاب یوه حصه چې بیله لیکلې یا چاپ شوې وي.
**جلد باز** : غیر ضروري جلدي کونکے، غیر ضروري تادي کونکے، غیر ضروري بیړه کونکے.
**جلدبازي** : بې ضرورته جلتي کول، غیر ضروري تندي کول،
**جلد بندي** : د کتابونو د جلدونو جوړولو او لګولو کار.
**جلد ساز** : جلد اچونکے، جلد بند، جلدګر،
**جلسه** : ناسته، غونډه، محفل، مجمع، اجتماع، نشست، مانځهٔ کښې د دوؤ سجدو تر منځه کښیناستل.
**جلکي** : جینوتې، جلکوتې، وړه جینی، نجلی، جلی.
**جلندر** : جالن، جالر، د برقعې سترګې.
**جلن** : د کوتې د تیر هومره وږد لرګے چې په ارټ کښې د لټ د پاسه پروت وي.

**جلو** : واګې، قیزې، ملونه، جلب، مخه، مخ، سورلي.

**جلوت** : د خلوت متضاد، ډیر خلق، هجوم، ګڼ شمیر.

**جلوس** : کښیناستهٔ، تخت نشیني، په ګڼ شمیر کښې د خلقو د څهٔ خبرې په حق یا مخالفت کښې راوتل او مظاهره کول.

**جلوه** : تجلي، بریښنا، نظاره، ښکاره کیدنه.

**جلي** : د خفي ضد، روښانه، څرګند، معلوم، روڼ، ظاهره، صیقل شوے، په غټو ټکو لیکلے شوے.

**جلیا** : وریت، سوے، لوغړن.

**جلیس**: ملګرے، دوست، اشنا. اصلي معنيٰ ناست،

**جلیبي** : یوه شیریني چې له وریژو جوړیږي، ځلوبی، یو ډول خوارهٔ چې په غوړو کښې پخیږي او تاؤ راتاؤ شکل لري.

**جلی** : نجلی، جینی، جلی، جلکی، جنی،

**جم** : جم جګړ، بادوباران، هغه باران چې سیلی پکښې وي. قبیله، خاندان. چم، ټول، راغونډ، یو ځاے.

**جُمات** : نمځدک، جومات، مسجد، جمیات، د خداے کور، د مسلمانانو د عبادت ځاے.

**جمادي** : د اسلامي قمري میاشتو پینځمه او شپږمه میاشت چې جمادي الاول او جمادي الثاني ورته وئیلے شي.

**جمادي الاخر** : وګورئ جمادي الثاني.

**جمادي الاول** : دریمه خور، د هجري کال پنځمه میاشت.

**جماع** : کوروالے، د انساني نر او ښځې په جنسي لحاظ یو ځاے کیدل.

**جماعت** : ټولے، غونډه، ټولنه، مسجد، جمات،

نمځدک، صنف، درجه، کلاس.

**جمال** : ښائست، ښکلی توب، حسن.

**جمال کوټه** : یو دست آور تخم، جمال ګوټه.

**جمامه** : جمیا، د شړشمو په شان یو بوټی چې تیل ترې ویستی شي، تارمیرا،

**جم جګړ** : جم جړ، زول او طوفان، سیلي او باران.

**جمدانی** : نری سپینه کپړه، د زنانوؤ د لوپټو کپړه.

**جمدر** : جندر، یو قسم خنجر چې دواړه مخه ئ تیرهٔ وي، پیشقوزه. جودر، جاؤدر، یو قسم واښهٔ چې د غنمو د بوټي په رنګ بوټی لري او په غنمو کښې کیږي.

**جمع** : یو ځای، غونډ، ټول، کل، پنډ، ټولی، غونډه، د حساب یوه قاعده، میزان، پنګه، سرمایه، ذخیره، نغدي، مطمئن، په تسلي.

**جمعرات** : د هفتې شپږمه ورځ، زیارت، پنجشنبه، د جمعې نه مخکښې راتلونکې ورځ.

**جمعه** : ادینه، جومه، د هفتې اوومه ورځ، د زیارت او خالي ترمنځه ورځ، د مړي جومه، د مرګ نه پس راتلونکی زیارت، د جمعې په شپه مړي پسې خیرات کول.

**جمعیت** : غونډه، ټولنه، ګڼه، جمع، اتفاق، تسلي، ډاډ، دلجمعي، نفوس، سر شماري، شتمني، بډائي،

**جمل** : اوښ. د ابجدو د حساب علم.

**جُمله** : ټول، کلهم، همه، واړه.فقره، د څو ټکو مجموعه.

**جمود** : په ځای ودریدل، بې حرکته کیدنه، ساکن کیدل، سائنس کښې د حرکت هغه اصول چې د هغې مطابق یو ساکن څیز بې له قوته متحرک او یو

متحرک څيز بې له قوته ساکن کيدې نۀ شي.

**جمهور** : عام خلق، اولس، جمعيت، عوام.

**جمهوريت** : اولسي حکومت، د خلقو حکومت، ډيماکريسي، ري پبلک، عوامي حکومت، هغه حکومت چې خلق خپل نمائنده ګان په خپله مرضى خوښ کړي او بيا هغوي د يو مقرر وخت دپاره حکومت کوي. د خلقو دپاره د خلقو چوڼ کړے شوے حکومت چې د خلقو وي.

**جميع** : کل، په جمع، په هير.

**جميل** : پيے مخے، ښکلے، ښائسته.

**جن** : پيرے، هغه مخلوق چې ليدے نۀ شي.

**جن** : جينى، نجلى، جنى، جلى،

**جناب** : د احترام او عزت کلمه، صاحب، حضرت، ښاغلے. درګاه، در، دروازه.

**جنابت** : پليتي، ناپاکي، اودس اوړيدل.

**جنت** : د جن جمع، پيريان.

**جناح** : وبال، ګناه، جرم. وزر، څانګ، پر، اړخ، پلو، برخه، متې.

**جنازه** : د مسلمان مړي ماتمي جلوس، هغه نمونځ چې د مسلمان مړي د ښخولو نه مخکښې کولے شي.

**جن و انس** : پيريان او انسانان.

**جنايت** : جرم.

**جُنب** : ناپاک، په هغه چا چې غسل واجب شوے وي او لمبلي ئې نۀ وي. اجنبي، ميلمه.

**جنبش** : حرکت، خوځيدنه.

**جنبه** : ډله، پره، مرسته،

**جـنـت** : د اسلامي عقيدې مطابق هغه انعامي باغ چې د دنيا د ښو کارونو په عوض

کښتې په نیکانو ته د الله پاک په فضل ور کیدے شي، باغ، بهشت.

**جنتري** : تقویم، کیلنډر،

**جنج** : د وادهٔ د خلمي هغه جلوس چې د ناوې کور ته ځي او ډولۍ ترې راوړي.

**جنجال** : فساد، لانجه، بې ارامي، ناقلاري، پریشاني.

**جنجړ** : سونډ، شونډ، پوخ شوے ادرک. مړاوے، پژمرده، شیته، جینګړ، تت.

**جنجوړیا** : چیپړ، کوت کوت، ګنځې ګنځې.

**جنجي** : د کبانو نیولو جال. ورا بانړے، په جنج تلونکے.

**جنډه** : بیرغ، توغ، زړه جامه، خوندړي، خونجاړي.

**جنس** : شان، شکل، غله قرض اخستل، د غلې پور،

**جنسا** : بجسنه، په خپله، عیناً، کټ مټ، هوبهو، بیدو، بیدونے.

**جنس** : قسم، اصل، ذات، نوع، نوغے، خیل، شے، څیز، مال، اسباب، شکل، شان، په انسان او حیوان کښې د نارینه او زنانه ویش.

**جنګ** : جنګریز، جګړه، نښته،

**جنګجو** : جګړمار، جنګ کونکے، جنګیالے، جنګي،

**جنګریز** : د جنګ ډګر، د جنګ میدان،

**جنګله** : د وسپنې باړ،

**جنګول** : په جنګ اخته کول، نښلول، جګړول، دوه څیزونه سره په ډغره ورروستل.

**جنګیالے** : توررزن، د جنګ ماهر.

**جنګیدل** : نښتل، په جنګ اخته کیدل، دوه یا ګن څیزونه یو بل سره لګیدل.

**جنګی** : ورړو کے ځنګل، ګڼې ونې، هغه ځاے چې ګڼې ونې پکښې یو بل سره جختې ولاړې وي. ورینې جرابې، موزې.

**جنوب** : سویل، سهیل، د نمر پریواتهٔ ته د مخ کونکي ګس لاس ته طرف. ناولے، پلیت، ناپاکه.

**جنوتارے** : ښځونک، هغه هلک چې د جینکو غونډې خویونه لري.

**جنوري** : د عیسوي کال وړومبی میاشت چې د دسمبر نه پس او د فروری نه مخکښې وي.

**جنون** : لیونتوب، قار، غصه، سوخت،

**جنین** : په ګیډه کښې دننه ماشوم، د ماشوم په رحم کښې ابتدائي حالت.

**جو** : د زمکې او اسمان تر منځه خلا، هوا، تشه، خالي ځاے.

**جو** : کلمه ربط، شاید، ګنې، ګوندې، جوړ، بس، د تکیه کلام په ډول وئیلے شي.

**جواب** : ځواب، بدل، عوض، انکار، مثال، ثاني، پیغام.

**جوابي** : د جواب، هغه چې انکار ورته شوے وي.

**جواد** : سخي، د الله پاک په نوم ور کړه کونکے،

**جوار** : نزدیکت، ګاونډ، قرب، ګاونډتوب.

**جُوار** : جیوار، یوه غله، جوور، جیوور.

**جوارش** : په قوام کښې پخه شوې یوه مرکبه دوائي چې ډیر ښهٔ خوند لري او عام طور سره د ګیډې د مرضونو دپاره استعمالیږي.

**جوارګر** : هغه څوک چې جوارې کوي.

**جوارې** : جیوارې، قمار بازي، شرط، پړ.

**جوارینه** : سکرک، د جوارو روټې.

**جوارے** : د جوارو روټې، سکرک، د جوارو وړے.

**جواز** : روا کیدنه، جائز کیدنه، اجازت، رخصت،

اجازت نامه. د ګنو یا تیلو ګانې.

**جوال** : لویه بوری، غوندے. ډیر تعداد، ډیر مقدار،

**جواهر** : ګوهرونه، قیمتي کاڼي، د جوهر جمع.

**جوبن** : د جینی ځواني، د ځوانی نوے رانګ، د جینۍ د سینې کیدنه، د حیض راتلل.

**جوپه** : کاروان، قافله، ټولے، ځل، وار، نوبت، برخه، حصه، بخره.

**جوت** : جفت، جوړه، جوړی، تیار، زوت، عادت شوے، برابر.

**جوَت** : ښکاره، څرګند، معلوم، ظاهر.

**جوت تاک** : جفت او طاق، یو ډول جواري چې په موټي کښې غوزان یا نور څیزونه ونیسي مخاطب نه پوښتنه کیږي چې جوت کهٔ طاق.

**جوتش** : نجوم، د ستورو علم، جنتر منتر.

**جوت طاق** : وګورئ جوت او طاق

**جوتکي** : جوتې، لغتې، لتې، ټوپونه.

**جوتي** : جوت شوے، عادت، اموخته، روږدے، ایل شوے، بلد، عادي، په یوې قلبه یا بار عادت شارو ے، د ناریک او ناباري متضاد.

**جوتي** : جفتې، جوړه، غبرګې، برغې.

**جوټ** : ځیټ، کتے، ځوان، سنډا، د میښې ځوان بچے. چرګوټے، چرګوړے.

**جُوټ** : خفه، تنګ، زهیر، غمژن، تربت، دروغ، عبث، فضول، چټي، ملګرے، ساري، سیال،

**جُوټه** : پاتې خوراک، پس خورده، ګنده شوے، څکلے، ناپاک، پلیت، مردار، د سوچه ضد.

**جوته** : د جوت مؤنث، خواني ته رسیدونکې کتې.
**جوج ماجوج** : ځوځي ماخوځي، یاجوج و ماجوج، یو قوم چې په قرآن کښې ئې د فسادیانو په حیثیت ذکر راغلے دے.
**جود** : سخاوت، بخشش، ورکړه.
**جوداله** : د اوربشې د دانې هومره.
**جودر** : جاودر، جمدر، یو قسم وابښهٔ چې په غنمو کښې کیږي او بوټے ئې د غنم د بوټي په رنګ وي.
**جور** : زور، زیاتے، ظلم. د وریژو دم، هغه وریژې چې د پخولو نه وروستو وږدې شي د وریژو دغه د وږدیدو صفت ته جور وئیلے شي.
**جوړ** : روغ سلامت، صحت مند، تیار، ساز، شاید، ګوندې، ګني، برابر، سم، موافق، بند، اندام، د هډو کو پیوند.
**جوَړ** : تالاب، تالاؤ، حوض، جیوړ، ډنډ، ډنډوکے.
**جوړ تازه** : لاس ورکول، سترې مشي کول، ګړه بړه، بره ګړه، بړ ګړندے.
**جوړښت** : سازوالے، جوړتیا، روغوالے، تندرستي، سمون، برابرے، موافقت، رغونه، فیصله، روغه، جوړه، صلح، تعمیري کارونه.
**جوړول** : سازول، رغول، روغول، پخلا کول، سکښل، سکښتل، ورستول.
**جوړه** : جفت، د قلبې دوه غویان، جامه، پوشاک، لباس، قمیص پرتوګ، سوټ،
**جوړه** : روغه، صلح، راضي نامه، پخلا کونه.
**جوړه جاړه** : روغه، صلح، روغه جوړه.
**جوړیدل** : تیاریدل، برابریدل، رغیدل، سمیدل، سازیدل، ابادیدل، ښائسته

کیدل، پخلا کیدل، روغه کیدل، مئینیدل، سنګاریدل، ولاړیدل، راضي کیدل.

**جوزا :** د ثور او سرطان تر منځ میاشت، د غبرګولې میاشت،

**جوس :** انګړ، انګن، غولې، صحن، کوڅه، کلي ته نږدې زمکه، درشل.

**جوسر :** جخت، پیوست، متصل، له سره تیرونه.

**جوسه :** جثه، جوثه، ځیره، بنه، کړۀ وړۀ، جسم، بدن، وجود، تن.هغه الماری چې په دیوال کښې جوړه شوې وي.

**جوش :** ختهکیدل، یشیدل، ځوښ، ولوله، جذبه، ګرمي، تیزي، زور. شهوت، مستي، سوخت، قهر، غصه، لیونتوب، جنون.

**جوشانده :** سنا، فلوس، یو قسم دارو چې د زکام دپاره استعمالولې شي.

**جوش خروش :** جذبه، ولوله، مستي، غصه، تودښت.

**جوشول :** یشول، ایشول، ځوښول، ختهکول، جوش ور کول،

**جوشیدل :** ځوښیدل، یشیدل، خوتکیدل، جوش او تاؤ خوړل،

**جوک :** ګانې یا بتې ته د اور بلولو ځاے. وزن، تول، اندازه، یو قسم مرغی، ځرے، زخه، د ټوپک زخه. د اوښانو د چو کولو ځاے،

**جوکر :** ټوقمار، ټوقي، د تاش په پاڼو کښې د جیک پانه، غلام، یولس.

**جوکل :** پیمل، وزن کول، تلل، تول کول، اندازه کول،

**جوکمار :** هغه څوک چې په ګانې کښې اور بلوي.

**جوکه :** زور، طاقت، قوت، ځواک، ډوګه، کونډی، ډوکه، ژوره، زوله، یو ډول چینجے چې په اوبو کښې پیدا کیږي.

**جوګنه** : د جوګ او سحر او جادو ماهره، د جوګي ښځه، د جوګي مؤنث.

**جوګه** : لائق، قابل، مناسب، موزون، وړ.

**جوګي** : جادوګر، جوګ کونکے، کوډګر، جوتشي، د يوګا ماهر. تور يا سور کونتر چې سر ئې سپين وي.

**جولا** : اوبلونکے، په کلي رخت جوړونکے. پاولے، بافنده، تارکښ، غنے، غنه، جولاګګ، عنکبوت.

**جولا ګاډے** : سائيکل، دوچرخه.

**جولاګے** : د جولا اسم تصغير، غنے،

**جولان** : د اس ځغل، د اس منډه، ځولنه،

**جولانګاه** : هغه ځاے چې د چرته نه اسونه ځغلولے شي.

**جولائي** : د عيسوي کال اوومه مياشت چې د اګست نه اګاهو او د جون نه پس راځي.

**جولـه** : څيره، شکل، بڼه. وړوکے بيګ، زيړے، يرقان، جل، سپيرکی، فالج، ګوزن، جمامه، تارامیرا.

**جولي** : څولی، لمن، يوه فوځي کځوړه، جوله.

**جومات** : جماعت، جمات، مسجد، جميات.

**جومپک** : غومپک، غومپکه، غنچک،

**جومکه** : جومپک، زومبق وړے، ګنګوچے، ګنګورے، سنبله، د اسمان شپږم برج، د زنانۀ د غوږونو يو کالے، جومکې.

**جون** : د عيسوي ميلادي کال شپږمه مياشت، د مئ نه پس او د جولائي نه مخکښې راتلونکې مياشت.

**جونګ** : د اوښ بچے، جونګے. د يادداشت کتابچه، بياض،

**جونګړه** : جونپړی،

کوډلـه، کیږدی، چوپـال، جونګړی، جومپړی.

**جونـه :** د جینـی جـمـع. جینکی،

**جوهر :** ملـغـلره، د ګوهر معـرب، قـابلیت، لیاقت، صـفـت، کمال، شیره، اصل، رس، عرق، خوند.

**جـویـا :** متـلاشـي، تـلاش کونکے.

**جه :** سـرکـش، ضدي، نیغ، مقابل، مخامخ، اتفاق، موافقت، لـج، څیـل، اړې کـونه، خبره نهٔ منل.

**جـه کیدل :** پـه مـورچـه کښې پټ کښیناستل.

**جهاد :** جهـد، کـوشـش کـول، د دیـن او حـق پـه لاره کښـې جـنګ کول، د دین د سر لوړی دپاره د کافرو سره جنګ.

**جهاز :** الـوتکه، جاز، جز، د اوبو جهاز،

**جهالت :** جهـل، کم علمي، ناپوهي، بې علمي.

**جهـان :** دنیـا، نـړی، ډیـر خلق.

**جهانګیر :** دنیا نیونکے، دنیا فتح کونکے.

**جهـت :** اړخ، پـلـو، خـوا، سبب، علت، له دې کبله.

**جهد :** کـوشـش، هـڅـه، خواري، طاقت، وس.

**جهـر :** نـاچ، ګـډا، نـڅـا، رقـص. څر ګـنـد، ښـکـاره، برملا.

**جهل :** جهالت، ناپوهي، کم علمي، بې علمي.

**جهنم :** دوزخ، جحیم،

**جهود :** یهـود، د حـضـرت موسیٰ علیـه السلام د دین منونکے.

**جهول :** سـخـت کم عقل، بـې وقـوف، ډیـر زیـات کـم عقله.

**جهیز :** د ناوې سره د پلار د کـوره رالیـږلـے شوے سامان. داج.

**جي** : او، ښه، هن، د تعظيم دپاره وئيلے کيدونکې کلمه، څنې رشتو سره د لاحقې په ډول راځي لکه کاکاجي، باباجي، لالاجي.

**جيش** : لښکر، فوځ.

**جيکې جيکې** : د منت او زارۍ کلمه، د التجا کلمه.

**جيم** : د پښتو د حروف تهجي اووم حرف "ج" تلفظ. يوه سخته کپړه چې اوبهٔ ناخلي. د تصوف په اصطلاح کښې عالم جبروت.

**جينجر** : نرے نروچکرے، جينګر. جينجړ، جينجن، ارهر.

**جينوتے** : ښځونک، جينوټارے، هغه هلک چې کړهٔ وړهٔ ئې د جينکو په شان وي.

**جينوتي** : وړه جينۍ، تنکۍ جينۍ.

**جينۍ** : جلکۍ، نجلۍ، جلګۍ، جلۍ، جل،

**جيو** : د لاطينۍ ژبې ټکے چې معنيٰ ئې زمکه ده. جي، ځار، قربان، ګول،

**جيو جيو** : جي جي، قربان، ځار قربان.

**جيوميټري** : د حساب يو علم.

**جيب** : جوب، جب، په قميص يا د لباس نورو څيزونو کښې د څيزونو ايښودو ځاے.

**جيټ** : په کور کښې د ساګ خشاک ځاے چې نغري ته نزدې وي. د بکرمي کال دويمه مياشت چې د وساک او هاړ تر منځ او په انګريزي کيلنډر کښې د مئ د وروستۍ نيمې نه د جون تر وړومبۍ نيمې پورې وي.

**جيل** : زندان، قيد خانه، بندي خانه.

**جيلخانه** : زندان، جيل، بندي خانه.

**ځ** : (ځيم) د پښتو حروف تهجي اتم حرف، د ابجدو په حساب ئې قيمت د "ج" برابر يعني دري (۳) دی.

**ځار** : جار، قربان، فدا، جيو، په شاعری کښې د محبوب سره د مينې د زيات اظهار کولو په وخت استعماليږي.

**ځار ځار** : قربان قربان، ژړا، فرياد،

**ځارول** : قربانول، جارول، نثارول، جار ايستل،

**ځاريدل** : قربانيدل، فدا کيدل، جاريدل، نثاريدل.

**ځاريدنه** : قربانيدنه، نثاريدنه، جاريدنه.

**ځاره** : د ځيز جمع،

**ځاله** : جاله، منجاله، منځوله، کورکے، د مارغانو د بچو راوړو ځاے، د الوتکو د راکوزيدو او پورته کيدو ځاے. هوائي اډه، هوائي ډګر.

**ځامن** : د ځوي جمع، بچي، پسران.

**ځان** : ذات، دم، جان، ژوند، اروا، ساه، روح، شها، شهی، د زړه ټوټه، معشوقه، خوږ. اجتناب. روزګار.

**ځان ځاني** : خپل خپل ځان ته، په خپله مخه، خودخواهي، خود غرضي، نفسانفسي، د ځان ځان، د هر چا د خپل ځان او د خپل سر. بې وسلې توب.

**ځانده** : شکل، بڼه، جوثه، موشاده، صورت، قواره، ځانده، وجود، تنه، پنجره، ډانچه، کړه وړه، سا، دم.

**ځانګړتيا** : تنهائي، يواځې والے، ګوشه نشيني، خصوصيت، انفراديت.

**ځانګړے** : بيل، ځان ته، ځان له، يواځي، جلا، ګوښې، جدا، د ځان، مستقل، خپلواک، مشخص، مخصوص، ممتاز.

**ځانګل**: جوتې خوړل، ځانګيدل، ټال خوړل، ټال وهل.

**ځانګو**: ګواره چې ماشومان پکښې ځانګولے شي.
**ځـانګه** : د وجود ښیرازي، قدوقامت.
**ځـانله** : جـدا، یواځې، بیل، جـلا، ګـوښـې، ځــانتــه، ځـانګړے، خپـل ځان لـه، د ځان دپاره.
**ځانمني** : خودبیني، غرور، کبر، مغرورتیا.
**ځـانول** : خپـلول، د ځـان کول.
**ځاني** : جـاني، ذاتي، خپل، تـنـي، د خپـل ځـان، پـه خپل ځـان، هـغه څیز یا خبره چې د یو کس سره ئ تعلق وي د بل هیچا پکښې دخل نۀ وي.
**ځاولنه** : ځولنی، زنځیرونه، بیړی.
**ځـاوو** : ابشــــار، اوشــار، جړوبے، ځړوبے.
**ځاے** : جـائے، تـهکــانـه، ټهکانه، محل، مکان، بستره، د خوب ځـاے، مـقام، درجه، وخت او موقع، مناسبه موقع.
**ځـاے ځـائیګـے** : د وسیدو ځـاے، مـقام، هغه ځاے چې د سـړي درک ترې معلوم شي. سـرپـناه، اته پته، درک، نښه نښانه.
**ځـائیـدل**: ځــاے کیـدل، ګـنجائش پیدا کیدل، جائیدل، څـۀ څیـز کښـې پـه زور یا بې زوره ځـاے مـونـدلے کیـدل، راتلل، زغمل کیدل، برداشت کیدل.
**ځــاے ګـهي** : رســا، رسا ځــاے، بـرابـر ځـاے، پـه سم ځاے.
**ځــائیـګـے** : د ځــاے اسم تـصـغیـر، رسـا، ټـاکلے ځاے، معلوم ځاے، په سم ځاے، نښه، د ښـځـې عـضـو مخصوص، د ښـځـې تناسلي آله، ګل جړی، ګل زیړی،
**ځـایول** : ځـاے پیـدا کول، جــایـول، خـونـدي کول، څـۀ څیـز په زور یا په رضا موندل،

هــوارول، څـنـل، سـمـول، جـوړول، بـرابرول، برداشت کول، زغمل، پيڅل.
**څبل** : ځنبل، سترګې رپول، سترګې وهـل، کـوټل، میده کـول، داني کـول، ټـکـول، خوارول، ذليل کول،
**څبله** : پـه خپلو کښې، يو تـربله، په خپل منځ کښې، يو له بله.
**څبن** : خيـچن، خيرن، پمن، پــوار، خــچــن، ســاده، بـې شـعـوره، ناپوهـه، احـمـق، سخت، لواړ، ځيګ.
**څبول** : تـوت ټـکـول، توت څنډل، شنول، څپول، شړول.
**څبيدل** : زياتيدل، ګڼيدل، ګوريدل، شنيدل.
**څبيښل** : نچوړول، چوپل، رودل، رس تـــرې ايستـــل، تـوکـارول، په لاسونو مښل، مروړل، څورل.
**څپلے** : کـوټلے، وهلے، ځبلے، کړولے، څورولے، په عـذاب کـړے، له کاره وتلے، خوار، بزدل شوے.
**څڅيرل** : څـنډل، جړقول، ړقـول، شــوروول، بيـداروول، ويښـول، ټـوټـه ټوټـه کول، ورزل، زيـړې کـول، کـنځل کـول، سپـکـول، سـکونډل، چيچل.
**څرول** : هـضـمول، سهل، بل د طمعې جارويستل.
**څره** : پـرغنه، ژرګه، بلنځه، ازغنه ونه چې په غرونو کښې کيږي.
**څريدل** : ټريدل، بزيدل، د اسهـال پـه وخـت د مقعد نه د پرله پسې اوازونو خارجيدل.
**څړے** : جړے، نظير، کروال، د ټـوپک زخه چې نشانه پرې اخستے شـي. قاصد، استاذے، چپر، نـمـائـنـده، ښکارندوے، څرګندوے، جاسوس.
**څروبه** : ابشـار، څـړوبے، جړوبے.
**څړول** : بـنـدول، کوړيول،

ځـورنـدول، ځوړند کول، اويزاندول.
**ځرېدل** : ځوړند کېدل، کوږې کيدل، ځوړنديدل، اويزانديدل،
**ځږګے** : ځـزګے، جزګے، شنزګے،
**ځبږ** : د ولي هغـه شګلنه شامي يا غاړه چې د اوبو زيم تـرې راچـنيږي. د سيلاب راوړې شګه،
**ځبږے** : ځيګه زمکه، ځګه زمکـه، پـه غرهٔ، دشته يا خوړ کښې هغـه ځاے چې اوبهٔ او بـوټـي نـهٔ لـري او د زمکې په سـطـح ئ ورې ورې شـګـې ښکاري.
**ځغاست** : تيښتـه، ځغل، ځغاښت، تاخت، ترپ.
**ځغاستل** : تيښتـه کول، منډه کول، ترپل، ترپ کول.
**ځغاسته** : تيښتـه، منډه، ځـغـل، تـاخـت، دۇ، تـرړه، ترپ، زغل.
**ځغل** : زغـل، منډه، تيښته، تاخت، ترپ.
**ځغلند** : پـه منډه، په دوړه، زغـلـند، سرسري، د منډې په حالت کښې،
**ځغلول** : زغـلـول، په مخه اخستل، شکست ور کول، لرې کول.
**ځغليدل** : تـرپيدل، په منډه کيـدل، منـډه وهل، په تيښته کيـدل، ميـدان پـريښـودل، شکست خوړل، په شا کيدل، بګيلے کيدل، بګيل کيدل،
**ځکندن** : ځنکدن، د سا د وتـلو حالت، ګران ساعت، د مرهٔ کيدو حالت، د ساه ختنه، زنکدن.
**ځکه** : پـه دې سبب، په دې وجـه، پـه دې دليـل، لـه دې کبله، په دې علت.
**ځګ** : سپـن پـوګ څيـز چـې د روانـو اوبـو پـه سـر کښـې، د څاروي شـخـونـد وهـلـو، د پـور پـخيـدو او پـه

داسې نوررو حالتونو کښې پيدا کيږي. کپ، کف، ځګے.
خاورين لوښے چې ماستهٔ پکښې شاربلے شي.
**ځګال :** ميده ډوډی، چوري شوې او په ښوروا کښې لونده شوې ډوډی، هغه ډوډی چې د ښوروا دپاره ميده شوې وي، وره نمړی، پينډه، تربل.
**ځګلن :** ځګ لرونکے، ځګن، ځګ دار، هغه ځوک چې د خلې نه ئ ځګ بهيږي، لاړ ځاځے.
**ځګيدل :** خوټکيدل، شاربلے کيدل، ځګ پريښودل،
**ځل :** ځلا، چمک، پړق، زلق، بريښ، سخته تنده، جل، وار، پيره، نوبت، د کپړې يا بوجی نه جوړ شوے لوے پوش چې يخنی نه د بچ کولو يا د بار ورلو په وخت د ځاروي په شا اچولے کيږي، کته، ځل، جول، زل،
**ځلا :** ځلق، چمک، پړک، ځل، بريښنا، پړق، چمک.
**ځلان :** ځلاند، روښانه، پړقيدونکے، ځليدونکے.
**ځلاندے :** پړقيدونکے، بريښيدونکے، ځلا لرونکے، ځلان.
**ځلبل :** جلبل، پړقيدونکے، ځليدونکے، بريښيدونکے روښانه.
**ځلبلاند :** حيران، پريشان، بې ارامه، ناټيکاوه، ناقراره، بې قراره،
**ځلښت :** ځل، ځلا، پړق، چمک.
**ځلقول :** په ژبه وهل، په بدو ردو او ناکاره خبرو ژبه استعمالول، د چا خلاف ژبه خوځول،
**ځلموټے :** ژنے، ځلمے، چې ايله ايله ځلمي توب ته رسيدلے وي، چې ايله ايله ئ شونډه شنه شوې وي.
**ځلميتوب :** ځواني، د

خلمي كيدو حالت.
**ځلمے** : ځوان، زلمے، ژلمے. ځواني ته رسيدلے.
**ځلند** : ځلاند، روښانه، بريښيدونکے، ظالم، ستمګر، زبردست، تيرے کونکے، جور کونکے.
**ځلنده** : ښکاره، پرقيدونکے.
**ځلوبى** : تاؤ راتاؤ يو قسم مشهور خوارۀ، زليبى، جليبى،
**ځلوبے** : پيريان اوبۀ، سراب.
**ځلول** : پرقول، بريښول، روښانه کول،
**ځلون** : يو لوے مشک چې په حيواناتو باندې وړل کيږي، مشک، ژے، رابيا، بار.
**ځله** : سعي، کوشش، هڅه، خل، وار، نوبت، پيره، نمبر، کرت، مينه، شوق، هوس، تلوسه، خواهش، اميد، بې قرارې، پريشانه، ستړے، ناقلاره، وارخطا، بې ارامه، حمله.
**ځليدل** : بريښيدل، پرقيدل، زلقيدل، روښانه کيدل، ښکاره کيدل.
**ځم** : زۀ روان يم، ځمه، د فعل حال نه د واحد متکلم صيغه.
**ځما** : زما، اما، ايمو، د زما زړه املا.
**ځماځمائي** : فرق، فرخ، حرص، لالچ.
**ځمبل** : بانۀ رپول، ځنبول، وهل، ځنډل، بې عزته کول، بې آبه کول.
**ځمبيدل** : په ورو ورو تلل، په مزه مزه تلل، ورو ورو قدمونه اخستل، سست تلل، په قلار قلار تلل. په چا باندې کالي امباريدل، ډير زيات کالي اچول.
**ځمکه** : زمکه، مزکه، د شمسي نظام هغه سياره چې بنيادم پرې استوګه کوي،

مخ، سطح،
**ځموږ** : وګورئ زمونږ.
**ځمول** : بانۀ رپول، سترګې رپول. سترګک وهل، سترګې وهل.
**ځنازه** : وګورئ جنازه.
**ځناور** : نادان، کم عقل، ناپوه، حیوان، څاروے، څلوربول، ډنګر.
**ځنب** : د سترګو رپ.
**ځنبل** : وګورئ ځمبل.
**ځنبه** : سترګه وهنه، سترګې ځبونه.
**ځنځول** : ځاځکے ځاځکے تویول، تکے تکے تویول، څڅول، ورو ورو نچوړې کول، په شومتیا سره څۀ څیز چاته ورکول، تکلیف ورکول، لږ څیز ورکول.
**ځنځولی** : ډنډولی، څۀ څیز په څلورو کسانو اخستل، څۀ څیز په څادر کښې اخستل، یو سړے د لاسونو پښو نه په څلور کسه نیول او وړل یا وچتول.
**ځنځه** : سرسوبله، شوبله، زنځه، شوبلکه، سرسوبنده، یو قسم پنجه وره حشره. لالچي، جنجالي سړے، چیچړ بنیادم، ضدي، نښتونکے.
**ځنځیدل** : څځیدل، ځاځکے ځاځکے توئیدل،
**ځنډ** : ایسارتیا، ډیل، تاخیر، درنګ، معطلي، دیري، ډیره موده تیریدنه،
**ځنډان** : زاړۀ، لرغوني، د ډیر وخت.
**ځنډمن** : اټال شوے، ناوخته شوے، ځنډن، معطل شوے، د خپل وخت نه وروستو پاتې شوے.
**ځنډن** : وړاندینے، مخکښنے، پخوانے، لرغونے، قدیمي، وختینے، اټال، ایسار، معطل.
**ځنډول** : اټالول، ایسارول، اټالول، مسطلول، د ټاکلي وخت څخه زیات وخت ور باندې تیرول.
**ځنډیدل** : اټالیدل،

ایساریدل، ناوخته کیدل، معطلیدل، د خپل وخت نه زیات وخت وربانديږ تیریدل.

**څنکدن** : اخري سلګۍ، د مرګ حالت، ځکندن، اخر وخت، د نزعي حالت، د ژوند اخري سلګۍ، ګران ساعت، ساه وتنه، د مړ کیدو حالت.

**څنګل** : هغه ځاے چې زیاتې او ګڼې ونې لري. ینجر او شار ځاے، دشت، درګه.

**څنګله** : جنګله، باړ، ویړه.

**څنکوتی** : الاهو، تهالی وهنه، ځانګونه.

**څنې** : بعضې، سره، ځخه، ورځخه، ترې نه، ورنه، ځینې.

**څنې څنې** : بعضې بعضې، یو نیم، خال خال، کم کوز، یو یو، بعضي نیم، لږ لږ، کله نا کله.

**څو** : مونږ روان یو، درومو، د اجازت اخستو کلمه، لکه مونږ څو یعنې لاړ شو.

**څواب** : جواب، حال احوال معلومیدنه، غبرګون، د پوښتنې جواب، ردول، په نفي کښې جواب ورکول، ایری.

**څواک** : سبک، جوکه، توغ، لل.

**څوان** : ځلمے، بالغ شوے، ژنے، ژنکے.

**څوانکه** : ګرمکه، ستو، هغه دانه چې د ځلمي توب په وخت کښې په مخ راخیژي.

**څوانمرد** : مړنے، نر، بهادر، څوان، میړنے، زړه ور، غیرتي، سخي، ډوډي مار،

**څوانمرګي** : د څوانی مرګ، څواني مرګي، په ځلمي توب کښې مړینه، نیمه خوا کیدنه.

**څوانمړد** : څوانمرد، جوانمرد، څوان، نر، غیرتي، تکړه، بهادر، چې د ښې څواني صفت پکښې وي.

**څوالي** : ځلمي توب، جواني، ښۀ ځلمي توب،

ښکلا، قوت او طاقت، شباب، مړانه، مروت.
**ځواني مرګ :** په ځوانۍ کښې مړ شوے. نيمه خوا تللے، ځواني مرګے.
**ځواليدل :** ځوان کيدل، ژنے کيدل، ځلمے کيدل، طاقت او قدرت موندل، ځوانۍ ته رسيدل.
**ځوځي ماځوځي :** جوجي ماجوجي، ياجوج او ماجوج، کوټ ښکار.
**ځور :** تکليف، کړاو، رنځ، ازار، درد، جور، ظلم، جبر.
**ځورتوب :** تيز اوريدنه، زر اوريدنه، هوښياري، پوهه، متوجه کيدنه، دانائي.
**ځور ظلم :** زور ظلم، زياتے، تاړاک، تيرے.
**ځورول :** ظلم کول، زياتے او جبر کول، ازارول، کړول، رنځول، په عذابول، تيز اورول، زر اورول، پوهول، دانا کول، هوښيارول، متوجه کول، هضمول.
**ځوريدل :** دردېدل، زوريدل، په عذابيدل، تکليف رسيدل، غمژن کيدل،
**ځوړ :** مخ په ښکته، اترائي، ځوېر، د چړائي ضد، ځوېړے،
**ځوړند :** زړيدونکے، کوړے، ځويړند، ځړول شوے، زړيدلے، اويزان، اويزاند، بانډه، نښتے، پاس، اتال.
**ځوړندول :** اويزاندول، ځړول، للول، کوړي کول، اتالول، بانډه کول.
**ځوړنديدل :** اويزانديدل، بانډه کيدل، ځړيدل، کوړي کيدل،
**ځوړوبے :** جړوبے، ابشار.
**ځوړول :** مخ ښکته کول، سر کوزول، سر ټيټول، زمکه ښکته کول، زمکه ژورول، غوچول.
**ځوړيدل :** مخ ښکته کيدل، سر ځوړے کيدل، سر

ښکته کېدل، ټيټېدل، کوزېدل، ښکته کېدل.

**څوړے** : مخ په ښکته، څوېړ.

**څوز** : يو قسم ازغن بوټے چې اوښان ئې خوري.

**څوښ** : جوش، خوټکېدنه، خوټ، تاؤ، غصه، کينه.

**څوښول** : جوش ورکول، څوښ ورکول، خوټکول، شيره ايستل،

**څوښه** : جوشه، هغه څيز چې په ديګ يا کټوی کښې وخوټکولے شي.

**څوښېدل** : يشېدل، جوش خوړل، جوشېدل، خوټکېدل.

**څوکے** : سخته لار، ستغ، څوړے،

**څول** : زول، سيلۍ او طوفان، سخته او تيزه سيلۍ، سيلۍ او باران.

**څولن** : هغه زخم چې د پوخوالي له کبله پکښې نو راغلے وي.

**څولنه** : څولانه، بېړی، د پښو زنځير.

**څوله** : وری، غيزی، جوله. زوړ قميص چې لاندې ورته استر لګېدلے وي. لويه او وړه جوله چې د بيزو د ويښتو نه جوړه شوې وي او په اوښانو باندې بارولے کيږي.

**څولی** : لمن، جولی، کلچ، پيڅه، جوال غوندې څيز چې دواړه سرونه او يو طرف ئې ګنډلے وي او يوه خوا ئې ازاده وي. خاوره او سره پکښې اچولے شي.

**څومبق** : غنچک، څونبک، څومبک، د يو بوټي تنکی غندل او د سر پاڼې.

**څومبک** : ګچه، ګوچه، زومبک، څومبق، غومپک، غنچک.

**څولوړے** : پشم يا د ريښمو نه جوړ شوے ګل، د پګړی څوکه، جوړه کړې شوې

غوټه، طره، پوپکه، کلغي، ګوچه، ګچه، تاج، جنلړې، چارخولک، چارخول.

**ځوی** : بچی، نارینه اولاد، زوی.

**ځوپړ** : د ستغ ضد، د تل یا فرش خوا ته تلل، د غرۀ نه د راکوزېدو مخه، اترائي، ځوړ، ځوړې، د نیغ ضد، مخ ښکته.

**ځیر** : احتیاط، په غور کتل، کتلې، لیدلې، تیز نظره، باریک بین، زیرک، ځیرک، دانا، هوښیار،

**ځیر ځیر** : په یو مخ، په غور،

**ځیرک** : تیزه نظره، هوښیار، زیرک، پوهه، تیز بین، دقیق.

**ځیرکتیا** : زیرکتوب، پوهه، ځیرک والی، هوښیاري، دانائي،

**ځیرمن** : هوښیار، زیرک، ځیرک، باریک بین، پوه.

**ځیرنه** : ځیرتیا، ځیرتوب، په ځیر ځیر کتنه. پام اړول، خبر اخستل.

**ځیرول** : په ځیر ځیر کتل، جائزه اخستل، تصدیق کول، په زر کاڼي اچول، څېړل، سنجول، تنقید کول، پلټنه کول، لیدل، کتل، لټول، متوجه کول.

**ځیره** : تاکلې اندازه، وظیفه، هغه مقرره اندازه چې یو کور نه جومات ته ورکول کیږي. زیره. ځان، بشره، څیره، مشاده، شکل، څرګند، ښکاره.

**ځیریدل** : متوجه کیدل، دقت کول.

**ځیږګی** : څوڅګې، ششګې، سږګې، ژژګې،

**ځیګ** : ببر، ستغ، شلهل، غیرتي، سپیځلې، سوچه، پاک،

**ځیګر** : جیګر، جګر، اینه، ینه، سینه، همت، زغم،

**ځیګر خون** : تکلیف، خواري.

**ځیګرور** : د لوی زړه څښتن، د لوی سیني خاوند، بې رحمه، مضبوط، ناترسه.

**ځیګول** : ببرول، زیږول، دیڅول، سوختول، په ننګ او غیرت راوستل.

**ځینور** : ښینور، غبرګولي.

**ځینه** : زینه، پوړی، پایه، پارځنګ.

**ځیني** : بعضې، ځنې، ترینه، ورځخه، ترې.

**ځیرمه** : توښه، زیرمه، ذخیره، توشه، پس انداز.

**ځیرول** : پسخول، زهیرول.

**ځیږے** : ښتیا، خرګند، سوچه خبره.

**ځیزمه** : جڅمه، د ښو غاړې، د سترګو هغه برخه چې بانۀ پرې ولاړ وي.

**ځیږیدل** : زیږیدل، پیدا کیدل.

**ځیل** : ضد، ناړامي، بغض، اړي، جیل، ناپوهي، کم عقلي، ټینګار، زنځیر، رسی.

**ځیلانځه** : هغه ځناور چې د کمزوری یا بیماری نه صحت مند شي. پیروان، پریوان، پر ون،

**ځیله** : ځیلی، جرړه، جرړه، مونږ.

**ځیلي**: ځیل کونکے، اړي مار، ضدي، ناپوهه، کم عقل، سرتمبه، جیلي.

**ځیلی** : جرړه، ولی. انځیران، یو قسم بیماري چې د خرمنې دننه غټ غټ غونډان راپیدا شي.

**چ** : (چې) د پښتو د پتهی نهه حرف، د ابجدو په حساب ئ قیمت د "ج" برابر یعني درې (۳)

**چا** : د استفهام توری، څوک، کوم یو، کوم.

**چابړے** : د تلې یوه حصه. تلې پټ، تله،

**چابک** : کروړه، تازیانه، تراټ، متروکه. تیز، ګړندے، چست، تند، متے، چالاک.

**چابي** : کونجي، کنجي، نوسرے، پلے، کلي، کیلي، پیچ، هغه آله چې د موټرو لارو او داسې نور قسمه مشینونه پرې پرانستے شي. هغه آله چې ګړیال ته پرې حرکت ورکولے شي.

**چاپ** : مهر، ټاپه، نښه، نښانه، داغ، خاپ، علامت، د چاپ کارخانه، د چاپ صنعت. د وسلې دکان. تخم. خوشامنده. چاپ شوے.

**چاپ خانه** : مطبع، د چاپ کولو ځاے، هغه ځاے چې د کتابونو یا داسې نورو موادو د چاپ کولو کار په کښې په مشینونو باندې کیږي.

**چاپړاخ** : واز، بیرته، خلاص، ارت، پلن، پراخ، ویت، د زنانؤ اندام نهاني،

**چاپراخه** : څاپیړه، څپیړه، تتوړه، چپیړه. چپلاخه، څپلاخه، چاپلاخه، څپړ.

**چاپلاخه** : څپیړه، چپیړه، چپلاخه.

**چاپلوس** : خوشامندګر، خوشامدګر، خوشامدي، غوړه مال، بوټ پاک، چاکلیټي، چپړوس، تملق، د غوړو او پستو خبرو ویونکے، غوړاوو.

**چاپول** : طبع کول، خپرول، چاپ کول، ټاپه کول، مهر کول، نښه کول، نښاني کول، نشانه کول.

**چاپونه** : داغونه، نښې، نښانې، د زخمونو جوړیدو نه

پس پاتې شوي داغونه،
**چاپه** : ناڅاپي حمله، چوپه، چاپ، خاپ، داغ، نښه، نقش، تاپه، غټ مهر، څپک، د څلورو ګوتو اندازه، د څلورو ګوتو هومره ځاے، د دوؤ انچو برابر، د ازغو دلی، د غنو پولی، چپه، کلان.
**چاپي** : منډنه، کښیمنډنه، په وجود زور کول، بلوده، وهنه،
**چاپېر** : څرخومه، سرګومه، تاؤراتاؤ، ګرداګرد، ګرديٍ، ګوښه، راتاؤ، چارپېر، چاپېره، ګردي ګوښي، شاوخوا، خواؤشا، څلور خواوي، چاپېره، چارچاپېر، چارچاپېره، مصروف، لګیا، بوخت، مشغول، اخته،
**چاپېرچل** : ګردش، ګردېښت، ګرځېدنه، د زمکې د کرې څرخېدنه، پرله پسې تاؤېدنه او ګرځېدنه، طواف، چکر، ماحول، چاپېریال، ګېر چاپېره، چارچاپېره، تېر چاپېره، ګرداګرد، خواوشا.
**چاپېریال** : خواوشا، شاؤخوا، ماحول، څلور طرفه، چاپېرچل، تېر چاپېره، ګېر چاپېره، محیط.
**چاتا** : پړسو، غټ خیټے، غټ ګېډے، خیټور، ګېډه ور، خیټو، ډېر خوړونکے، مټ، چاتی.
**چاټکے** : تاټکے، د ختو لوښے.
**چاټو** : خوش طبع، چټ، مست، څوک چې خپل وخت په خوښی تیروي. چاټ لرونکے.
**چاټورے** : د پیو لوښے، وړه چاټی، هغه کټوی چې شوملې پکښې شاربلے شي.
**چاټی** : هغه غټ خاورین لوښے چې اوبۀ پکښې د څښلو دپاره ساتلے شي، د اوړو دانو او ګوړې د ایښودو خاورین لوښے، د شوملو شاربلو لوښے،

مټ، خم، ماتې، متې.

**چاجوش** : هغه لوښے چې چاۍ پکښې پخولے شي. د چايو د يشولو لوښے، هغه لوښے چې اوبهٔ پکښې يشولے شي، کيتلے، چے جوش، چائينر، چايجوشه، چاجوشه.

**چاچا** : ترهٔ، کاکا، اکا، د پلار ورور، مشر سړي ته د ادب نوم.

**چاچې** : د ترهٔ ښځه، تندار، چاچی، ونديار، ورندار، تنديار،

**چاچي** : د وړو ماشومانو لاس، د لاس اسم تصغير، د لاس چپړ، پنجه او خپړ.

**چاخ** : چاک و چوبند، تکړه، چالاک، چاق، تيار، شلند، مضبوط، غوښن، جمغټ، نيز، تند، بيړندے، ګړندے، جلت، متے، وندے، اوچت، ارمتے، چست.

**چاخه** : ارجل برجل.

**چادر** : څادر، تاځر، ټيکرے، ټکرے، پړونے، پټو، شال، د سړو اوړنے، تمبو، خيمه.

**چادي** : احمق، کم عقل، ناپوهه، بيوقوف، بودلے، ساده، بوده، شادوله، بيړا.

**چار** : کار، کسب، پيشه، مشغوليت، چر، چره، عمل، کړهٔ، سبب، علاج، چاره، تجويز، بند، ترتيب، ذريعه، چاره، ګزاره، بهانه، بجه، چاروناچار، خاپ، ليک، کښل.

**چارالدام** : اودس، چاردام، څلور اندامه وينځل.

**چاربيته** : د پښتو شاعرۍ هغه قسم چې تاريخي يا د مينې قيصې پکښې بيانيږي، تسلسل پکښې هم شرط دے. د چاربيتې سر بيا بيا د هر بند نه وروستو وئيلے کيږي، د بندونو د مصرعو شمير پکښې د ۴ نه تر ديرشو پورې وي.

**چارپاۍ** : څلوربولے، څلورپښے، د څلورو پښو

حیوان، څناور، حیوان، ډنگر، مال، څاروي.
**چارپایه :** حیوان، چارپای، څلور بول، خرپوسي،
**چارچاپیره :** تیر چاپیره، ګیر چاپیره، ګرداګرد، ګرداګرد، خواوشا، شاؤخوا، مشغول، بوخت، اخته، مصروف.
**چارخانه :** یوه مشهوره کپړه، هغه کپړه چې پرې مربع شکل کورونه جوړ وي. هغه کپړه چې دسترخوان او د بسترستنې مخونه ترې جوړولے شي. هغه لوښے چې سکارهٔ، تماکو او ماچس وغیره پکښې ایښوے شي.
**چارخول :** د چرګ چوټے، د چرګ په سر غوښین څونډے، چارخوله، چرګخول، څونډے، پرپره، قرقره، کرکره، چارخولک، چارغولک، چارخوئیل، چارخولے، چارخیله، چارغول، چرخول، چرخولے، چرخیل، جغه، چوټے، چونټے، کلغے، څونکه، خوله، شمله، طره.
**چاردانګ :** ټوله دنیا، ویړه دنیا، درسته نړی، څلور واړه ګوټه، څلور خوا، څلور کنجه دنیا.
**چاردیوالي :** هغه دیوال چې د کور نه ګیر چاپیره وهلے شوے وي. د کور احاطه، د پردې دیوال، چاردیواري.
**چارساله :** د پټواري د جمع بندی کتاب، څلور کلیز، څلور کلنے.
**چارسُو :** دوه سرکونه چې یو بل په زاویه قائمه پریکوي، څواره، څلور لارې، چوک، څلورمخے، چارراهي، د څلورو لارو د تقاطع نقطه، چلیپا، چوق، وستل، څلور ارخیز ځاے، چرته چې څلور لارې یو ځاے کیږي، هغه ځاے چې څلور لارې ترې بیلیږي، چوګله، د اور بلولو وړه کوټګی. ډبه.

**چارشنبه** : د هفتې پنځمه ورځ، شورو، د نهې او زيارت تر منځه ورځ، پنځم، شروع، پنځمه ورځ، اخره.
**چارک** : د سير څلورمه حصه، د گز څلورمه برخه، يو په څلورمه، څلورمه، پاؤ.
**چارگل** : ټيک، غټ پرې دار ميخکې، د ښځو د پوزې کالې، پزغمې، خلې.
**چارمغز** : اکوړ، چارماغ، مټک، غوز، غز، جوز، اوغز، څلور قسمه مغز چې طبيبان ئ اکثر په دوايانو کښې استعمالوي.
**چارميخ** : هغه سړے چې د زکام له کبله ئ سينه نښتې وي. تر خلې ډک، اغير، غړيک، د څاروو يو قسم بيماري چې پرې راشي نو وابنۀ نۀ شي خوړے، هغه څوک چې په څلور اندامه (په دواړو لاسونو او پښو) او په څلورو موړو ترلے شوے وي، يعنې هر اندام ئ بيل بيل ترلے شوے وي.
**چاروناچار** : مجبوراً، خامخا، اورومرو، په زړۀ ماتي، په مجبوري، په بې وسى، کام ناکام.
**چاروے** : څاروے، چارپائ، چارپايه، چادر پشي.
**چاره** : عمل، کسب، فعاليت، بند، بندبنا، مرسته، چل، پيشه، مشغوليت، چار، کار، چره، لاره، چر، کړده، انتظام، بندوبست، پروگرام، تدبير، منډه، زغل، څغاسته، څغل، تاخ، تاخت، ونډه، د ډنگرو دپاره تياره کړې شوې خوراکه، شنه او وچه گياه.
**چارې** : د وسپنې نه جوړه يوه آله چې د زميداري او نور قسمه کارونه پرې کولے شي. ډل، بيلچه، ينگه، نجه، پوړى، ډمبه، څلور غابښے پسۀ، دوه کليز پسۀ، دوه کلنے گډ،

**چارې** : لارې سره د لاحقې په طور استعمالیږي لکه لارې چارې. د چاره جمع.

**چاړ** : د چمیار هغه قالب چې د پښو او پیزار جوړولو په کار کښې استعمالیږي. د بړستنې استر.

**چاړا** : د وئیلو او اوریدلو نه محرومه، نیم ژبے، هغه څوک چې واضحه او صفا خبرې نۀ شي کولے، اروړ، ګونګ، ګنګ، ګونګے، بې خلې او بې ژبې، چاړه، ناپوه، کم عقل، احمق، شادوله، ساده، بیړا.

**چاړۀ** : د وسپنې هغه پترے چې یو اړخ ئې تیرۀ وي او ورته د لرګي یا هډوکي لاستے لګیدلے وي. د ځارو حلالولو، غوښو پریکولو او نورو ډیرو کارونو دپاره استعمالولے شي. چاړو، چوړو، چړه، ستاوه، ستوه، چوړو کی، پره، ترازه.

**چاړے** : ګونګے، چاړا، په تته ژبه خبرې کونکے.

**چاشت** : څاښت،

**چاشني** : ناشتا، ناشته، څکه، څکنه، هغه خوراک چې د ډوډۍ نه مخکښې خوړلے کیږي، څکه کتنه، خوارۀ کتنه، مساله، یوه پنجه ساز، کم ساز، ډیر لږ ساز.

**چاغ** : تیار، مضبوط، څورب، شلند، جغمټ، مزے، تکړه، روغ رمټ، تازه، د روغ بدن خاوند، تیز، چست، چاخ، چابک، شور زوړ، څیرې، چاک، دړې، دړې شوې لرګے.

**چاغل** : د اوبو لوښے، بتک، بتکے.

**چاق** : څورب، تکړه، تیار، غټ پټ، غوښن، تندرست، روغ رمټ، جغمټ، چاغ، صحت مند، تازه، شلند، مزے، چاؤد، درز، رخنه، تیز، تند، چابک، چست، چاخ.

**چاقو** : هغه تیغ چې د ختکي او هندوانې وغیره پریکولو میوو سپینولو او نورو کارونو کښې پکار راځي. هغه تیره آله چې پلکے او لاسکے ئې یو هومره وي. چاکو، چکو، چقو، چکي، چکے، کاچو.

**چاک** : زخم، شلیدون، شګاف، چاؤد، خصوصاً د قمیص شاک، چود، درز، چوک، څیر. د چونې نه جوړ د ګوتې هومره پنسل شان چې په مدرسو کښې پرې په توره تخته لیکل کولے شي.

**چاک چاک** : ټوټې ټوټې، سورے سورے.

**چاکري** : ملازمت، خدمت، نوکري، خدمتګاري.

**چاکسو** : چکښو، څښکو، جوخشو، څابنکو، یو قسم یوناني دارو، یو قسم تور تخم چې د ستر ګو دارو کښې استعمالیږي.

**چاګل** : د اوبو وړو کے مشک، د اوبو وړو کے ګوډې، د اوبو وړو کے ژے، بتک، د څرمنې یا کرمیچ تیکه، چاګله.

**چال** : فریب، مکر، دو که، تګي، چم، چل، تګ، رفتار، یون، حرکت، طرز، ډول، طریقه، سلوک، رویه، عادت، د اس رفتار، د شطرنج په لوبه کښې ګیټی د یوې خانې نه بلې خانې ته کونه، د لوبې مهرې خوځونه، د تاش وړومبی پانه ویشتل، چال چلن، طریقه، کار، فعالیت، قبے، استغراق، تار، سپنسے، هنر، څیرکي، چالاکي.

**چال** : کنده، کوتے، قوتے، قوتی، ژور ځاے، کومے، ګوګ، د خلې ګوګ. هغه اس چې سره او سپین ویښته لري، چنے، غوچائے، د جولا دکان، ځاله، منځوله، زرکه، زاغاوے، د هیلی په شان یو مارغه.

**چالاک** : مکار، چل باز، ټګ، مکرژن، فریبي، دوکه باز، چتیس، چم باز، چلولي، فریب کار، کلنکار، کلاتکار، اتکلي، چتېک، چست، تیز، تند، چابک، چاخ، پوه، ذهین، هوښیار، کاغ، فعال، تکړه، رغارېز، آفت، د خبرو مرنی، نهٔ ویریدونکی، زر زر او په تادی خبرې او کار کونکی، خبر لوخ.

**چالان** : جاري، روان، چالو، فعال، روان دوان، په سفر کښې شروع شوی، پروانه، سمن، بیجک، د سامان یا رقم رسید، د استولي شیز رسید او فهرست، د روپو رسید، راداري، راهداري، اجازت نامه، چالن، د یوې محکمې نه بلې محکمې ته استونه، د تحقیقات نه پس عدالت ته د ملزم روانګي.

**چالباز** : ټګ، دوکه باز، دوکه مار، چمباز، چلي، چلناک، تیر ایستونکی، چال کونکی، چالاک، هوښیار، عیار، فریبي، چل ولي.

**چال چلن** : طور طریقه، خوئ خصلت، عادت، د وسیدو انداز، چارچلند، چال چلند، چاله، رنګ، کړهٔ وړهٔ، رنګ ډنګ، اخلاق، سلوک، رویه، راشه درشه.

**چالو** : چلند، چل، روان، بهاند، چالان، جاري، شروع، لګیدلی، ګویا،

**چا له** : چا دپاره، چا ته،

**چاله** : طرز، روش، طریقه، لار، قاعده، اصول، رفتار،

**چامبیل** : یو ډول ور کوتي سپین ګل چې ډیر ښهٔ بوئ کوي نور قسمونه ئ هم شته خو سپین قسم کښې ډیر پیدا کیږي. چامبیله، چمبه، چامبه.

**چالچو پالچو** : اړوکي اړوکي، تهپ، تیپ، تش هلوکي، کمزوری، نری

پیړے.

**چانـد ماري** : چـارمـاري، چلماري، نښې ويشتنه، نشانه بـازي، چرماري، د ټوپک او نـورو وسلو په ګولو سره د چا وژل، د فـوځيانو نښه ويشتل، د نښې ويشتو پريکټس.

**چانډي** : روجـائـے، د غـالی پـوښ، د قـالينـي پـوښ، روي کـش، روي پـوښ، هغه ټوکره چې پـرې بستـر، قـالين او نور ځيـزونـه هـواريږي. يو سپين دهـات چې کالي او روپۍ ترې جوړيږي، کم اصل زر، سپين زر، سوچه، پاک، نينوليے، کره، بې عيبـه، بې وټـه، بې غشـه، صـادق، سپيځلے، سپين زرے، خالص.

**چانک** : چـائينـک، هغـه لـوښے چې پخې چاۍ پکښې اچولے شي.

**چانکے** : د چـانـک اسم تـصغيـر، وړو کـے چائينـک، نلی.

**چانے** : ورچـانـے، بهـر، بيرون، ورچنـ

**چاڼ** : سـوره، ستره، صاف شـوے، پـاک شـوے، پاک، غـلبيـل شـوے، کـره شـوے، غـلبيـل، ، چـڼـونـے، څپڅپے چـج، لـټـون، تلاش، غوښتنه، خوښونه، انتخابونه.

**چاڼول** : سـوتره کول، کره کـول، پـاکـول، صفـا کول، غلبيلول، چڼول، زنځول،

**چاڼه** : هـغـه ورکـوټے چاڼ چې تيـل، چاۍ يا غوړي ترې چـاڼـولے شـي. چاڼے، چاڼی، هـغـه واړهٔ لرګي چې د تيرونو او برګو دپاسه ګڼ ګڼ اچولے کيږي،

**چاڼيدل** : چـاڼ کيـدل، چـڼيـدل، سـوتره کيدل، صفا کيـدل، کـره کيدل، پاکيدل،

**چاوډ** : چـاک، چـود، چـودون، درز، شګاف، چاوډون، څير،

**چـاودے** : تـړ کيـدلے،

چـاودلـے، چې درز ئ کړے وي.سوړے، چاؤدلے، چاود، چاک، درز،

**چـاول** : د اوبـو مـوری، د اوبو خلهٔ، د اوبو ورخ، د اوبو دانـه. د ګلکارانو هغه آله چې پـه تـار کښې زوړنده وي او د لـګيـدلـو خښتـو سـمـون او نيغوالے پرې برابروي، شال، سال، ښال، شاول، شاقول.

**چـاولی** : چـوبـی، فـوځي کوټ یا قلا.

**چاه** : کوهے، کويے، کوے.

**چایځ** : چـاے، چـے، چي، یو قسـم پانړې چې ګوړې یا چينو او پيو سـره پـه اوبـو کښې پـخولے او څښلے شي. تورې او شـنـې دوؤ رنـګـونو کښې پيدا کيږي.

**چـائيجوش** : هـغـه لوښے چې چایځ پکښې پخولے شي.

**چبنې** : غوړ او تر خوراکونه، چـنـې چبيـنـې، د خـوراک خـزونه، ترسکون خوراکونه، چبين.

**چپ** : بـې لارې، خطا، غلط، سپـک، بـد، ضـد، مـخـالف، کين، ګس، اړولے، د ښي ضد، اپوتـه، بـغير، بې له دې، کوږ، راکوږ، کـوکـی اخستل، مچه اخستـل، ښکلول، څپ، چپـه اخستنه.

**چُپ** : غـلـے، خـامـوش، ساکت، چوپ، پټه خلهٔ، چپه خلهٔ، بې اوازه، بې غږه، فعل امر غلے شه، خاموش شه.

**چپاتی** : هـغـه وړه سپکـه، ګرده او پـلـنـه روټـی چې پـه تبخـي يـا تـنـور پـخولے شي. پـنـجـابـی روټـی، څپـاستے، څپتـے، چپاتے، پاستی، چپيت، کلچه.

**چپاؤ** : لوټ مار، يرغل، تيزه حمله، چاپه، چپه، د حملې په وخـت کښې تيز تګ، ناڅاپه حمله، برباد، بر ګ اس، بيور اس، هغه اس چې پټې پټې او بر ګ بروګ وي.

**چپ چاپ** : قلار، خاموش، غلي، دم بخود، دم په خود، ارام، په پټه خلهٔ.

**چپر** : څپری، څاله، چوپړی، کوډی، ساله، سوله، څپر، جونګړه، جومپړی، خونه، د وښو او پتری نه جوړ شوي دالان، د لوخو او کیانو کچه جونګړه.

**چپر کټ** : څپر کټ، د نوارو کټ، د پټو کټ.

**چپر کي** : ځیلانګه، ځیلی، وړه څانګه، د وني نه را پریکړې شوې وړه څانګه.

**چپره** : د څرمنې د پاکولو رمبې.

**چپړاخه** : چاپیړه، چپلاخه، څپیړه، تتوړه، چپړاکه، څپلاخه، څاپیړه، څپړه، چاپړاخه.

**چپړاسي** : خدمتګار، پیاده، چپړاسي، خادم، ملازم، امربر، هغه نوکر چې د دفتر کار کوي.

**چپړ تاخ** : چیندرو، چندرو، چپړبخ، چغی، چیندری، موږخی، چپړدخ، جنت او دوزخ، چیتی، تمبی، د ماشومانو یو قسم لوبه، د زنانوؤ اندام نهاني تحقیراً.

**چپروس** : خوشامندګر، خوشامدګر، خوشامندي، غوړه مال، چاپلوس، تملق، چاکلیتي.

**چپل** : خیرن، خچن، ګنده، چپلکه، کیړی، څپلکه، سرپاني، چوستکه، چپاتي، چپاته، یو قسم سپک پیزار.

**چپلی** : څپلی، یو قسم پیزار.

**چپو** : د بیړی چپه، سینګاوڼ، د کشتی چلولو چپه، د بیړی چلولو څپه، ډنګری، چپاؤ، تیری، حمله.

**چپ و راس** : ښي او ګس، ښي او کین.

**چپه** : کوکی، مچه، مچو، مچکو، مچکه، چومی، بوسه،

چپی، پپه،
**چپه :** حرکت، تیله، موج، لهر، چپاؤ، څپه، غولی، څانګیدۀ، اعصابي حمله، د ناروغی حمله، پیریان راتلل، میرګي، غوټه، شیبه، لږ ساعت، د کوټې د موری لرګي، چجه، اپوټه، پړمخ، سر د لاندې، نسکور، سینګاوڼ، تامبیرے، د بیړی راشپیل، د عوّ دی، چاپه، د غنو پړلی
**چپې چپې :** په چپو چپو، لړی لړی، اوښان اوښان.
**چپیړه :** څپیړه، تتوړه.
**چپی :** کوکی، پپه، خلګی، مچه، چپه، څپه، چومی، بوسه،
**چپے :** چپ سترګے، چغر، چنګر، کوږ سترګے، بینګا، ګسځے، کین لاسے، هغه غوئے چې ښکرونه ئې شا ته کاږۀ وي، هغه غوئے چې ښکرونه ئې مات وي.
**چت :** تیټ، غنډ کړے، لنډ کړے، چدړے، تیټ کړے، چیت، تش، پوچ، خالي، نالائق، نالائقه، تشوکړے، کنځل مار. د کوټې پوخلے برخه، د کوټې د غولي مقابل طرف، د پټ شوې بام هغه برخه چې د کوټې خوا ته وي. د کوټې هغه برخه چې دیوالونه او فرش ئې پټ کړے وي. کابس، سقف، پوړ، سرل د بهرده خرې، چتبې، هوائي.
**چتر چتر :** چترې نما پیکرے، اوربل.
**چتری :** له بارانۀ او د نمر د ګرمی نه د سر د بچ کولو دپاره وړوکے او لاسکے لرونکے سائبان، د کپړې جوړه یوه آله چې په هوا کښې له جهاز نه د رادانګلو او زمکې ته د راکوزیدو دپاره پکارولے شي. پیراشوټ.
**چته :** پام، فکر، سوچ، اند، خیال، قیاس، حواس، ځان

ساتل، حد، اندازه، انساني او اخلاقي حدود، ګبين، د ګبين وړې، د ګبين څپاکه، د ډومبکې، د مچو تمبکه، رنګ، څېره، سرپوښه بازار، سرپټې بازار، پوښلی بازار.

**چتيز** : منزل لرونکې، پوړيز، چتونه، ګڼ چتونه، هغه منزل چې ګڼ چتونه لري.

**چتې** : پرى، ټاپرى، موړه، ډبه، مچان، درې، دونکاچه، د لرګو وچته دنکاچه، مچان يا ټاپرى چې په کوټه کښې د سامان او لوښو لرګو کېښودو دپاره جوړه کړې شوې وي. په ټرک کښې د ډرائيور د سيټ نه بره ځاى چې د ټرک آلې پکښې ايښوې شي.

**چټ** : غريب، ملنګ، خوار، ږيره خرئيلې، ږيره کل کړې، تباه، برباد، نابود، لونډ، کاسير، بدعمله، بيکاره، ټپ، تيار، چټک، خلاص شوې کار، پاى ته رسيدلې کار، بيخي، بالکل، ګرسره، تمام. د سپي د خوراک لوښې، کودى، کپړ، هغه لوښې چې د لوښو وينځلو په وخت پکښې ناولې اوبهٔ اچولې کيږي. جره سړې، بې ښځې سړې، مست او ازاد سړې.

**چټاک** : چيټاکى، د پاؤ څلورمه برخه، چيټاک، پنځهٔ تولې وزن، چيټاکې، کم څيز، لږ څيز، لږ شے.

**چټاکى** : وګورئ چټاک.

**چټان** : هغه کانړې چې اور پرې بلولې شي.

**چټ پټ** : سمدستي، فوراً، سم د لاسه، زر تر زره، بيخي تباه شوې، برباد شوې، له منځه تللې، تمام شوې، خلاص شوې کار.

**چټپټي** : سمدستي، فوراً، سم د لاسه، د واره سره، تيار، چمتو، اماده، هغه څوک چې په هر کار کښې انديښنې او په زړهٔ کښې کرل ريبل نهٔ

کوږ، تو کلي.
**چتک** : چست، چاق و چوبند، چسپانده. ارمتے، خپوسه، چست چالاک، ګړندے، تیز، متے، وندے.
**چتکنے** : چتخنے، بولټ، چیتکنے، د ورهٔ زنځیر، موتی، موتے، د تورې موتے یا موتی، زلنی.
**چتکه** : د الوان کپړه، د سور تو کي توته، سره کپړه.
**چتکې** : ترینګلی، ترینګړی.
**چتکی** : چوتی، چوتکه، ځړی، بوتکه، جتکه، د هندوانو د سر ورړدهٔ ویښتهٔ، غټه کونځی، غټه کمځی، سکونډکه، سکونډاره، نو کاره، چیچنه.
**چتل** : ککړ، ناولے، سخا، ناپاکه، مردار، خیرن، پلیت، ګنده، خوسا، ختک، توک، چنګل، د ځیلمې، په غونډه، توک یا په یو ځاے خرځول، د چوک او پرچون ضد. یک مشته، په یو ځاے، تول. ختل.
**چتني** : چکني، چکني، چتني، چقني، هغه تروه او ترسکونه خوراکه چې د تماترو، پودینې، شنې دنیا هوړې، مرچکي او داسې نورو څیزونو نه جوړولے شي.
**چتو** : د لرګي لنګری، بغری، برغی.
**چته** : ډیرے، دلی، ګواته، پړه، امبار، د ښنتو مربع، ډیرې ښنتې په یو خاص ډول او ترکیب لګول، د ښنتو یا ګتو ډیرے. سود کول، سودخورې، یو قسم جوارې.
**چته** : مسته او بیباکه ښځه، ازاده ښځه، رسیدلې او مسته پیغله، د پیغلې سره د صفت په تو ګه راځي لکه چته پیغله.
**چتې** : عبث، فضول، اوباش، خوشے، کوته، مضر، ضررې، ضررناک، بې فائدې، بیکاره،

تروټه، تاوان، هيڅ بې هيڅه، اواره کردي، قلاشي، ازادي، ايله کردي.

**چتي رسان :** ډاکي، ډاکيه، ډاک راوړونکے، پوسته رسان، خطونه وړونکے راوړونکے.

**چتيات :** فضولې، عبث، پوچې، بې معنې خبرې، اپلتې، پرتې، ارتاويزې، خرافات، پوچ ګوئي، سپکه خلهٔ خوځونه، واهيات، عبثيات، بې فائدې، بيکاره، فضوليات.

**چج :** د دروزې، کيانو، تيلو يا بانس نه جوړه شوې د غلې د څپ کولو آله، چاڼ، چڼونے، چيچ، څپڅپے، پرويزے، پښتي.

**چجکے :** د نچو او کيو نه وبدلې پرده چې دروازو او کړکيو ته ځوړندولے شي. چک، چيک، پرده، بيتر، دروے، پرده، هغه وړوکے څپر چې د کوټې دپاسه جوړ شوے وي. لټ، دام، پړکه، تلکه، د مرغو او کبانو نيولو جال، د نل په شان نيغ او نرې لرګي چې د کوټو او برنډو په لهرو د چاڼې په ځاے اچولے شي.

**چجګر :** چج جوړونکے او خرڅونکے، پرويزے جوړونکے.

**چجون :** د غنمو پيمانه کونه يا تلل،

**چجه :** د چت هغه حصه چې د ديوال د حفاظت دپاره بهر ويستے شوے وي. د بام وزر، بلې، د مار د سر وچت نيول، د کبانو نيولو د لرګي دام، هغه لرګي چې د ماټ شوې هډوکي ګيرچاپيره لګولے شي. پښتي، شپول، غرور.

**چختاړ :** چختاڼ، چيت پيت، د پښو لاندې شوے، لتاړ، خړميچ، چيت شوے، چخچريت، پائمال، چخې شوے، د پښو لاندې مبتلے شوے،

**چختک** : کوهي کن، هغه سړے چې د کوهي یا کاریز په تل کښې کار کوي، دوه ښاخے میګوړے، دوه ښاخے موږے.

**چخچے** : نرے لرګے، د لښتې وړه ټوټه، خس، د نرې لښتې ټکړه.

**چخړبه** : د باران له کبله د زمکې ختمه کیدل، ختې، چقړې، چیکړې، چکړ، ملغوبه، چقړوبه، ګډوډ شوے څیز،

**چخنې** : پائمال، مبتلے، ګوښمال.

**چخه** : پخه، لږ څیز، لږ مقدار. زخه، هغه تور رنګ لرونکې وړه دانه چې سر ئ اړې اړې وي او د وجود په بیلو بیلو برخو راخیژي.

**چخې** : د سترګو ګند، د پوزې ګند، د سپي د شړلو اواز، لرې شه، ورک شه.

**چخے** : وړوکے ماشے. هغه څوک چې په سترګو کښې ئ چخې وي، چخن،

**چدام** : لږ کوټې، لکوټې، لږ څیز، لږ شے، د یوې تولې اتمه برخه، یو قسم زړه سکه، درهم.

**چراغ** : ډیوه، څراغ، د رڼا کولو آله.

**چراغان** : د جشن یا خوشحالی په شپه ډیرې زیاتې ډیوې یا د بجلی بلبونه د ښائست زیاتولو دپاره لګول.

**چراګاه** : څر ځاے، څړ ځاے، د څرن ځاے، د ګډو بزو او نورو څاروو د څرند ځاے،

**چرائي** : د لرګو د څیرلو او ماتولو مزدوري، د لرګو د ماتولو کار.

**چرب** : غوړ، هغه څوک چې په عیش اوعشرت کښې ژوند تیروي. څورب، په وجود دروند.

**چربانګ** : په سحر کښې

د چرګ د بانګ وخت، د
سحر وخت، د پیشمني وخت،
د شپې اخري پار، د شپې
اخري برخه، چربانګے. ډیر
ویونکے، خبرلوڅ، سخن ساز،
فضول او عبث خبرې کونکے.
**چربي** : یوه سپینه ماده چې
وجود کښې د ویني او غوړو
مادو په وجه جوړیږي، وازده،
وازګه، شله، غوړوالے.
**چرت** : فکر، تصور، خوش
طبعي، مزاج، طبیعت، بڼۀ موډ،
مزه، پرکالي، پرمیخي، د خوب
معمولي جوټه، د سترګو
رندیدنه، اټکل.
**چرته** : څیره، بڼه، شکل،
کوم ځاے ته، چرې، استفهامي
مکاني ضمیر.
**چرته چرته** : کله کله، یو
نیم ځاے، کله خو، کله نا
کله.
**چُرتي** : خوش طبع، فکري،
په چرت کښې، اندیښمن، په
خیال کښې، په فکر کښې
ډوب.
**چرچا** : اوازه، شهرت،
مشهورتیا، نیک نامي، نوم،
چرچه، افوا، عیش عشرت،
مزه.
**چرچړے** : کړتو، کړتن،
قړتن، عبث او فضول خبرې
کونکے، فضول غږیدونکے،
چرچرک.
**چرچن** : چرچنک، چن
چن، د خالي ورځ، اول سبق،
**چرچنه** : یو وړه خړ رنګې
مرغۍ چې د چن چن اواز
کوي، چرچره، کوټواله،
چنچنه.
**چرچوبی** : د لمبلو ځاے،
غسل خانه، چمچوبی، تشناب،
چارچوبی.
**چرخ** : اسمان، فلک،
دور، زمانه، ګردش، څرخ.
**چرخولک** : چارخول،
چارخوله، چارخولک،
قرقره، څونډے، د چرګ د
سر څونډے،

**چرخه** : د سپنسو غښتلو آله، څرخه.

**چرخې** : څرخه، چرخه.

**چرخۍ** : د سپنسو غښتلو آله، څرخه، چرخه، هغه لرګے چې د ګوډۍ تار ترې تاوولے شي، د بوټ غړلو آله، ګرځنے، چابۍ، څرخ، د کوهي نه د اوبو رايستو آله، د ضرب نښه.

**چرس** : حشيش، د چاټ شوۀ بنګو ګرده، هغه ګرده چې په چيلم يا سګرټ کښې څښلے شي.

**چرسي** : د چرسو عملي، چرس څښونکے، هغه سړے چې چرس څښي، په چرسو اموخته، کاواک.

**چرغ** : د تپوس په شان يو سپين رنګ لرونکے ښکاري مارغۀ، ملاماتے، چرخ، چرک، چرګ.

**چرکين** : ګنده، پليت، ناپاک، خيرن.

**چرګ** : يو قسم کورنے مارغۀ چې غوښه ئې خوړے شي. صحرائے چرګ، هغه چرګ چې په صحرا کښې الوځي، لوئيټ، بيګر، چرغ. هنر مند، کاريګر، قابل، هوښيار، کاغ.

**چرګ بانګ** : چرګ بانګے، پيشمنے، پيشنمے، پړشمے، د سحر اغاز، چرغږ.

**چرګند** : څرګند، ښکاره، معلوم،

**چرګوتے** : چميکے، د چرګې بچے، چرګوړے، سيسوړے، وړوکے چرګ، د چرګوچے، چرګيړے، چومکے.

**چرګوړے** : وګورئ چرګوتے.

**چرګه** : يو کورنے مارغۀ چې اګۍ او غوښه ئې خوړے شي، د چرګ مونث.

**چرګۍ** : هغه څلور کنجه

نغرے چې د کوټې په منځ یا
کونج کښې جوړ شوے وي،
انغرے، د نغري نه ګير چاپيره
تاؤ راتاؤ موړه.
**چرګے** : بې شرمه، بې
وعدې. برګ بروګ، هغه
ځناور چې تندے ئې سپين وي.
**ځرلټ** : ګرسره، قطعي،
چورلټ، ټول، سراسر، بالکل،
تمام،
**چرم** : خرمن، پوستکے،
پوست، پوټکے، پوټخے
پوټ.
**چرمباز** : د غوبل اخري
غوئے، خرمباز، ترمباز، پلوے،
هغه غوا چې نران سخې
راوړي.
**چرمښکې** : شرموښکې،
چرمښې، خرمښکې، کربوړے،
**چرلې** : د بورې ټوټه، د
بوجې ټوټه، د ټاټ ټوټه، زل،
د ګونې ټوټه چې بزګران
پکښې ساګ يا واښهٔ اوړي.
ډېره خبر لوڅه جينۍ، نيغکۍ،
قړتنه، وړه جينۍ، کوچنۍ.
**چره ئيز** : چريدار ټوپک،
چرئيز.
**چرې** : وګورئ چيرې.
**چريدار** : چرې لرونکے
ټوپک، چرئيز ټوپک، هغه
ټوپک چې چريدار کارتوس
پرې خلاصولے شي.
**چريکار** : بزګر، مزدور،
دهقان، شريک کار کونکے.
**چړ** : درويزه، ټوک ټولونه،
خير غوښتل، ګدائي کونه،
وظيفه ټولونه، وزيپه ټولونه،
**چړائي** : مخ په پورته او نيغه
ختلې لار، وچته، پيچومے.
**چړچقې** : د چړکې هغه
اوازونه چې د اګې اچولو نه
وړاندې وروستو کوي، د
زړکې اوازونه، نارې سورې،
چغې، چړچقو.
**چړچکې** : چکې چکې،
تاړې، لاسونه ټپول، تاکې
وهنه، چکې.
**چړچوبې** : غسل خانه، د

لامبلو ځاے، چارچوبي، سقاوه، چرچوبي، چارچوبي، تشناب، تنگ کور، تنگ ځاے، چارسو.
**چرکاؤ :** چنکاؤ، د دوړو کښېنولو په غرض نرۍ نرۍ اوبهٔ شیندل، د اوبو پاشل، اوبهٔ شیندنه، ترمکیا، ترمکه، ترمکا کونه.
**چرګر :** خیرمار، درویزه، فقیر، چرمار، سوالګر، چړي، سوالي، چړؤ، ګدا،
**چرګے :** پایاؤ، پایاب، په دریاب کښې هغه کانیز ځاے چې لږې لږې اوبهٔ په کښې بهیږي.
**چړوس :** بې همته، خړوس، پست، بې شرمه، بلسرے، ډېر زیات شوم.
**چړوکی :** وړه چاړهٔ، چوړکی.
**چړي :** چر کونکے، وظیفې ټولونکے، چرګر، چرمار، خیرمار، سوالګرے، چفے، طالب.
**چړیاګر :** هغه ځاے چې قسم قسم ځناور او مارغان پکښې د تماشې دپاره ساتلے شي، باغ وحش، ژوبن.
**چسپان :** چست، چالاک، تنګ، هغه جامې چې په بدن پورې نښتې وي، پیوست، نښتے.
**چست :** چابک، چالاک، ګړندے، متے، چاق، تند، تنګ، رابنکلے.
**چستان :** چیستان، معمه، دوړه، دوړه.
**چستي :** تیزي، تندي، چابکي، چالاکي، ګړندے والے، متے والے، چاقي، حصه، برخه، ټوټه،
**چشم :** سترګه، دیده.
**چشم پوشي :** سترګې پټول، لیدل او غرض پرې نهٔ کول، ځان ناغرضه کول،
**چشمې :** هغه آله چې د بنیبنې یا مسالې نه جوړه وي، د

کم نظر دپاره، سترګې د نمر نه د بچ کولو او د ډول دپاره په سترګو لګولے شي، عینکې، چشمکې.
**چغار** : د مرغو اوازونه، چغا،
**چغانه** : سرینده، سارنګي، سرنده، سارنده، سارنګا، د موسیقۍ یوه آله، غجکه.
**چغو** : بینګا، برینګا، بټ سترګے، کوږ سترګے، هغه انسان یا حیوان چې د سترګو توازن ئې په ځایے نۀ وي.
**چغربه** : شور او غوغا، شور زوږ، غلبله، دپکه، دپکه شپکه،
**چغل خور** : د دروغو خبره چا بورې ترل او بل ته ئې رسول، چغلي مار، چغلګر،
**چغل خوري** : چغل ماري، اوږنه راوږنه، شیطاني کونه.
**چغلي** : پسې شا خبرې، غیبت، چغل خوري، شیطاني، چوغله.
**چغه** : کریکه، کریغه، نعره، کوکه، غبږ، ناره، وچت اواز، هپه، تیز اواز، په چا پسې په شریکه وتنه، غلو یا ډاکوانو پسې د خلقو وتنه.
**چقړه** : چیکړه، چکړه، ختټه، چکړاؤ، ککړه، د چرګې نارې، د زرکې نارې، ققړه.
**چقندر** : د ټیپرو یو قسم چې چینې ترې جوړولے شي، چغندر، جوغندر، لبلبو.
**چقول** : چتي کول، چیتول، چیت پیت کول، وهل ټکول.
**چک** : هغه د سمیټو او باجرې نه جوړ ګول حلقه چې کوهے پرې پخولے شي، هغه لرګے چې د کوهي د مضبوطولو دپاره د کوهي په تل کښې ایښولے شي او دپاسه پرې دیوال خیژولے شي. د کیو، کجورې یا د نل نه جوړه پرده چې دروازو او کړکو ته ځوړندولے شي، پرده، چق،
**چک چکه** : لاسونه ټکونه، لاسونه پرقونه، لاسونه وهنه، تاړي، لاسونه پړ کول،

چکچکی، چکچکې، چاکې، چکې

**چکر** : دایره، حلقه، سیل، هواخوري، د باندې گرځیدنه، سر گرځیدنه، گردش، تاویدل، گرځیدل، لیونتوب، بادساري، داو، دور، غونډ سرک.

**چُکس** : عیب، نقص، نقصان، نکته، خو، تک. عیب لټول، په یو څیز کښې خو راویستل.

**چکښو** : څکښو، څښکو، څاښکو، د یوې یوناني دوایي نوم.

**چککلی** : د ارټ څرخ، چکله،

**چکن** : هغه کپړه چې په ستنه پرې گل بوټي جوړ شوي وي. د ستنې کار،

**چکناچکنی** : یو قسم جوړه مارغان دي چې یو نر او بل ښځه وي د ورځې یو ځاي خو د شپې د یو بل نه بیلیږي. سرخاب، سره هیلی، چکوا چکوي.

**چکني** : څښني، چکنی، جقني

**چکه** : ماسته. چکیده، پتیره پوړې

**چکی** : ښسته، ښکلې، پیمخې، جاغ، به غوښو ډکه، څربه، تیاره. شلنده. د وچې میوې مغز.

**چل** : چل وِل. دروه، دوکه، دام، داو، فریب، حکمت، بنا، هنر، ترکیب، اټکل،

**چلباز** : تګ، دوکه باز، تګي ژن، فریبي.

**چلغوزے** : د نښتر د ونې یو قسم وچه میوه، جنغوزے، جلغوزے، زنغوزے، چلغوزه.

**چلمچي** : هغه لوښے چې لاس پکښې وینځلے شي، لاس وینځونے، لګن، دوشي، لاس ولونے،

**چلن** : عادت، چلند، خوئ، سلوک، کردار، چلند، تلهٔ راتلهٔ، تګ راتګ،

**چل ول** : تګي برګي، تګي

تهوري، دوکې شاکې، مکر، فريب،

**چليپا** : د ضرب علامه، صليب، زلفو ته کنايه چې د صليب په شکل راڅوړندې وي، د صحيح ضد، چوک،

**چَم** : کندے، محله، مالت، ګاونډ، کوڅه، پلو، هغه لار چې د څو کورونو د ديوالونو تر منځه وي. دوکه، فريب، چل، تګي، چلبازي.

**چم** : د ختې هغه مقدار چې په يوځل يوم يا بيلچه کښې اخستے شي، غټه لوټه، سټکورے،

**چمباز** : چلباز، چليګر، دوکه باز، ټګ،

**چمبه** : چامبيل، د رامبيل چامبيل د کورنۍ يو ګل.

**چمبيلي** : يو مشهور خوشبودار ګل چې زيړ او سپين رنګ کښې وي، چامبيل، ياسمين.

**چمتو** : سمبال، جوړ، تيار، ساز، بډوهلے، آماده، تکړه،

**چمچ** : چمچه، څمڅه، چمچی، کاشوغه، سيپی.

**چمچوری** : څمڅکی، د چيندخې بچے، چمچری، چمچورکی.

**چمچه** : څمڅی، څمڅه، کاشوغه، سيپی.

**چمړه** : چرم، څرمن، پوستکے، پوست، پوټ،

**چمغړک** : مری، د مری هډوکے، د غړندي هډوکے، چنغړک، چينغړک،

**چمن** : هغه هوار ميدان چې کبل او واښهٔ پکښې راشنهٔ شوي وي. هغه ځاے چې ګلونه لري او خلق ورته د سيل دپاره ورځي،

**چمنی** : مګ، دودخانه، لوګي خانه، روشن دان، د نغريِ يا انګيټي د لوګي وتو لاره،

**چميار** : هغه څوک چې څپلی جوړوي، چميا، موچي، څميار، بوټ دوز، پينه دوز.

**چنار** : يو قسم ونه چې ډيره

نیغه او دنګه خیژي او لرګي ئ په ابادو کښي پکارولے شي.

**چنچنه** : چرچنه،چنچنه، یو خړ رنګې مرغی چې اکثر په کورونو کښې جالې اچوي او بچي راوړي او هر وخت چنیږي.

**چندړ** : صندل، چندن، یو قسم ونه چې خوشبویه لرګے لري.

**چنده** : چانده، د خیر ښېګړې د کار دپاره د ګڼو خلقو نه راټولې شوې روپۍ پیسې، د څه اخبار یا رسالې د اخستو دپاره د هغې د میاشتې یا د کال رقم یو ځاے جمع کول.

**چنغله** : چنغاله، کوژدن شوې جینۍ، د چا په نوم شوې، ور کړې جینۍ، نامزده، کویدن شوې جینۍ.

**چنغول** : د چنغلې مذکر.

**چنګاښ** : چونګاښ، کونې کبر، کښې کبر، خارچنګ، سرطان،

**چنګ رباب** : عیش و عشرت.

**چنګړ** : سپک، بدخویه، بدمعامله، موصلے، شاخیل، چوړے، تورپوستے، خانه بدوش، چنګړے.

**چنګڼ** : خانه بدوش، چنګړے، کمینه، کم ذات، خواړے، چوړے.

**چنه** : د کور یا کوټې د دیوال غړے اړخ، د دیوال یو اړخ،

**چنی** : شبنم، سپینه پرخه، هغه پرخه چې د ژمي یا مني په یخنی کښې په زمکه او په ونو پریوځي.

**چنول** : پاکول، صفا کول، چڼ کول، چوڼل، غلبیلول، چاڼول،

**چنولے** : پرویزے، چڼوړے، چاڼ. غلبیل.

**چنه** : د دالو یو قسم چې د انسان د خوراک نه علاوه اسونو ته هم ور کولے شي.

**چنیا** : د ځپلې هغه پټه چې

خپلـې پـرې پښـې سـره مضبوطولے شي،

**چنې** : هغـه هلک چې پـه جـومات کښې د ديني سبق ز ده کـولـو دپـاره وسيږي او د جومات خدمت هم کوي.

**چواره** : خـرما، وچه کجوره، يـو قسـم ميوه، د کجورې پـه شان ميوه.

**چوهل** : ژول، رودل، رول، ژوول،

**چوت** : چيت، د ښځې پټ انـدام، د ښـځې عضو خـاص. چود.

**چوتيا** : مـفـعـول، ګانډو، بې غيرته، بې اعتباره، ناکاره.

**چوټے** : لنک، لـنـګـوټے، وړوکے لنګ،

**چوټ** : بيخي، بالکل، قطعي، کافي، پوره،

**چوټي** : رخـصتي، تعطيل. هـغـه ورځ چې د معمول کار پکښې نۀ کيږي.

**چوچک** : چوچه، چرګوټے، چـرګـوړے، چـچوړے، وړان کارے هلک، شيطان هلک، شوخ هلک

**چود** : چاود، درز، چودے، پراويز، چو.

**چور** : لـوټ، تـالا، هـغه تيره کـاڼے چـې شپانـۀ پـرې د ضـرورت پـه وخـت کښې تاروي حلالوي.

**چورچور** : کـنـډ کپـر، کـنډو کپر، کنډې کونډرې، ډانـګې ډوبل، په نشه کښې مست،

**چورلټ** : ټـول، تـمـام، بـالـکـل، بيـخـي، سـراسـر، سکوټ، ګرسره، کنډ کپر، ټوټې ټوټې، چرچور.

**چورلک** : پيـر، تـاؤ، څرخ، ګردس، دور.

**چورلول** : ګردش ورکول، څرخول، څرخ ورکول.

**چورليدل** : تـاويدل، ګـرځيـدل، څـرخ خوړل، څرخيدل،

**چورماچور** : ریزمریز، ذرې ذرې، توتې توتې، بیخي مات، ریچې ریچې، ریچ ریچ،
**چوره چوره** : ریزمریز، ذرې ذرې، توتې توتې، دل،
**چوري** : میده کړې شوې روټۍ چې پکښې غوړي او خواږهٔ ګډ کړې شوي وي، میده شوې غوړ خوراک.
**چوړ** : چوڼ، د دروازې یا کټ چوڼ یا پونکي. هغه درز یا سوړې چې په لرګي کښې په سولې یا پانه شوې وي.
**چُوړې** : مصلي، مهتر، خاکروب، شاخیل، تک تور، چنګړې، چنګړ،
**چوز** : د باز یو قسم. چکرباز، د ښکار دپاره نوې تیار شوې باز، یو کلنې باز، د باز بچې،
**چوسار** : شرمخ، لیوهٔ. سوان، یو قسم سوان، سیون سوهن، سوهان، سپین توری.
**چوک** : چارسو، د څلورو لارو یا سړکونو یو بل سره د ملاویدو یا پریکولو ځای.
**چوکاټ** : د دروازې هغه برخه چې تمبې پکښې ګرځي، قالب، د ور فریم، اډانه،
**چوکه** : چیکه، چوکتار، چکه، لښته، هغه لرګې چې سر کښې ئې میخ یا ستن وي او غوایان پرې شړلې شي.
**چوکه پوکه** : چیړ چاړ، پچموړې، مخول بازي.
**چوکیدار** : محافظ، څوکیدار، پهره دار ساتونکې، ژغورونکې
**چوکۍ** : څوکۍ، کرسي پیړۍ، د لرګي نه جوړه د ناستې پیړۍ،
**چونتره** : دوتکاچه، چوتره، سوفه، سوپه، ډپه، ډبه، لوړ ځای، اوچت ځای
**چونداره** : چونډۍ،

سکوندهاره، نوکاره، ځکوندهاره.
**چونډی** : دوه ګوتې، د غټې ګوتې او وزیرې ګوتې په یو ځای راټولونه، وار، چونډی نسوار،
**چونګ** : ډیر کم څیز، ډیر لږ څیز، چونګړے، د لپې نیمائي، نیمه لپه، قوده، کوده، موټے، نیم موټے، لږ مقدار،
**چونګاره** : چونډی، ټونګاره، سکوندهاره، په دوؤ ګوتو سره سکونډنه، ځکوندهاره،
**چونه** : اهاک، اهک، هغه کاڼے چې په کوئله کښې ډیر پوخ کړے شي او رنګ ئې سپین شي، د دیوالونو سپینولو دپاره پکارولے شي. کیلشیم کاربونائیډ.
**چونیانی** : پاخانه، غسل خانه، چونیانی.
**چوڼ** : غوریز، غوره، ښهٔ، چاڼ، انتخاب، خوښونه، ټاکنه،
**چوڼل** : پوزه تریوول، پوزه چوڼل، پوزه تروه کول. منتخب کول، انتخاب کول، غوره کول، خوښول، په ګوته کول، چوڼول.
**چوڼیانی** : غسل خانه، چونیانی، پاخانه، تشناب، چارچوبی، چړچوبی.
**چوڼی** : چاؤنی. چاوني، د فوځیانو د وسیدو ځاے.
**چووه** : د چندړو د کورني یو خوشبویه بوټے، غازه، چوه، چووے، چویا.
**چوهاره** : چواره، چوواره، د کجورې میوه.
**چهره** : څیره، شکل.
**چي** : د اسم سره د لاحقې په طور راځي او صفت جوړوي لکه د نندارہ نه نندارچي، یا د ډنډوره نه ډنډورچي.
**چیپړ** : زورلے، مبتلے شوے، چې خپل رنګ ئې بدل کړے وي، غمژن، غم ځپلے.

**چيت** : چپر، چپړ، چپليت، پلن، تيت، تيتې، چيت پيت، د پښو لاندې شوی، چخپيت

**چيت پيت** : چيت شوی، تکول شوی، وهلی شوی،

**چيتول** : چيت پيتول، چپړيتول، پلنول، تکول، چخپيتول، چپليتول.

**چيتاکی** : د پاؤ څلورمه حصه، پنځهٔ تولې،

**چيتی** : رسيد، خط، د کاغذ ليکلې شوې توټه، ليک،

**چيچره** : د خوارې غوښې پيشانی، خواره وازده يا غوښه.

**چيچک** : حقې ننکی، غټې ننکی، پور ننکی، وړې وړې سترګې لرونکی.

**چيچل** : په غاښونو ميده کول، په غاښونو خوړل، په غاښونو پريکول،

**چيرړه** : چرړه، لته، رنجه، ريښه، چيرانګه، د کپړې زړه توټه، زړه ريښه.

**چئيرمين** : د مجلس مشر، صدر، د کرسی خاوند.

**چيړ** : د صنوبر ونه، د نښتر د خاندان ونه. د زخمي شوې پلوسې، خرماني يا الوچې د پوستکي نه راوتې سليښناک مواد چې حلوا ترې پخولې شي او اوم هم خوړې شي.

**چيستان** : معمه، چستان، اړ، دوړه.

**چيلم** : د خاورو يا مسو نه جوړه يوه آله چې پکښې نچه لګيدلې وي تماکو او چرس پکښې څښلې شي، حقه، چلم، سرى، ډډو.

**چيلوکی** : وړه چيلې، بکرى.

**چينار** : چنار، د سروې په شان يوه دنګه ونه.

**چينجن** : چينجو وهلی، چينجو خوړلی، خراب،

سخا، په هره خبره کښې خبره لتهونکے، د قرض په ادا کولو کښې سخت شوم.

**چینجے** : یو قسم حشره چې په اوبو، زمکه بوټو او داسې میوو کښې کیږي او بیل بیل قسمونه لري، چنجے، چونجے، چیمجے.

**چیندخ** : چونګښ، چینډخ، چیندخه، چنګښ.

**چیندرو** : د ماشومانو یوه لوبه چې په زمکه یو څو پرله پسې مستطیلې خانې جوړې کړي د هرې خانې خپل خپل نوم وي. چندرو، چیندری، موخې، چیتی،

**چینګ** : واز، ویت، ارت، خلاص،

**چینګول** : وازول، ارتول، بیرته کول، رورول، په عذابول، ژړول، چنګول.

**چینه** : حپوخی، هغه اوبهٔ چې د زمکې نه راخوټکیږي، نهٔ ختمیدونکے مال و دولت.

**چیني** : شکره، بوره، د چقندرو یا د ګنو د اوبو نه جوړه شوې سپینه او خوږه دانې داره بوره، نبات، د چین ژبه، یو قسم سپے چې جثه ئ وړه وي، چیني سپے، پاپي سپے.

**چیني خانه** : پخوانو کوټو کښې د ختو جوړه الماری چې ډیرې خانې لري.

**چینۍ** : فولادي تیرهٔ شوې سیله چې وسپنه پرې پریکولے شي، قلم، چونۍ، چنۍ.

**چې** : د ربط توړے دے خان له معنیٰ نهٔ لري. د پښتو د حروف تهجي د اتم حرف "چ" تلفظ .

**چیتر** : هندي میاشت، د هندي کال دولسمه میاشت، د پګن او ویساک یا بیساک ترمنځه میاشت.

**چیرته** : چرته، چیرې، کوم خوا، کوم ځاے.

**چیرې** : چرته، کوم خوا،

کوم ځاے، چرې، کوم پلو، کله هم، فرض که، فرضاً، هډو.

**چیړچاړ** : تلخ کلامي، ستغې سپورې، رتې سپورې،

**چیړل** : تنګول، چیړ کول، جنجال کول، ځیړل، خبره شاربل، بلوسل، تېونګه اچول،

**چیل** : پړونے، پوړنے، ټیکرے، ټکرے، زړوکے، د زنانه څادر،

**چیلے** : کچیکے، څیرلے، د چیلی نر، ورغومے.

**څ** : (څیم) د پښتو حروف تهجي د پټمی لسم حرف چې د ابجدو په حساب د "ج" هومره یعنې دري (۳) شمیره لري.

**څا** : کوئیے، کوهے، څاه، څاوو.

**څاپیړه** : څپیړه، چاپیړه، چپیړه، چپلاخه، تتوړه، څپړاخه، څپلاخه.

**څاڅکے** : تڅکے، قطره، لږ، کم، ذره. قدرمني، ګرانښت، مینه لرنه.

**څادر** : تیکرے، پټو، چادر، چیباته، چیبته، چکالے، چکلے، څکالے، پړونے،

**څادر کوټے** : د څادر اسم تصغیر، وړوکے څادر.

**څادر لوندے** : لږ باران، ښورمک.

**څار** : څارنه، لټون، تلاش، مراقبت، ساتنه، څاؤ، نګراني، جاسوسي.

**څاربۀ** : د څرب جمع، غوښین، فربه، غټ، خوشحال.

**څاربښکه** : څربښکه، یو قسم توره مرغی، څارکه،

**څارل** : نګراني کول، په نظر کښې ساتل، سهي کول، په پټه د چا څوکی کول.

**څاروے** : څر کونکے ځناور، ډنګر،

**څابښ** : د قمیص د دواړو لمنو ترمنځه لګیدلې کپړه چې د لمنو پیوستون راولي.

**څابښت** : چاشت، د سحر نه پس تر تنکی غرمې پورې وخت، کچه غرمه، اوله غرمه.

**څاقے** : څابښ، څاق، د قمیص د وروستی او مخکښې جولی پیوند او پراویز.

**څاک** : چاک، درز، نیم سیرے، نیم سرے، هغه درړ چې د سر په یوه برخه باندې وي.

**څالاک** : برابر، چاق، بیدار، چالاک.
**څاله** : اشپز خانه، د پخلي ځای، د اور بلولو کوټه، منډو، خاله، څپر، جاله. باورچي خانه
**څانګ** : ورز، شاه پر، کوڅر، ښاخ، څانګه.
**څانګه** : څرانګه، څانګ، ښاخ، د ونې ښاخ، شاخ، درډ، بریښ، څریکه، اداره، شعبه، برخه، پیغله جینی،
**څانګی** : دري ښاخي، دري غاښي، دري ښاخې.
**څاه** : چاه، څا، کوهے، کويے،
**څپاڅه** : چونتره، دونکاچه، تنګاچه،
**څپان** : د اوبو طوفان.
**څپاند** : چې وهونکے، هغه دریاب چې په موج کښې وي، څپانده.
**څپاڼ** : صف، قطار، لین.
**څپڅپے** : چج، لوے غلبیل، پرویزے.
**څپر** : چوپال، چپر، د لښتو جوړه هغه څپری چې غوانو پسې تړلے شي او غوبل پرې کولے شي، چپه، جاله، د غرۀ په سر هواره زمکه، تړوک، څپرکے، د ډوډۍ تړوکړه، پرانستي لاسونه، څپړ، چپه، موج، غورځنګ.
**څپرغټ** : تنه ور، مضبوط.
**څپره** : چوپال، څپر، چپر، ځیله، ځیلی، منا، څپرګے.
**څپراخه** : چپلاخه، څپیړه، تتوره، چپراخه.
**څپک** : د څلورو ګوتو اندازه، څپق.
**څپلاخه** : چپلاخه، څپیړه، تتوړه، چپراخه.
**څپلی** : کیړی، پیزار، د دروزې، میزري یا مونجو نه جوړ پیزار، د نیزه بازی ګټلو مقرر انعام، د څپر دپاسه اچولے شوے خشاک، تاؤ

راتاؤ، منجیله.
**ځپوتې** : وړوکې څادر، د څادر اسم تصغیر، وړوکې ټیکرے، وړوکې پتهو.
**ځپه** : چپه، موج، لهر، چله. چامپه، د بیهوشی حالت. د کشتی سینګاوې.
**ځپیاکه** : تیپی، توپی، چپکه، پوسه، یو قسم ساګ، پیاخه، ډومبی، د مچو ګګ.
**ځپېړه** : چپیړه، چپلاخه، چپراخه، څاپیړه، څپلاخه، تتوړه، چپوته، چاپړاخه.
**ځټ** : هغه لرګے چې لوهاران ئې په زمکه کښې ښخ کړي او پکښې سندان لګوي. د غاړې د شا طرف، د ورمیږ د شا طرف، شا، د بدن وروستے اړخ. غټ، پیړ.
**ځټک** : څیټک، د لوهارانو یو اوزار.
**ځټکوړے** : لوغ ن لرګے، بیم سوے لرګے، خانه خراب، کوړو ابے منحوس، سپیره.
**ځټکے** : هغه غټ لرګے چې د سوزو لرګو د پریکولو به وخت د لاندي کیښودے شي ګے.
**ځټل** : په څه څیز ژبه بیرږ، په ژبه پاکول، په ژبه صفا کول، فضول خرچي کول،
**ځټل** : چټل، په یو ځاے، توک یا په یو ځاے خرخول.
**ځټ وټ** : ناڅاپه مړ، لګوترق، ټک له ټکه، ټک له واره، ناڅاپه مرګ، بیحي تباه، تباه و برباد.
**ځټوکے** : عوټه، رسولی، دانه، د تندي دپاسه ویښته، بیچکے.
**ځټه** : دوني مونډ، بیخ، ویخ، ګرګه، تنه.
**ځټه** : دوه بوجی، دوه انډیزه بار، بوج، پیټے.
**ځځوب** : څڅیدنه،

ښڅوبې چکک ښکک

**ښـښوبې** ښـخیده
ښکک، ښحول ښعد حسد
چې ښاښکې ښاښ ... په
تري راوځي د د ... ښحـ
چحه پوړه

**ښښول** : ښاښکی ښ ښکي
تویول، بیول، تول، سورزول،
تـویـول، شړول، ښحول، او ښه
ښنځول

**ښـښیـدل** : راپـریـوتـل،
ښاښکـې ښاښکې رالویدل،
توئیدل، نینیدل.

**ښښی** : ناوه، پرناله، تری،
چر، تره.

**ښخو** : ډیر کـم مقدار، لږ
ښـهٔ مـقـدار، لږ غونډې. لږ
ښهٔ.

**ښخه** : تري نه، ښنې، نه، د له
پـــه مـعـنــی کـښــې هـــم
استعـمالیږي. د ملکیت معنی
ورکوي. سره. په قصه کښې.
د لاس لاندې، په قبو کښې.
سره، نږدې، تر ځوا

**ښـراغ** : چـــراغ، ډیـوه،
شمع. شمعه.

**ښراغان** : چراغان، ډیوې
بلوبه، شمعې بلوبه.

**ښرب** : مضبوط، د کمزورۍ
د ښې متضاد، غټ، شلنډ، تیار،
غوښن.

**ښـربښت** : ښـرب والـے،
ښربتیا، د ښربوالي عمل.

**ښـربول** : تیـارول، ښرب
ســاتـل، پـه غـوښـو پـښول،
شلنډول، چاغول، مستول.

**ښـربیدل** : تیــاریدل، ښـه
غـوښه اخستل، مزے کیدل،
مضبوطیدل.

**ښـرخ** : پیـــر، تــاویـدنـه،
چورلک، تاؤ، هغه شے د ښهٔ
پـه وجه چې بل ښیز تاویږي،
مـــحــور، چـورلکـــه، رټ،
کـړکـړے، ښـرخـه، د تورې
زخم، د چړو چاقوانو او نورو
آلـو د تیـرهٔ کولو آلـه، باټ،
ګلډا، نښا، یو قسم مارغهٔ.

**ښـرخول** : تـاوول، پیـر

ورکول، څرخ ورکول، ګرځول، ښورول، تیرۀ کول.

**څرخه** : چرخه، څرخ، اتیرن، څرخکے، څوښه، ډیرن، د لرګي جوړه آله چې ورې پرې وریشلے شي.

**څرخیدل** : تاویدل، چورلیدل، پیرونه خوړل، ګرځیدل، واپس تلل، دوباره وار راوړل.

**څرک** : نښه، درک، پته، سراغ، د نمر د رڼا کرښه، رګ، داره، زک.

**څرګند** : ښکاره، واضحه، صفا، په ډاګه، ظاهر، جوت، بلنګ، معلوم، اوڅار.

**څرګندول** : ښکاره کول، ظاهرول، معلومول، بربنډول، برمنډول.

**څرګندیدل** : جوتیدل، ښکاره کیدل، ظاهریدل،

**څرمښکی** : چرمښکی، چارمښکی، پانتوپیسه، څرمښی، کربوړے.

**څرمن** : پوست، پوستکے، پوټ، چمړه، پخه، پټ، دوړی، ژوون، پوخ او رنګ شوے پوستکے.

**څرونده** : چرونده، څریدونکے، څر کونکے، هغه څاروے چې څر کوي.

**څرنګه** : څۀ ډول، څنګه، څۀ رنګه.

**څرول** : څاروي د څر دپاره ګرځول، په څاروو څر کول.

**څروه** : په فصل کښې د مرغو د ویرولو دپاره څۀ څیز ودرول، شیشی، برلک، افچه، ګوډاګے.

**څروه** : سپرغی، بڅرے، بڅرکے.

**څریدل** : څر کول، د څناورو خوراک کول، څرن کول، پریدل، څر وهل، لکه د اوبو په دستونو کیدل، په دستونو کښې نري نري چریدل، د نسه کیدل.

**ځړه** : يواځې، ګوښې، تنها، جره، بې عياله، بې بال بچه، لونډ، بالکل، بيخي، سراسر، ټول، خالي، تش، خالص، فقط، سپور.

**ځړيکه** : درد، سخت درد، بريښ، د نمر سترګه، شغله.

**ځړی** : بودی، بوتی، د ويښتو ځونډې، زلفې، چوټکه، چونټقه، دربل، د ونې څوکې، د غرهٔ څوکه، څل، د باري ښاروي ځل، هغه لوګې چې کېږدی پرې ټينګولی شي.

**ځشکل** : څهٔ شکل، څهٔ رنګ، څهٔ ډول.

**ځشکله** : څنګه، څهٔ رنګه، د تعجب اظهار، څهٔ قسم (متروک)

**ځښناک** : ځکل، ځښل، چښل، چيکل، چشل، هغه خوراک چې مائع حالت کښې وي، د ځښلو مواد، د ځښلو عمل.

**ځښتن** : لوے الله، لوے خدائے، مالک، خاوند، ميړهٔ، کوربه، د کور خاوند.

**ځښکو** : ځاښکو، چاشکو، چاکسو، ځکښو، يو قسم دوائي چې په سترګو کښې اچولے شي.

**ځښکوړے** : ځښکوړے، څوکه، ځښته، چوښکه، چرړوک، نل، وړوکے نل، د وړو هلکانو سوخې، پيشې.

**ځښل** : ځکل، چښل، چيکل، نوشل، اوبهٔ يا بل مائع څيز د مرې نه تيرول.

**ځښول** : په چا نوشل، چاته ورشومل، په چا ځښول، ځکول، ښويول، ځخول، راښکل، راکښل،

**ځکل** : د څهٔ څيز خوند معلومول، په ژبه د يو شي کيفيت معلومول، په ژبه د يو شي خوند معلومول،

**ځکول** : راښکل، راکښل، کشول، ځخول، غوځول،

پریکول.
**څکه** : څکنه، د څکلو عمل، د ژبې په ذریعه د څهٔ ثیز خوند معلومول، په ګولۍ سرسري لګیدنه، د یوې بیمارۍ نوم.
**څکے** : څیکے، هغه تهوکرۍ چې په چت یا بهر انګن کښې په پړي کښې ځوړندولے شي او د خوراک ثیزونه پکښې ایښودلے شي. د منډتې مغز، د خرمانی مغز، چج، څپانکے، څپ.
**څلور** : د دریو او پنځو ترمنځه هندسه.
**څلور انیز** : پاؤ، چونړے، پنځویشت پیسې، د روپۍ څلورمه برخه.
**څلوربول** : څناور، کم عقل، احمق.
**څلوربولي** : خرپوسې، په څلورو پښو.
**څلوربولے** : چارپائ، چارپایه، هغه حیوان چې څلور پښې لري.
**څلور کنجه** : څلور ګوټه، څلور خوا، ګرده نړۍ، ټوله دنیا.
**څلوریزه** : رباعي، هغه دوه بیتونه چې د وړومبي بیت دوه مصرعې د دویم بیت له اخري مصرعې سره هم قافیه وي.
**څلویښت** : دوه شلې، د نهٔ دیرش او یو څلویښت تر منځه عدد.
**څلویښتي** : چهلم، د مړي په څلویښتمه ورځ خیرات.
**څلَه** : څیله، چله، سخته یخني، کنګل، یخ، د پو ما میاشت.
**څله** : د زړهٔ تاؤ، سودا، امید، هیله، خوښه، مینه، اشتیاق، تسلي،
**څلیرویشت** : څلور د پاسه شل.
**څلیښ** : شریش، څلیښت، سریښم، څلیښناکه ماده،

ژاوله، د ونې کنډ، چیړ.
**ځلیښتناک** : ځلیښناک، د ځلیښتو اثر لرونکے، د ځلیښ خاصیت لرونکے.
**ځلے** : په قبر لګیدلے تختی، د قبر شناخته، قبر، نښه، د تیږو ډیرے، د کاڼو ډیرے، نښکه، یادګار، مینار، قبر، مجسمه، بدن، وزمه. په ګوته کښې اچونکې کړی، ګوتمه، حلقه. ګوته.
**ځمځمار** : چمچمار، کوچه مار. یو ډول مار خطرناک مار.
**ځمځی** : ځمځه، د لرګي لویه قاشوغه چې کټوی پرې لړلے کیږي.
**ځملول** : غزول، اوده کول. شکست ورکول، پرزول، راغورځول، مغلوبول.
**ځمیار** : چمیار، موچي، هغه څوک چې پڼې یا څپلی ګنډي یا جوړوي.
**ځنځرے** : تنزرے، تنځرے، یو خوش اوازه مارغه.
**ځنډل** : د غرۀ په سر هواره څوکه، د غرۀ په سر هوار میدان. ځبول، تېکول، شهول، زمبل، سپورې ستغې وئیل، سپکول، بدې ردې وئیل.
**ځنډول** : تک وهل، دوړه ایستل. شوروول، ځنډ ورکول، شور ورکول،
**ځنډ وهل** : ځنډل، ځبول، ښوروول، د څادر یا کمبل وغیره نه دوړه ایستل.
**ځنډه** : تندے، ټنډه، ډډه، مورګه، اړخ، ژی، جاوجي، څورګه، حاشیه، لمن لیک.
**ځنګ** : خوا، طرف، اړخ، ډډه، پلو، احتراز،
**ځنګ و ځټ** : پټونه، الم غلم کونه. له نظره غائبونه. ډډې ته کونه. یو خوا کونه. خان قدرونه. خان حنجونه

**څنګ په څنګ** : خوا په خوا، غاړه په غاړه، څنګ پر څنګ.
**څنګزن** : په يو اړخ، په يو طرف، په ډډه.
**څنګل** : مټه، د مټ د بند نه تر منګل پورې ليچه.
**څنګه** : څهٔ قسم، څهٔ رنګه، څهٔ شان، څهٔ خيل، څنګ،
**څنه** : د ښځو د سر ويښتهٔ چې د غوږ او اننګي په مينځ کښې تاؤ راتاؤ شوي وي، څونه، قلم.
**څنيور** : ځينور، جوزا، يو اسماني برج، غبرګولے.
**څوَ** : څاؤ، داؤ، چاته په ترپ ک‍ښيناستنه، څوک څارنه، د موقعې په لټون کښې، د څارنې دپاره جوړ شوے خاے، پټونے. څاؤ، د پټي په مينځ کښې کنده چې ټيپر او ګاخرې وغيره پکښې د يخنۍ نه پټ ساتلے شي.
**څو** : څهٔ رنګه، څنګه، څومره، څو عدده، تر کومه وخته پورې، څونه،
**څوارلس** : د ديارلسو او پنځلسو تر منځ عدد، څلور او لس.
**څو تر څو** : تر کمه، تر څومره پورې، تر څو پورې،
**څورب** : غټ، مضبوط، تکړه، چاق، شلنډ، تازه، تاند، هغه څيز چې غوړ زيات لري،
**څوره** : څومره، څهٔ قدر.
**څوړمنے** : د اوړي او ژمي تر منځنے فصل يا موسم، سپرلے، څړمنے.
**څوکه** : نوکه، د نيزې او تورې تيرهٔ سر، د چاقو د تورې او شل وتے او نرے تيرهٔ سر، د مرغۍ مښوکه، د ونې پاس اخرى څړوکى
**څوکيدار** : څوکى کونکے، چوکيدار، پيره دار، پهره وړ کونکے.

**څوکی** : وړه کرسی، چوکی، پیره، تانه، د پولیس هغه ځای چې د تانې نه ورکوتی وي. مورچه، سنګر، مورچل، د برج د پنایی دیوال، یو ډول بوټی، د څوکیدار د ودریدو ځای، کلچه، چپاتې.

**څومره** : د چا نه د څۀ څیز د مقدار یا ناپ معلومولو په وخت د ذکر کړے شوي مقدار یا ناپ پوښتنه کول،

**څۀ** : د تعجب او د پوښتنې د فقرې په سر کښې وئیلے کیږي، لږ، بعضې، ځنې.

**څهره** : څیره، بشره، شکل، موشاده، نمونه، مخ، ګونه.

**څۀ نا څۀ** : لږ ډیر، کم از کم، څۀ قدرې،

**څې** : د پښتو د حروف تهجي لسم حرف چې صحیح تلفظ ئې څیم دے.

**څیرل** : شلول، بژه کول، په مخ دوه کول، اره کول.

**څیرول** : شلول، غوڅول، پریکول، څیرل، لري سوپري رااېستل.

**څیره** : څړیکه، د نمر څړیکه، زړه کپړه، وړوکے پتے.

**څیرې** : دوه ځایه، بژه، شلیدلے، شکیدلے، برڅیره،

**څیریدل** : شلیدل، بژه کیدل، اره کیدل، پریکیدل.

**څیز** : شے، مال متاع،

**څینور** : څنیور، غبرګیز، جوزا، غبرګون، د هجري شمسي کال د دریمې میاشتې نوم.

**څیر** : مانند، مثل، نظیر، ډول، غوندې، شان، رنګ.

**څیره** : موشاده، چهره، نه، شکل، د مخ جوړ، رغونه، پګړی، طره،

**څیړل** : تحقیق کول، بحث کول، څیړنه کول، چیړل، تنکول، په عذابول.

**خیږی** : بلوط، یوه غرنیزه ونه.

**خیلمه** : ټول، بیخي، تمام،

ګرد، اړخ ته، کناره.

**خیوړے** : د شپانو د وسیدو ځاے.

**ح** : (حې) د پښتو حروف تهجي د پنځی يوولسم حرف چې د ابجدو په حساب ئې شمير اتهٔ (۸) دے.

**حاجت** : متازي، اړه، احتياج، ضرورت، اميد، ارزو، التجا، اودس ماتے.

**حاجتمن** : حاجتمند، محتاج، ضرورت مند، موتازه، اړيه،

**حاجتمندي** : بده ورځ، تش لاس، موتازي، محتاجي، احتياج، ضرورت.

**حاجي** : هغه سړے چې د حج سعادت ئې حاصل کړے وي.

**حادث** : نوے، تازه، د قديم متضاد، پيدا، پيښ.

**حادثه** : پيښه، ناګهاني پيښه، سخته او دردناکه واقعه، غوړيکه،

**حاذق** : زيرک، هوښيار، پوه، پوه طبيب، سودمن.

**حار** : حرارت لرونکے، تود، ګرم.

**حارث** : زمرے. بزګر، کرونده ګر.

**حارص** : حريص، اروا وږے، حرصناک، لالچي، هغه څوک چې صبر پکښې نهٔ وي.

**حاره** : حرارت لرونکې، ګرمه، توده.

**حاسب** : شمير ګر، حساب کونکے.

**حاسد** : بدنيته، حسد کونکے، هغه څوک چې د چا ښه ورځ نهٔ شي ليدے.

**حاسه** : حس، د معلومولو قوت، د ادراک قوت.

**حاشا** : انکار، د انکار کلمه.

**حاشيه** : غاړه، څنډه، ژی، چوری، جاوجي، مورګه، څورګه، هغه وضاحتونه چې د کتاب د ليکونکي له خوا د کتاب په غاړو په بيله توګه ليکلے کيږي. لمن ليک.

**حاصل** : نتيجه، ميوه، آمدن، ګټه، بوره، ثمر، خلاصه.
**حاصلول** : لاس ته راوستل، ګټل، اخستل،
**حاصليدل** : ګټلے کيدل، ترلاسه کيدل، بوديدل.
**حاضر** : موجود، تيار، تکړه، اماده،
**حاضرول** : وړاندې کول، راوستل، مخامخ کول، تيارول، چمتو کول.
**حاضري** : موجودتيا، شتهٔ والے.
**حاضرين** : د حاضر جمع، هغه خوک چې په يوه جمع يا ګڼه کښې په موقع ناست وي، ناست کسان، ناست خلق.
**حاضريدل** : تياريدل، وړاندې کيدل، مخامخ کيدل، حاضر کيدل، موجوديدل، ښکاره کيدل،
**حاطه** : په چارديوارى کښې دننه زمکه، خاته.
**حافظ** : هغه څوک چې قرآن مجيد ورته په يادو ياد وي. په سترګو معذوره، اپيجي. ساتونکے،
**حافظه** : يادداشت، د ياد ساتلو قوت، يادښت،
**حاکم** : واک دار، اختيار لرونکے، حکومت کونکے، آقا، مالک، فرمان روا، بادشاه.
**حاکميت** : اقتدار، واک، اختيار.
**حال** : درک، پته، موجوده وخت، اوسنے وخت، حالت.
**حال احوال** : تپوس، خبر، حالات، خير خبر.
**حالانکې** : اګرچې، درحال، دراصل، اصل کښې.
**حالت** : حال، کيفيت، وضع.
**حالي** : اوسنے، موجوده، حاضر.
**حامل** : باربردار، د څهٔ څيز لرونکے، حمل کونکے، بار وړونکے.
**حامله** : اميدواره ښځه،

هغه ښځه چې ماشوم ئ په ګیډه وي، چې حمل ئ شوے وي. بلاربه، ډکه، ډډه، ټنډه، تانده.
**حامي** : حمایت کونکے، ملاتړ، ساتندوئے، سیلګړے، د نوح علیه السلام زوې حام ته منسوب، د حام له نسله، تور، حبشي، د لرغوني مصر د بربر د قومونو او نمرختیزې افریقې ژبې.
**حاوي** : احاطه کونکے، چاپیرونکے، قابض، غالب.
**حائضه** : حیض داره، هغه ښځه چې جامې ئ کیږي.
**حائل** : ستنونکے، په منځ کښې راتلونکے، د لارې خنډ جوړیدونکے.
**حائلیدل** : حائل کیدل، په منځ کښې راتلل.
**حُب** : مینه، محبت، عشق، دوستي، الفت.
**حباب** : د اوبو غولی، بوربورکی، د اوبو غورغورکی، بوکی، د اوبو په سر د هوا جوړیدونکې بربوقی، پوکنی.
**حبس** : بندي کونه، بند، قید، جیل، زندان، اړیځے.
**حبسول** : قیدول، بندي کول، په زندان کښې اچول،
**حبسیدل** : قیدیدل، بندي کیدل.
**حبشي** : حبش ته منسوب، د حبش باشنده د حبش وسیدونکے [illegible]ر، توره.
**حبطه** : ف[illegible]ول، بې فا[illegible]دې، ابته، ناپاک، [illegible]عیف، کمزورے، خفه، بابیره.
**حبیب** : محبوب، دوست، زړهٔ ته نږدې، معشوق.
**حتم** : هرومرو، ارومرو، خامخا، ضرور.
**حتماً** : خامخا، ارومرو، ضرور، هرومرو.
**حتمي** : لازمي، بې شرطه، ضروري، اخري.
**حتیٰ** : تر هغه چې، تر څو

پورړ چې، تروسه.
**حج** : د پنج بنا اسلام نه پنځم رکن او فرض عين .
**حجاب** : پلو، پرده، نقاب، شرم، حيا،
**حجاج** : د حاجي جمع. حاجيان.
**حجازي** : د حجاز سره منسوب، د انبار او حيره د قبيلو يو قسم ليک وۀ چې په عربو کښې د اسلام د راتلو تر وخته مروج وۀ.
**حجامت** : ږيره خريل، ږيره کلونه، شيو کونه، ږيره.
**حجت** : برهان، دليل. سند،
**حجتي** : حجت کونکے، حجت اخستونکے .
**حجر** : تيږه، کاڼے، ډبره، گټه.
**حُجره** : د نارينه ميلمنو د ناستې ځاے، د پښتنو نارينوؤ د ناستې ځاے، اجره، ديره، ډيره، کوټګی.

**حجم** : د څۀ څيز غټ والے يا جسامت، قوت، قدرت، توان.
**حد** : پوله، بريد، د څۀ څيز اخري ژی، حائل، جزا، بدني مجازات،
**حد بندي** : حد مقررونه، مقام مقررونه.
**حدود** : پولې، بريدونه، اسلامي حدود، اسلامي دفعې، د حد جمع.
**حديث** : نوے، تازه، جديد، خبر، خبره، د رسول کريم صلي الله عليه وسلم اقوال مبارک.
**حديقه** : باغچه، وړوکے او په ديوالونو کښې ګير باغ، باغيچه، باغ، بن.
**حذر** : ځان ساتنه، پرهيز، اجتناب، ډډه کونه، ځان ژغورنه، ويره، ډار، بيره.
**حذف** : اچونه، غورځونه، لرې کول، يو تورے د منځ نه ويستل.

**حذفول** : اچول، غورځول، لرې کول، يو تورے د منځه ايستل.

**حُر** : ساهو، ازاد، خپلواک، د مريي متضاد.

**حر** : تودوالے، تودوخه، حرارت، ګرمي.

**حرارت** : تودوالے، تودوخه، لړه تبه،

**حراست** : قبضه، حفاظت، ساتنه، څارنه.

**حرام** : هغه څۀ چې په شريعت کښې د هغې کول يا خوړل منع وي، ناروا، د حلال ضد.

**حرامه** : د حرامي مؤنث، بې تميزه او خرابه ښځه.

**حرامول** : منع کول، حرام ګرځول، بندول، ناجائز ګڼل.

**حرامي** : حراموټے، ارامي، ولدالزنا، د زنا پيدا، په غلطه طريقه پيدا شوے، حرام زاده، غل، شيطان، وران کارے، بدمعاش.

**حراميدل** : منع کيدل، ناروا کيدل، بنديدل.

**حرب** : جنګ، جګړه، مقدمه.

**حربه** : چل، تدبير، طريقه، د غرض او مقصد حاصلولو ذريعه، وسله، اسلحه.

**حرج** : تنګسه، نقصان، زحمت، مشکل، تنګ ځاے.

**حرص** : لالچ، طمع، هر څيز د حد نه زيات غوښتنه.

**حرصناک** : وګوری حارص، لالچي، حريص،

**حرصي** : لالچي، حرص کونکے، حريص، حرصناک.

**حرف** : هغه کلمه چې نۀ اسم وي او نۀ فعل وي خو چې د بلې کلمې سره يو ځاے شي نو معنيٰ پيدا کوي، ځان له معنيٰ نۀ لري، مثلاً ا، ب، ج، وغيره.

**حرکت** : خوځيدنه، رقيدنه، ښوريدنه، جوته، د

سکون متضاد.
**حرم** : د کعبې شریفې دننه برخه، د کعبې خواؤشا، د کور دننه برخه، انګړ، انګن، غولې، منع کړې شوې ځاې، کډه، بال بچ، اولاد، عیال.
**حرمت** : عزت، لحاظ، خیال ساتنه، مقدس ګڼنه، حرامیدنه، ناروا کیدنه.
**حروف** : توکي، د حرف جمع.
**حروف تهجي** : د یوې ژبې بنیادي حرفونه چې د یو بل سره یو ځاې شي نو توري تري جوړ شي او د دې په بنیاد د تورو هجې کولې شي لکه ا، ب، ج وغیره.
**حریص** : حرصناک، سرابڼ، وږسترګې، اروا وږې، لالچي، سولند، سرلوږې، سولندک، بدسولې، سولنده، خیټو، ګیډه ور، سیالي مار.
**حریف** : رقیب، مخالف، سیالي کوونکې.
**حزب** : د قرآن پاک هغه برخه چې په یوه ورځ لوستلې کیږي، ډله، پارټي.
**حزبي** : د حزب، د پارټي، د ډلې.
**حس** : ادراک، احساس، بیداري، خمیر، حرکت، ژوند، ساه.
**حساب** : شمارنه، شمیر، شمار، د شمارې علم، مال، دولت، روپی پیسې، د ژوند اوربشه.
**حسابول** : ګڼل، شمارل، حساب کول،
**حسابیدل** : په شمیر کښې راوستل، حساب کیدل، شمیرل.
**حساس** : نازک مزاجه، زر پوهیدونکې، تیز حس لرونکې، ذهین.
**حساسیت** : حساس توب، حساس تیا.
**حسب** : وقار، شرف،

عظمت، خانداني لوي والے، ټبر، حسب نسب، اصل نسل، نوغے، جرړه، شجره، مطابق، برابر، سم.

**حسب** : شمیرنه، ګڼنه، کفایت، بسوالے.

**حسد** : بغض، کینه، رخه.

**حسرت** : ارمان، افسوس، ارمان کونه، افسوس کونه.

**حُسن** : ښکلا، ښائست، جمال.

**حسن** : ښکلے، ښائسته، نیک، ښهٔ.

**حسنه** : ښیګړه، ښیګڼه.

**حسیب** : شمیرونکے، ګڼونکے، محاسب، حساب کونکے.

**حسیدل** : احساس کیدل، حس کیدل، پوهیدل.

**حسین** : ښکلے، ښائسته، پیمخے.

**حشر** : ګڼه ګوڼه جوړونه، راټولونه، راغونډونه، پاڅونه، پنڅ، پنڅے، شور

غوغا، د حشر ورځ، قیامت، د جزا ورځ.

**حشر نشر** : حشر، ګڼه ګوڼه، ډیر زیات خلق، شور غاؤ، شور شغرب.

**حشره** : ملخ، چینجے، کیرړے، ماشے، میږے، مچ وغیره.

**حشم** : اهل و عیال، خاندان، نوکر، ملازم.

**حشمت** : دبدبه، عظمت، شان و شوکت، رعب داب، جاه وجلال.

**حصار** : قلعه، کوټ، قلا.

**حصار** : ایسار، محاصره شوے، قلا بند، قلعه بند، بند، ګیر، راګیر، معطل.

**حصارول** : محاصره کول، ایسارول، اټالول، بندول.

**حصاریدل** : محاصره کیدل، ایساریدل، اټالیدل.

**حصول** : حاصلونه، لاس ته راوستنه.

**حصه** : [illegible] برخه، ونډه،

حق، ابره،
**حصه دار** : برخه لرونکے، حصه لرونکے،
**حصه داري** : انډي والي، حصه لرنه، شراکت داري،
**حـضـرت** : د احتـرام او عزت کلمه.
**حـضـور** : مـوجـودګـي، حـاضـري، مـخـامخ، جناب، حضرت.
**حفاظت** : احتيـاط، ساتنه، په نظر کښې ساتنه، نګراني.
**حـفـاظتي** : د سـاتـنې، د حفاظت، د حراست، امنيتي.
**حفظ** : حـافـظې ته سپارل، په ياد کونه، يادونه، ساتنه.
**حفظ ماتقدم** : د اول نه د خـان سـاتـنـې تـدبير، د يوې پيښـې د پيښيدو مخ نيونه، د مخکښې نه حفاظت.
**حفيظ** : د الله پاک د نومونو نه يو نوم، ساتونکے،
**حـق** : فـرض، ذمـه داري، انصاف، عدل، ديانت، برخه، حصه، صله، مزدوري، منصب، اختيـار، رښتيـا، حـقيقت، باب، نسبت.
**حق** : د الله پـاک يـو صفتي نوم، رښتونے، وړ، سچ، جوګه، لائـق، صـحيـح، درسـت، ټيک، جائز، د باطل ضد.
**حقارت** : سپکاوے، سپک والے، په سپک نظر کتنه.
**حقاني** : رښتونے، په حقه، حق ته منسوب، ټيک.
**حقانيت** : رښتيا والے، حق والے، رښتين توب.
**حـقـائق** : حـقيـقتونـه، د حقيقت جمع.
**حق حلال** : حلال، جائز، پـه روا، چې هيـڅ نـاجائز او نـاروا پکښې نۀ وي.، سوچه حلال.
**حق حيران** : اکه پکه، حق پـق، حيـران دريـان، اريـان دريان.
**حق دار** : مستـحـق، حق لرونکے، د حق خاوند، حقمن.

**حقداري** : حق لرنه.
**حق ناحق** : بې موجبه، وچ په وچه، بې دليله، بې بښې بې يدې، ارومرو، خامخا.
**حقوق** : د حق جمع. حقونه.
**حقوقي**: د حق سره منسوب، د حق.
**حقه** : قانوني، اصولي، په ځاې، د حق مؤنث.
**حقير** : خوار، ذليل، زبون، وړوکے، بې قيمته، بې قدره.
**حقيقت** : د څۀ څيز اصل، رښتيا،
**حقيقتاً** : په رښتيا، په حقيقت، په حقيقي توګه.
**حقيقي** : رښتونے، په حقه، د خطا ضد، د حکايت متضاد.
**حکايت** : قصه، سرګزشت، داستان، بيان،
**حکم** : دريم ګړے، منځي ګړے، منصف، قاضي، نياوي،
**حکم**: د حکمت جمع.
**حکماً** : د حکم په ذريعه، په حکم.
**حکمت** : پوهه، علم، هوښياري.
**حکمتي** : هوښيار، د حکمت خاوند، تګ، چل ولي.
**حکمران** : فرمان روا، بادشاه، حکم چلونکے.
**حکومت** : اقتدار، زور، طاقت،
**حکيم** : پوه، هوښيار، طبيب، حکمت لرونکے.
**حکيمانه** : عالمانه، عاقلانه، د حکيم په شان.
**حکيمي** : طبابت، د يوناني طب په رڼا کښې د مريضانو علاج کونه، د حکيم پيشه.
**حل** : نتيجې ته رسيدنه، اواريدنه، هواريدنه، ويلې کيدنه، ګرانه چاره اسانونه، معلومونه.
**حلال** : د شرعې مطابق روا، جائز، روا، پاک، د حرام ضد، د خوراک جوګه.

**حلال** : ذبحه، چې مرى ئ غوڅه شي.
**حلالول** : روا كول، جائزول، ذبحه كول.
**حلاله** : حلالكه، ذبحه، قصابي كونه، وندى، په شرعي طريقه په چاړهٔ چړوكى وغيره ذبحه شوے ځناور،
**حلالي** : حلالونے، هغه اولاد چې د نر او ښځې د شرعي نكاح له تړلو نه وروستو پيدا شوے وي. د حرامي متضاد. صالح، نيک عمله.
**حلاليدل** : روا كيدل، جائز كيدل، روا گهل، ذبحه كيدل.
**حلاوت** : خوږ والے، خوږښت، شيريني.
**حلف** : قسم خوړنه، سوگند، عهدوپيمان، وړه،
**حلف نامه** : هغه كاغذ چې پرې حلف ليكلے وي.
**حلفيه** : قسميه، حلفي، په قسم سره.
**حلق** : تالو، ستونے، مرى.
**حلقه** : كړى، الغه، دائره، هاله، چكر، لومه، گروپ، غوندره،
**حلم** : تيزک، تيرتيزک.
**حلم** : زغم، حوصله، همت، بردباري، صبر، نرمي، تحمل.
**حلوا** : سوجي يا نشاسته چې په غوړو كښې سره كړې شي، يو شيرين خوراک، نرم او پوست كار، اسان كار، چيت پيت شوے.
**حلوائي** : حلوا يا متهائي جوړونكے، روښوال، الوائي.
**حليف** : ملگرے، دوست.
**حليم** : زغمونكے، د لويې سينې خاوند، صبرناک. نرم، خوږ، د الله پاک يو صفتي نوم،
**حليه** : څيره، بشره، شكل.
**حماست** : زړهٔ ورتيا، دلاوري، شجاعت.

**حماسي** : د زړه ورتوب، د شجاعت، د بهادری، د دلاوری.
**حماقت** : بې عقلي، ساده توب، کم عقلي، ناپوهي.
**حمام** : د لمبلو ځاے، هغه ځاے چې د لمبلو د پاره پکښې تودې او سړې اوبهٔ وي.
**حمايت** : ننګه، دفاع کونه، ساتنه، د چا په حق کښې خبره کونه، مرسته.
**حمايتي** : حمايت کونکے، مرستيال، مرسته کونکے،
**حمد** : ستائينه، صفت، د الله پاک ثنا صفت بيانونه.
**حمل** : بلاربوالے، بار، بوج،
**حمل** : د هجري شمسي کال ورومبی مياشت د ۲۱ مارچ نه تر ۲۰ اپريل پورې، ورے.
**حمله** : يرغل، چپاؤ، بريد، غرځنګ، اپه، تعرض.
**حميت** : غيرت، ننګ، خوانمرې، مړانه
**حميد** : غوره، ستائيلے،
**حميم** : ګرم، تود، دوست
**حميل** : اميل، امبيل، هار
**حنا** : نکريزې
**حنائي** : په نکريزو لړلے، په نکريزو سرې، زيړبخن سور، د نکريزو سره متعلق
**حنظل** : کاکوړه، مره غونې، مغونې،
**حنيف** : په خپله عقيده ټينګ ولاړ
**حوا** : د حضرت آدم عليه السلام بي بي او د ټولې دنيا د انسانانو مور.
**حوادث** : د حادثې جمع، حادثات،
**حواس** : د حس او ادراک قوت، د حاسه جمع.
**حواشي** : حاشيې، غاړې، څنډې، د کتاب د صفحې غاړې، د حاشيه جمع.
**حوالات** : جيل يا تانه کښې هغه ځاے چې ملزمان

د مقدمې د تفتيش په دوران کښې پکښې ساتلے شي، قيد،
**حواله** : مهے، کب، د هجري شمسي کال دولسمه مياشت، د دلوې او حمل تر منځه مياشت.
**حُوره** : د جنت ښائسته مخلوق، ښائسته، ډيره ښکلې،
**حوصله** : صبر، زغم، همت، ججوره، ججيره، جاغور.
**حوض** : تالاؤ، تالاب، ډنډ.
**حويلۍ** : بنګله، د وسيدو ځاے، انګن، محل، کوټهي.
**حي** : د الله تعالیٰ يو صفتي نوم، ژوندے.
**حيا** : شرم، پرده، وايه، ادره، ستر، غيرت.
**حيات** : ژوند، ژواک، د مرګ متضاد.
**حياتي** : د ژوند سره تړلے، د حيات سره منسوب.
**حيادار** : حياناک، غيرتي، چې په چا کښې حيا، لحاظ او شرم وي.
**حيضه** : هغه ښځه چې د حيض په حالت کښې وي.
**حيله** : چل، مکر، فريب.
**حيله باز** : حيله کونکے، مکار، چلباز، ټګ، فريبي، حيله ګر، حيله ناک.
**حيه** : ژوندی.
**حي** : د حرف "ح" تلفظ.
**حيثيت** : وضع، جهت، اعتبار، ابرو، شان.
**حيدر** : زمرے، امزرے، منزرے،
**حيران** : اريان، حريان، هک پک، پريشان، سرګردان، بې وزله، غريب.
**حيرانتيا** : د حيرانيدو حالت، حيرت، تعجب، حيراني.
**حيرت** : وګورئ حيرانتيا.
**حيض** : د ښځو مياشتنی ناروغي، جامې، د ښځو له رحم سره د وينو جاريِ

کیدنه.

**حیف** : بې انصافي، ظلم، ستم، اف، افسوس، ارمان.

**حیوان** : ښاروے، ښناور، ډنګر.

**حیواني** : د حیوان، د حیوان په حقله، نفساني.

**حیوانیت** : وګوریٔ حیوان توب.

**حے** : ژوندے، ژوے، حیات.

**خ** : (خې) د پښتو ژبې د حروف تهجي دولسم حرف چې د ابجدو په حساب ئ قيمت شپږ سوه (۶۰۰) دے.
**خاپ** : خپ، خراپ، نښه، چاپ، داغ، تاپه، مهر، علامه، نښانه.
**خاپے** : خاپ، داغ، نقش،
**خاتم** : ختمونکے، اخرِي کونکے.
**خاتم** : مهر، گوتمه، اخري، پائ.
**خاتم الانبياء** : د ټولو نبيانو د نبوت ختمونکے، محمد صلي الله عليه وسلم.
**خاتمه** : انجام، اختتام، مرگ، د کتاب هغه عبارت چې کتاب پرې ختميږي.
**خاتون** : بي بي، بيگم،
**خادم** : نوکر، خدمت گار، ملازم، خدمت کونکے.
**خادمي** : کربوړے، غاوره، غارندونے، غرندونے، خادمی، د کربوړِي يا سمسرې په شان يوه خزنده، شلندکومے، شلوټه.
**خادیے** : د ديوال په سر د پټې نه گير چاپيره د غنو شپول، سرخار.
**خار** : غنه، ازغے، رقيب، ويره، شرميدنه، پيکه کيدنه،
**خارج** : ويستلے، وِيستے، بهر، وتے، وکښلے، وښکلے، ورچينے، بهر ملک.
**خارجول** : ويستل، شړل، لرې کول، کټ کول، بهر کول.
**خارجيدل** : ويستلے کيدل، شړلے کيدل، لرې کيدل.
**خارخوړى** : وگورئ خارخوټى. وړې وړې کندې، پټ غار، پټه کنده، نامعلوم ځاے.
**خاردار** : ازغن، ازغي لرونکے، اغزين، ازغين، ازغينک،
**خارښ** : خارښت، خارش، تخور، گريدنه، پم، کهه،

عادت.

**خاربښتي** : د خاربش په مرض بیمار، پمي، وران کاری، تک لاسے، بداخلاقه، شریر، بدعمله، علتي، عادي، مفعول، کوني.

**خارق العاده** : د عادت مخالف کار، حیرانونکے کار، معجزه، کرامت.

**خارو** : د چرګ د پنجي د پاسه یو غټ ازغے چې چرګ پرې د خان حفاظت کوي. خریړ، د مارغهٔ خارو،

**خاړپوڅې** : خرپوڅې، خاپوړې.

**خازن** : خزانچي، د خزانې ساتونکے،

**خازه** : لکړه، خاده، خده، د څیز ډیر کم مقدار، د قبر خزه.

**خاشخاش** : خشخاش، قاشقاش، خاړخاړ، د کوکنارو داني،

**خاشنهٔ** : خرشنهٔ، خاشنهٔ، خرشنې، خرسین، لد، د خر لد، د اس خر، قچر وغیره ګندګي، د لړي مرداري.

**خاشه** : خخله، د څهٔ څیز ډیر کم مقدار، خرسک، خسک، د ماشومانو یوه بیماري، د غوښې ټوټه، پوټے،

**خاص** : د عام ضد، مخصوص، خصوصي، ټاکلے شوے، اهم، غوره،

**خاصه** : سان نه لړه نری او ارزان بیه کپړه، ململ، خاسه.

**خاصه** : خاصیت، عادت، خوئ.

**خاصه دار** : د پاکستان قبائلي علاقو کښې د بې قاعده عسکري تنظیم فرد یا افراد چې د قبائلي ملکانو په خوښه برتي کیږي.

**خاصیت** : اثر، تاثیر، عادت، خوئ، خاصه،

**خاطر** : لحاظ، مخ لحاظ، تواضع، وجه، زړهٔ، ضمیر، یاد، فکر،

**خاطره** : یاداشت، یاد،

یادګار.

**خاک** : خاوره، زمکه.

**خاکبوسي**: خاورې ښکلونه، قدم بوسي، عزت احترام.

**خاکسار** : بې کبره، بې غروره، اصل معنیٰ د خاورو په شان.

**خاکسترداني** : ایرینی، ایرنۍ، ایش ترے، هغه لوښے چې د سګرټ ایره پکښې اچولے شي.

**خاکنا** : خاکنائے، د زمکې نرۍ او وړه ټکړه چې د دوو اوبو په منځ کښې وي.

**خاکه** : نقشه، تصویر، کچه نقشه، د وریژو میده، د کانې میده، د غمي ریزه، بیکاره څیز، د نانبایانو د تختې اوړهٔ، د ادب یو نثري صنف، هغه تکل چې د چا په کردار لیکلے شوے وي.

**خاکي** : خاورې رنګے، خړ، ایره رنګے، د خړ رنګ واله، له خاورو جوړ، انسان، هغه

ها(اګی) چې چرګه ئ بغیر چرګ سره له جوړه کیدو اچوي.

**خال** : خاپ، داغ، ټکے، د جوارۍ په دانه هغه پوټکے لرونکے ارخ چې د تاوان کور ګڼلے شي. د چیچک دپاره لګولے شوې ټیکه.

**خال خال** : خاپ خاپ، داغ داغ، ټکي ټکي، لږ لږ، کم کم، خنې خنې.

**خالص** : پاک، سوچه، صفا.

**خالصه** : سوچه، صفا، پاکه، خاصه،

**خالق** : پیدا کونکے، د الله پاک له صفتونو نه یو صفت.

**خاله** : ترور، د مور خور.

**خالي** : د هفتې ورځ، د جمعې او اتوار تر منځ ورځ، میانه، ذیقعد، د میانې میاشت.

**خالي** : تش، وزګار، خوشے، ډډ، خلا لرونکے،

**خام** : اوم، کچه، چې پوخ نهٔ

وي، د پوخ متضاد، ناتجربه کار.

**خامتا :** خمتا، چپړ، خمتو، خامتو، په کورنو کښو تیاره شوې کپړه چې د پومبې نه جوړولے شي.

**خامخا :** اورومرو، خواه مخواه، ضرور، حتمي، حتماً.

**خاموش :** غلے، چپ، چوپ، سنجیده.

**خاموشي :** چوپیا، چپتیا، چپ والے، سنجیدګي، قرارې، غلے والے.

**خامه :** د خام مؤنث، کچه لار، کچه سړک.

**خامي :** اوموالے، کچه والے، غلطي.

**خان :** د قبیلې سردار، مشر، عزتمند، د عزت خطاب، مالدار، بختور، سخي.

**خانجي :** هغه د احترام نوم چې مشرانو یا خانانو ته د عزت په توګه وئیلے شي.

**خانجے :** هوس، شهوت، د شهوت خارښت.

**خاندان :** خیل، کورنی، قبیله، نسل.

**خانزاده :** د خان ځوے، د خانانو له ټبره، د ښهٔ خاندان سره تعلق لرونکے،

**خانسامه :** باورچي، اشپز، اخلے پخلے کونکے.

**خانقاه :** د راهبانو د وسیدو ځاے.

**خانم :** بي بي، بیګم، میرمن، کدبه، بال بچ، وادهٔ شوې ښځه.

**خانه :** کور، مینه، خونه، د استوګې ځاے، د ټول څیز نه یوه برخه، څهٔ حصه، چارخانه، کورکے، په کپړو یا کاغذ جوړه شوې څلور ګوټیزه خلا، جدول.

**خانه بدوش :** کوچے، کښواله، کښبه، کښمار،

**خانه جنګي :** د ملک دننه جنګ، د وطن د مختلفو طبقو ترمنځه جنګ، په یوه

علاقه کښې د وسیلونکو ترمنځه جنګ.
**خانه خراب** : کورورانې، سپیرهٔ، شریر او شیطان سړے.
**خانه داري** : کوروالے کونه، د ښځې خاوند خپلو کښې په جنسي ډول یو ځاے کیدنه، د کور انتظام.
**خاني** : د قبیلې مشري، د کلي مشري، باداري.
**خاور ګاډے** : هغه کنده چې د خاورینو لوښو د جوړولو دپاره ترې خاوره راویستلے شي.
**خاوره** : ختړه، دوړه، زمکه، وطن، سرهٔ، سپک، بې قدره، بې ښې.
**خاورین** : د خاورو نه جوړ.
**خاوری** : خوری، پتهکړی، پتهکری، پتهکنی. هغه سپینه خاوره چې ماشومان ئ په تختو مږي، متهی، متهي.
**خاوند** : خداے پاک، بادار، مالک، څښتن، میړهٔ،

**خاین** : خیانت کونکے.
**خایه** : خوټه، مردانه تخلیقي غدود،
**خباثت** : ګندګي، پلیتي، خبیث توب، شیطاني، بدنیتي،
**خبر** : اطلاع، پیغام، پته، نښه، هوش، خود، سود، د احوال پوښتنه.
**خبر** : واقف، اګاه، خبردار. خبره، کلام، د جملې هغه جزو چې مبتدا نهٔ وي.
**خبردار** : خبر، پوهه، واقف، ویښ، بیدار، د خبرداری غږ.
**خبررسان** : قاصد، خبر رسونکے، احوال وړونکے، جاسوس، مخبر.
**خبرلوڅ** : خبرلوڅے، خبر رسونکے، چالاک، ژبه ور، ژغیدونے، ډیرې پټې خبرې کونکے.
**خبرول** : خبر ورکول، اطلاع ورکول، پیغام رسول.
**خبره** : ګفت، وینا، قول، لوظ، خبر، واقعه، معامله،

پیښنه، حادثه.
**خبره اتره** : ګفتګو، احوال
**خبریال** : د خبرونو د ایجنسی یا اخبار نمائنده.
**خبریدل** : اګاه کیدل، پوهیدل، واقف کیدل.
**خبط** : د لیونتوب تر حده رسیدلے. لیونتوب.
**خبیث** : پلیت، ناپاک، بدمعاش.
**خبیر** : د الله پاک یو صفتي نوم، اګاه، خبر، پوه، دانا، علیم.
**خپرول** : خورول، نشر کول، اشاعت ور کول، تار په تار کول، تیت کول، شیندل، منتشر کول.
**خپریدل** : خوریدل، شائع کیدل، نشر کیدل، تار په تار کیدل، منتشر کیدل.
**خپسر** : خپل، خان، خپل سر (متروک)
**خپسکه** : خپسه، خپسکی، کپسی، خپکه، قپسه. ننګڅه،
**خپسه** : و ګوری خپسکه.
**خپل** : ځاني، ذاتي (اکثر زما، زمونږ، ستا، ستاسو، د هغهٔ د هغوي یا د بل اسم نه پس راځي.) خپلوان، رشته دار.
**خپلواک** : د خپل اختیار خاوند، ازاد، خودمختار، بې قیده.
**خپلوان** : خپل، د خپل جمع، رشته داران، عزیزان.
**خپلول** : دوست جوړول، قبضه کول.
**خپلولي** : خپلوي، قرابت، رشته، خپښي.
**خپور** : تیت وپرک، ویږ، اوار، غوړیدلے، نشر، شائع.
**خت** : کرته، قمیص، پیپنی،
**ختل** : حمله کول، د مادې د تیرولو دپاره د نر په ماده سوریدل، ترقي کول، بهر ته وتل، د درد یا ځړیکې پیدا کیدل، د جوړ بې ځایه کیدل، راتولیدل، ښکاره کیدل، وچتیدل

**ختم** : تمام، سر ته رسیدلے، د قرآن شریف د تمامولو رسم.
**ختمول** : ختم کول، تمامول، پوره کول، سر ته رسول، مړ کول، بیخ بنیاد ایستل.
**ختمه** : د مړي په کور کښې د خیرات په توګه په اوومه یا څلویښتمه ورځ کیدونکې روتۍ.
**ختمیدل** : پوره کیدل، ختم کیدل، سر ته رسیدل، مړ کیدل، بیخ بنیاد ایستلے کیدل.
**ختنه** : سنت، سونت، سنتونه، د مسلمانانو ماشومانو د سوخي نه زیاتي پسته غوښه پریکونه.
**خته** : کپړه، جامه، زړې کپړې.
**ختي** : شمیس، شمیز، زیر پیراهنۍ، هغه وړوکے شان قمیص چې د قمیص د لاندې اغوستے شي.
**خټ** : د خاورو کمر، چم، د خاورو پانډ، د خاورو غونډۍ، د مائعاتو خیرے، د ونې مونډ، د تورې وریځې ګټ، خاکي بدن، د خاورو څلے.
**ختبه** : د ختو کار کونکے، ختګر، ختمار.
**ختکے** : د خاورو وړوکے خټ، چم، د بنیادم کالبوت.
**ختکے** : مونډ، د تانتو مونډ چې په پتې کښې د فصل ریبلو نه پس پاتې شي.
**ختکے** : شینکے، خربوزه، یو قسم میوه.
**ختماله** : ګړماله، ګرماله، ختموښے.
**خته** : خاوره، چیکړ، تینګ، نسل، قام، سرشت، خوئ، خفه، دلګیر،
**ختین** : د کبانو د ښکار کولو کارتوس، په درز چاؤدونکې یوه ماده چې عام طور سره د کبانو د ښکار دپاره استعمالیږي.

**ختې** : بښهٔ صحت لرونکې ماشومه.
**خج** : څګ، د ژبې په لهجه کښې په سیلاب زور.
**خجالت** : شرم، شرمندګي، حیا، خجلت، کچه والے.
**خجل** : نادم، شرمنده، کچه.
**خجلت** : خجالت، شرمندګي.
**خڅه** : لیوه شوې بوساړه،
**خچ** : بدسلوکي، بداخلاقي، بدخوئي، نقصان، خلل، شک.
**خچپچ** : مات ګوډ، بیکاره، ټوټې ټوټې، چخنې چخنې.
**خچر** : غاتره، قاطر، کچر، قچر،
**خچن** : خیرن، ګنده، ناولے، سخا، خیچن.
**خچه** : کچنه، کچه، قچه، وړه (ګوته)
**خڅوزے** : د روټې وړه ټوکړه، پوټے، ذره، بکسکے، ډیر لږ،

**خداپرست** : د الله تعالیٰ عبادت کونکے، الله منونکے.
**خدا نخواسته** : خدایے مهٔ کړه.
**خداوند** : خدایے پاک، مالک، آقا، الله پاک.
**خدائي** : خدایے والے، خدایے کیدل، صاحبي، مالکي، دنیا، د خدایے دپاره، مخلوقات.
**خدایے تعالیٰ** : الله پاک، الله تعالیٰ.
**خدایے زده** : د تعجب کلمه، خدایے خبر، خدایے پوهیږي، خدایے ته پته ده.
**خدایے ګو** : د قسم کلمه، په خدایے قسم، په الله قسم، په خدایے مې دې قسم وي.
**خدشه** : ګړبړلے، نوکاره، شوکاره، تاوان، ضرر، نقصان، ویره، فکر، اندیښنه،
**خدعه** : چل، فریب.
**خدمت** : خدمت، تابعداري، چوپړ، نوکري، مزدوري، کار، کارنامه،

**خدمتګار** : خدمت کونکے، چوپړ وهونکے، نوکري کونکے، مزدوري کونکے،
**خدمتي** : خدمتګار، خدمت کونکے،
**خدنګ** : سپین سپیدار، یوه ونه چې د غشي لرګے ترې جوړیږي. غشے، نیغ ختلے څیز، لوړ ځوان، څیزګے،
**خدوخال** : کړهٔ وړهٔ.
**خر** : د اس د خاندان یو ښناور چې عام طور سره خړ رنګ او وړدهٔ غوږونه لري. بیوقوف، کم عقل، بې عقله، ضدي.
**خراب** : وران، ویران، تباه، برباد، د اباد ضد، بد.
**خرابات** : شراب خانه، فضول خرچي، بدعملي، فحاشي.
**خراباتي** : شرابي، فضول خرچه، بدعمله، وران کارے.
**خراب ترا ب** : وران ویجاړ، تباه برباد، در په در.
**خرابه** : د خراب مؤنث، بدفعله ښځه، کنډر، کنډواله، هغه زمکه چې د کرلو جوګه نهٔ وي.
**خراج** : مالیه، قلنګ، محصول، باج.
**خراد** : څرخ، یوه آله چې وسپنه یا لرګے پرې تراشلے یا جوړولے شي. د وسپنې یا د لګرې د تراشلو هغه کار چې په خراد کیږي.
**خرادي** : په خراد کار کونکے.
**خراش** : خرپ، خاپ، نښه، زخم، ګریدنه.
**خراشکے** : بلغم، ګړه بی، کړخه، خړپ، خراچکے، ګرولے، توکاني، خروشکے.
**خرافات** : اپلتې، اوتې بوتې، بکواس، بې هوده خبرې.
**خرام** : د نازو نخرو حال.
**خرامان** : په نازوادا ګرځیدونکے، په مکیز مکیز

قدم اخستونکے، ورو ورو په قلاره تلونکے.

**خوبشوئے** : خنزیر، سور، سر کوزے. بدخویه.

**خربوزه** : یوه غونډه شان خوږه میوه، ختکے.

**خربون** : د خرو خرونکے، خربه.

**خربه** : خربنے،

**خر بیشویے** : سوډر، سوور، خنزیر، خربیشو، خربیشے، بدځناور، بد لیوهٔ، سپک، د بد خوئ خاوند، شیطان، کمینه، شرارتي.

**خرپ** : په تیرهٔ ځیز لکه توره چاړهٔ وغیره د څهٔ ځیز د وهلو یا ماتولو آواز. نښه، چاپ، خاپ، دبدبه، کبر، لوئي.

**خرپهار** : خرپهار، د خرپ اواز.

**خرپل** : وهل، تکول، لتهول.

**خرتیزه** : د خر مستي، خرتیز که، ترپ، تهوپ، غورځنګ، بې تمیزي،

**خرچ** : خرخ، لګښت، تاوان.

**خرچه** : خرخه، لګښت، د تلو راتلو کرایه، د خوراک د لګښت پیسې، اخراجات، هغه فالتو ټوټې چې درزیان ئ په لستونو یا کالرونو کښې لګوي.

**خرخ** : خرچ، لګښت،

**خرخوړے** : ښادر کوټے، وړوکے ښادر، د بار ګیر ځناور د کتې لاندې د اچولو دپاره د توشک په نمونه یو شے.

**خرخول** : په بیعه ور کول، لګول، خرخ کول، زباتول، د احسان په توګه یو شے بار بار یادول.

**خرخي** : خرچي، خرخ کونکے، لګښت کونکے، مصرف.

**خرخره** : د اس یا نورو

داسې حيواناتو د ګرولو آله،
**خرخشې :** فتنې، د زړهٔ وسواس، د ماشومانو ضد.
**خرخوړی :** ګرداب، ګرداؤ، غرندی، خرخوړے، ډوغله، کنده.
**خردجال :** د دجال د سورلۍ خر، خردماغ، بې وقوف، کم عقل.
**خرډګ :** خرډګ، بې عقله، پلنې پلنې پاڼې لرونکے یو بوټے، غټ آله تناسل لرونکے سړے.
**خرس :** میلو، یږ، ھږ،
**خرطوم :** خرټم، خرتم، خلتم،
**خرګی :** خره ګونګټه، د پشکال يوه ګونګټه، په وښو کښې پيدا کيدونکے يو قسم چينجے، وړه خره، کم عقله جينۍ،
**خرم :** خوشحاله، تازه، خوبښ.
**خرما :** خجوره، کجوره، قجوره، يو قسم ونه او د هغې ميوه.
**خرمانی :** يو قسم ونه او د هغې ميوه. خوباني، مخاني.
**خرمستي :** مستي، بې تميزي، انډوخر، بې ډبه، او نامنظمه لوبه يا مستي، فضول خرچي.
**خرمهره :** خرموره، يو قسم دانه چې د خر په څټ راخيژي او د وخت تيريدو سره ترې هډوکے جوړ شي، څنې خلق دغه هډوکے وباسي او د کوډو دپاره ئې پکاروي.
**خروار :** د خرهٔ بار، د وزن په مختلفو ځايونو کښې مختلف مقدار.
**خروش :** د قهر او غضب نعره، شور، د جوش د توري سره يو ځاے راتلونکے توږے لکه جوش خروش.
**خروله :** وله، يو قسم ونه، الچوغ.
**خريد :** خريداري، په قيمت

اخستل.
**خریدار** : په بیعه اخستونکے، په قیمت اخستونکے.
**خریداري** : په بیعه اخستنه، د قیمت په بدل کښې اخستنه.
**خریف** : د منې موسم، د منې فصل، هغه فصل چې په منې کښې پخیږي.
**خریل** : خریل خرئیل، کلول، نوستل.
**خریړے** : دړونے، دورنګ، خومیه، خرډکی، حریږکے، سماروق، پوڅکی، ستورے، مزکنے، ګوڅے، مرخیړے، خرړے. په پیو کښې د شوملو د دارې په وجه وران شوي پیئ چې یو قسم خوراک دے. وران ماستهٔ.
**خریمه** : د خرې ګرمیدنه، هغه خره چې خر غواړي، د خرې وار راوړنه.
**خرییل** : خرول، خرئیل، کلول، کل کول.
**خړ** : خاورین، خاکي، خاورې رنګه، ملامته، پړ، شرمنده، خجل، په خاورو لړلے،
**خړبخن** : خړبوژن، خړ رنګے، خاکي رنګ، خړچک، خړ رنګ ته مائل.
**خړپړ** : په خاورو کښې لوغړیدلے، خاکي رنګ، سپیرهٔ، ساده.
**خړتم** : خلتم، د هاتي د وجود هغه اندام چې اوبهٔ پرې څښي او خلې ته پرې ګیا راتاووي.
**خړتمي چرګ** : خړتم لرونکے چرګ، پیتے.
**خړوب** : اوبهٔ شوے، سیراب شوے، پنه.
**خړول** : خړ رنګ ورکول، شرمول، مغلوبول، په اوبو کښې خاورې اچول.
**خړه** : خاړه، لهه، سیلاب راوړې ختې، هغه خاوره چې سیلاب د پورته علاقو نه میداني علاقو ته راوړي،

تیارهٔ، مابنام، خړ مابنام، دوند، خړ سحر، دشمني، مخالفت، نری وریخ، د خړ مؤنث.

**خړیس** : خړیسن، دیو، غټ، لوړ، تاپړ، ستر، ګګر، ثورب، ناراسته.

**خړي** : لوړ بول، ډکې متیازې، غل.

**خړیدل** : خړ پړ کیدل، سپیرهٔ کیدل، خاکي کیدل، ککړیدل، شرمیدل.

**خړې** : خیټو، خیټور، ګیډه ور، ګیډ غاړې، ډیر خوراکه، خیټه، ګیډه، د بنیادم ډکې متیازې، بول،

**خزان** : د بهار ضد، منې، د اوړې او ژمي منځنې موسم، د ژمي د مخې موسم چې د ونو پاڼې پکښې رژي، زوال، بې رونقي.

**خزانچي** : خزانه دار، خازن، خزانه ساتونکې، په خزانه کښې د روپو ذمه وار.

**خزانه** : خرزانه، هغه ځای چې پکښې روپۍ، پیسې، سرهٔ زر او سپین زر ساتلې شي. روپۍ، مال دولت، بینک،

**خزله** : خځله، خاشه. یو قسم بوټې چې جامې پرې وینځلې شي.

**خزنده** : حشره، ماران، لړمانان، چینجي، میږي، وینهٔ او داسې نور چینجي چې سوړو او کوټونو وغیره کښې وسیږي.

**خزه** : خازه، د قبر تیږه، شناخته، د قبر ډبره،

**خس** : خسې، چخچې، لږ ثیز، کم مقدار، کک، بې ارزښته ثیز، لرګې، بالن، خشاک، قطره، تیکه.

**خسا** : سخا، خوسا، خراب، ورروست، بدبویه، چې چینجي پکښې شوي وي.

**خساره** : تاوان، نقصان، زیان.

**خسته** : زده، زېلے ، بدحال، پـریشـان، بسـمـې بسـمـې، خـړین، خـفـه، زهیر، ژوبل، زحمت.

**خس خشاک** : خل پل، بالن، بالن.

**خسر** : خسـر، سـخـر، د سړي د ښځې پلار یا د ښځې د خاوند پلار.

**خسر گنی** : سـخر گنی، د سخر کورنی.

**خسره** : د زمکو وغیره هغه فهرسـت چـې پټـواریان ئ د زمیـدار د نـوم ملکیت د رقبې او د فصل د تفصیل د یاداشت دپاره پکاروي.

**خسک** : مـونګن، کټمل، سـرخک، منګوړه. خاشه، د مـاشـومـانـو یـوه بیماري، کم اصل، بداصل، هغه میوه دارې ونـې چـې قلم پکښې لګیدلے وي.

**خسمانه** : غمخوري، پالنه، غمخواري، ضمانت.

**خسوف** : د سپوږمی تندر نیول.

**خسیس** : شـوم، کنجوس، بـخیـل، سخت، سپیرهٔ چې نهٔ پـه ځـان خـرچ کـوي او نهٔ په بل.

**خشاک** : د سوځولو لرګي، بالن.

**خشـخـاش** : قشـقـاش، قـاشـقـاش، خـاش خـاش، د کوکنارو یا ډوډې د غوټو هر رنګه میده میده تخم،

**خشک** : وچ، شنډ، کلک، بې اوبو، سپور، بې تمه.

**خشکه** : وچه زمکه، د ترې ضـد، خشـکـې، سـاده پیـکـه یشیدلې وریژې، هغه اوړهٔ چې نـانبـایـان ئ پـه تختـه د پیړو لاندې اچوي، سیاهي چوس.

**خشکي** : وچـه زمکه، وچه میـوه، تند خوئ، غصه ناک، سـختې، سپوروالے ، د سر یوه بیماري.

**خشم** : غصه، قهر، سوخت،

خفکان. ګرمي.
**خشوع** : عاجزي، انکساري.
**خښتګ** : د پـرتـوګ د منځ تړونه.
**خښته** : لـه ختـې د قالب په ذريعه جوړ شوے هغه مستطيل نـما سلـه چې د مکانانو پـه جوړولو کښې پکارولے شي.
**خـصلت** : عـادت، خوئ، غـونـے، ذاتـي صفت، کردار، تـاثيـر، خـاصيـت. طبيعـت، مزاج.
**خـصم** : دشـمـن، مـرخے، ميـرخـمـن، ميـرخن، ميـرخ، ميرخے، خاوند، مالک.
**خـصـمانـه** : څـوکـی، څـوکيـداري، نـګـرانـي، امن کښـې ساتنه، سلامتيا، په نظر کښې ساتل، پالنه.
**خـصمړے** : خـاوند مړے، يو کنځل.
**خصوص** : خـاصونـه، پـه فرق کونه، ځانګړې کونه.
**خصوصاً** : په خاص ډول، پـه تيـره، عـلـي الـخصوص، خاصتاً، په تيره تيره.
**خـصوصـي** : يـواځـې، يـواځيـنـے، خـاص، پـه خـاص ډول، په خاص شکل، په خاص نظم، شخصي، د ځان.
**خـصوصيـت** : خـاص خوئ، خاص خوئ او صفت، خوبي،
**خصومت** : دشمني، بدي، عداوت، دښمني.
**خـصي** : تـکيـدلے څاروے چې پـه مـاده د ختـلـو قابل نۀ وي.
**خضاب** : وسـمه، د سپينو ويښتـو د تـورولـو رنګ، د نکريزو اوړۀ کړې پاڼې.
**خـضر** : د يـو پيـغـمبر نوم، رهبر، لار ښودونکے.
**خضوع** : تواضع، عاجزي، خـاکسـاري، کـم نـوسـي، کميني.
**خط** : چيـټـی، ليکلے کاغذ، ليک، تـحـرير، کرښه، د څو

حجامت، تازه راتـو کیدلې زیره.
**خطا** : جرم، قصور، غلطي، خطائي، تیروتنه، غولیدنه، په نښه نهٔ لگیدنه، نارسا، کم اصل، بدذات.
**خطاب** : تقریر، کلام، خبره.
**خطاط** : خوش نویس، ښهٔ خط لیکونکے.
**خطاطي** : د خطاط پیشه او کار.
**خطاکار** : خطا کونکے، تیروتونکے، سهوه کونکے، گناه گار.
**خطائي** : خطا، گناه، غلطي، تیروتنه، خطا کیدنه، په خطا یو کار کونه، په هیره سره کونه، غلطیدنه.
**خطبه** : د خطیب خبرې، خطابه.
**خطر** : خطره، هغه څهٔ چې د تباه کیدو او هلاکت سبب جوړیږي. تاوان، ضرر، زیان، د ځاني یا مالي زیان احساس یا امکان،
**خطرناک** : د خطر نه ډک، پرخطر، د خطرې، خطري، خطر لرونکے.
**خطره** : وګورئ خطر.
**خط کش** : پیمانه، هغه آله چې په کاغذ یا لرگي پرې کرښې راښکلے شي.
**خطه** : د زمکې یوه حصه، ملک.
**خطیب** : خطبه لوستونکے، خطبه ویونکے، واعظ، ویاند.
**خطیر** : ستر، مهم، غټ.
**خفا** : پټ، پټ په پټه، په پټه.
**خفت** : سپکوالے، سپکتیا، سپکه، د ثقل متضاد.
**خفتن** : ماسخوتن، د ماسخوتن وخت.
**خفقان** : خپگان، خفگان، د زړهٔ درزیدنه، یو مرض چې د زړهٔ حرکت پکښې تیز شي او زړهٔ زر زر ټوپونه وهي، ډیر

زیات وهم، دلگیرتیا.
**خفګي** : ناراضګي، قهر، غصه.
**خفه** : ملال، غمګین، ناراض، سوخت، بې طبعې، قهریدلے،
**خفي** : پټ، غلے، ناڅرګند، د جلي متضاد.
**خفیف** : لږ، کم، کم وزنه، تت.
**خفیه** : پټ، په پرده کښې، په راز کښې.
**خلا** : تش ځاے، تش والے، په هوا کښې خالي ځاے، ډډون.
**خلات** : د بادشاه له طرفه د جامو بخشش، پوښ، هغه پیسې چې د لور د وادهٔ په وخت د زوم له طرفه د ناوې ماما ته ور کولے شي. د کوژدنې په وخت په حاضرو خلقو کښې د جینې یا د هلک د پلار له طرفه د پیسو ویشنه.
**خلاص** : خشے، پرانستے، ازاد، بې غمه، ختم، تمام، وزګار، انزال.
**خلاصه** : لنډون، لنډیز، لنډه، تلخیص.
**خلاصے** : خلاصون، ازادي، خپلواکي، خوشے کیدنه، علاج، چاره، چل.
**خلاف** : مخالفت، ورانے، د موافقت ضد.
**خلافت** : د پیغمبر جانشیني، نیابت، امارت، امامت، په مسلمانانو کښې د حکومت یو طرز، د خلافت تحریک چې هندوستان او نورو اسلامي ملکونو د خلافت عثمانیه د بحال کیدو دپاره چلولے وهٔ. د پیر جانشیني، د پیر د طرفه خپل مرید ته ور کړې شوې اجازه.
**خلاف ورزي** : خلاف کونه، اصول ماتونه، قانون ماتونه.
**خلال** : نرے لرګے چې د څهٔ څیز په منځ کښې ایښودے شي. د څهٔ څیز منځ، د ګوتو

تیرونه، د چاراندام په وخت کښې لوندې ګوتې تیرونه، د نارنج پوستکے یا ګاڅره چې نرۍ نرۍ پرې شي.

**خلاڼي** : ... انې، فضائي.

**خلپل** : حس و حشاک، خځلې، خاشې پاشې، د کونځلې میده خاورې، ذرې، خلپلې.

**خلتګی** : بوجګی، کڅوړی، بوځخکی.

**خلته** : کوټ، قمیص، کرته، کرتې، خرجې، کڅوړه، کڅوړی، پاکټ، لفافه، خلیته، سرپوښه ټوکری، جلته، د مرزو د ساتلو پنجره، ابره، اچار.

**خلجان** : فکر، اندیښنه.

**خلخل** : لوړے، ارت بیرت، بې اندازې لوړے، بې جوړه غټ، بې طریقې غټ.

**خلط** : ګډوډ، ګډوله، ګډ شوے، بړطرف، وتل، هغه طلاق ته وائې چې د مال په بدل کښې ور کړے شي.

**خلع** : موقوف، له ځایه لرې شوے، بړطرف، وتل، هغه طلاق ته وائې چې د مال په بدل کښې ور کړے شي.

**خلعت** : وګوړئ خلات.

**خلف** : ځوے، صالح اولاد، ځاے نیونکے، وروستو راتلونکے، جانشین.

**خلفاء** : د خلیفه جمع، خلیفه ګان، قائم مقام، جانشینان.

**خلق** : پیدا کونه، پیدائښت، خلک، اولس، مخلوق.

**خُلق** : عادت، خوئ، طبیعت، رفتار، سلوک، کړه وړه، ګزاره، ژوند.

**خلقت** : پیداوښت، خوئ، مزاج، طبیعت.

**خلقت** : عالم، اولس، مخلوق،

**خلقت** : مروت، خُلق.

**خلقه** : خلق، مخلوقات، مخلوق، ګن خلق.

**خلقي** : فطري، ذاتي، قدرتي، ازلي، پیدائشي.

**خُلقي** : خوش خلقه، خوش

خوبه، د ښو کړو وړو خاوند، خوش اخلاقه.
**خلک** : وګـړي، خـلق، خلګ.
**خـلکه** : وړد او ارت بیرت قـمیص، هغـه قـمیص چې ګــریوان ئې خـلاص وي. د پـخوانو مشـرانو سرو عامې جامې،
**خلګ** : وګورئ خلک، خلق، وګړي، اولس.
**خـلګی** : پپـه، چپـه، خـلۀ، وړه ښـائسته او غـونډه مونډه خلۀ.
**خلل** : نـقص، عیب، ضرر، غـش، فساد، ورانے، اړ، خنډ، خـار، پـه یو کـار سـره تباهي راوستنه.
**خـللي** : ضـرري، نـقصاني، زیـان رسـونکے، مضر، ضرر رسـونـکے، هغه څوک چې د خلقو په منځ کښې فساد پیدا کوي.
**خـلوت** : ګـوښـه کیدنـه، ګـوښه کیري، ځان ته کیدنه، ځـان تـه والـے، ځـان له والے، ګوشه، ګوښه، هغه ځاے چې بل څوک پکښې نۀ وي.
**خـلود** : تـل تـر تـلـه والے، هـمیشـه تـوب، همیشه والے، جاودانیت،
**خلوص** : اخـلاص، پاکي، ســادګــي، د زړۀ لـه کومـي، خالصیدنه.
**خلۀ** : شونډې، ژبه، غاښونه تـول چـې پـه کوم چو کاټ کښې ګیر وي، پپه، کوکی،
**خلۀ ور** : د ښې ژبې خاوند، هـغــه څـوک چـې ښـې او فـصیحـې خبـرې کوي، خبر لوځ، ویاند خلور،
**خلیج** : پـه دریاب یا سمندر کښې د اوبو هغه برخه چې په وچـه کښې وراندې تلے وي، لکه د بنګال خلیج.
**خلیفه** : قـائم مقام، د پیغمبر جـانشیـن، امـام، د خـلافت مشر، د پیر په ځاے ناست.

**خليق** : لائق، وړ، سزاوار، د ښهٔ خوئ او خلق خاوند، د ښهٔ خصلت خاوند، د ښو کړو وړو خاوند.

**خليل** : د الله تعالیٰ دوست، د حضرت ابرهيم عليه السلام لقب.

**خلے** : خس، ډکے، چخچرے، وچوکے، ککَ، ډير وړوکے لرگے.

**خِم** : کوږوالے، پيچ.

**خُم** : لوے خاورين لوښے چې سرکه، اوبهٔ شراب پکښې اچولے شي. او کله کله پکښې رنگريزان جامې يا نور څيزونه هم رنگوي.

**خمار** : د شرابو د نشې د ماتيدو حالت. د نشې اثر.

**خماري** : د نشې نه ډک، مستانه، ښائسته، سرې (اکثر د سترگو د صفت په طور راځي.)

**خمبه** : گودام، زيرمه تون، غټ کندو، د غلې ساتلو او ايښودلو لوے لوښے، گودرې، د کوټې چن، د کوټې وسې.

**خمبير** : خمبيره، خمير، خومبره، خريمه مايه، هغه لواندهٔ اوړهٔ چې د اوړو اخښلو په وخت په اوړو کښې گډولے شي.

**خمتا** : خامتا، بيتی، کرباس، خنتو، خنتا، په کډې جوړه شوې غټه کپړه.

**خمچ** : خمچه، د غلې يو قسم، د باجرې روټی.

**خمچه** : د چرگ پنجه، منگله، کچه گوته، خمچ، د گونو او سپږو وهلے غله.

**خمر** : هره نشه آوره مائع.

**خمس** : پينځهٔ، پينځمه برخه.

**خمسور** : ازاد، جفت، جوړه، ملگرے.

**خمسوري** : ملگرتيا، ملگرتوب، ازادي.

**خمسوز** : خام سوز، نيم پخته، کچه، نيم پوخ،

**خمسه** : پنځه، د پينځو عدد، مخمس، پينځه ګونے،
**خمير** : د اوړو تومنه، خومبره، خريمه، خمبيره، خمير مائع، د پتيره اوړو متضاد.
**خميس** : د زيارت ورځ.
**خنازير** : د خنزير جمع، د غاړې يا څټ انځيران.
**خناق** : د مرى يو قسم بيمارې چې زيات تر ئ ماشومانو ته د پينځو کالو تر عمره پورې د لګيدو خطره وي. ډيفتيريا. د ستونې مرض، ازغې، د مرى دانه.
**خنبه** : خمبه، ترټه، د غلې دانې ستر کندو.
**خنثيٰ** : ايجړا، هيجړا، نر ګت، نر ښځے.
**خنجر** : يو قسم چاړهٔ چې دواړه مخه ئ تيرهٔ وي.
**خنځى** : د ښاروي د چچو غوښه.
**خنځې** : په ترخونو او مغانو کښې راختونکې ننکى.
**خنزير** : سر کوزے، خوګ، سوډر، بد ځناور، خنځير.
**خندا** : د خوشحالى، د ګپ شپ يا د عامو خبرو کولو په وخت د شونډو غوړيدنه چې کله کله د خلې نه ورسره غږ هم راخيژي، د ژړا متضاد، رخشند، ريشخند، ملنډې، پيشاړه،
**خندان** : خنداوو، خوشحال، خنده رويه.
**خندق** : خندکے، خنده، خندے، يو قسم ښکارې سپے چې ګيدړو وغيره پسې غارونو ته ننوځي.
**خنډ** : خړے، د چرګ د پښې مونډ، د ونې زخه، د ونې غوټه، سخت او کلک ازغے، خنډوکے، خريزکے، مشکل، ستونځه، تېنګ، تيز، تېنګ ګروبے.
**خنصر** : کچى ګوته، وړه ګوته، خچى ګوته، خمچه

ګوته.
**خنګ** : کرنګ، منجمد، کلک، سخت، وچ کلک.
**خنې خنې** : ریزه ریزه، پوتې پوتې، بسمې بسمې، ریښې ریښې، ګارې ګیتې، پراته کول، بوسکرې وښکل.
**خو** : دروغ، غلطي، چل، په لوبو کښې دروغ او چل. په معامله کښې بدعهدي او ژبه ماتونه.
**خو** : خپه، لګوونې، یږې، درګیران، یژې، شونتې، یو قسم اور اخستونکې ماده چې د ځنې وښو او د ونې پوستکې نه جوړولے شي. د کنې یو قسم، یو تورے چې د لیکن او مګر په معنیٰ کښې راځي. کله کله د استثنیٰ معنیٰ هم ورکوي. عیب، نقص، شک.
**خوا** : طرف، لورے، سمت، پلو، اړخ، مخه، پوجې شوې زمکه، د خشاک نه پاکه زمکه، د کرلو دپاره پاکه زمکه، رابطه، اړیکه، علاقه.
**خوا** : طبع، طبیعت، زړهٔ، خواهش، اشتها، ارزو، هیله، خوښه.
**خوا په خوا** : ځنګ په ځنګ، اړخ په اړخ، اوږه په اوږه، سره نزدې،
**خواجه** : خوجه، صاحب، څښتن، خاوند، مالک، خصي، تکولے شوے (سړے)
**خواخاطر** : خیال، ګومان، خوب و خیال، زړهٔ، یاداشت.
**خوار** : تپ، کمزورے، ضعیف، ډنګر، د چاق ضد، ژوبل، زوبل، بې وسه، غریب، مسکین، بې وزله، حقیر.
**خوارپړک** : ډیر خوار، خوار عاجز، زیات غریب،
**خوارج** : د مسلمانانو هغه ډله چې د حضرت علي کرم الله وجهه خلاف راولاړه شوې وه.

**خوارکے** : خوارنجوکے، خوارنجے، خوارنګړے، خوار، غریب، عاجز، مسکین، بې وسه، بې شتو، په بدني لحاظ کمزورے، ضعیف، ناتوانه.
**خوارول** : له شتو خلاصول، غریبول، مسکینول، خرابول، مفلسول، بته کول، په بدني لحاظ کمزورے کول.
**خوارهٔ** : پریشان، ګډوډ، ویړ بیړ.
**خوارهٔ وارهٔ** : تس نس، نوستي، تتر بتر، تار په تار، تیت و پرک، تیت، پاشان.
**خواري** : محنت، کار کسب، زحمت، ربړ، تکلیف، مفلسي، ناداري، نیستي، قحط سالي.
**خواري کښ** : زحمت کښ، محنت کش، زیار ایستونکے، خواري کونکے.
**خواریدل** : غریبیدل، مسکینیدل، مفلسیدل، ډنګر کیدل، ضعیفیدل، بته کیدل.
**خواری زاری** : سوال زاري، محنت مشقت، هلې ځلې، کړاو، کوشش، په خواری او کړاوونو، منت فریاد.
**خوارهٔ** : د خوراک څیزونه، د خوړو څیزونه، طعام، اتام، غذا، هغه څهٔ چې خوړل کیږي.
**خواږهٔ** : شیریني، د خوږ جمع.
**خواست** : سوال، غوښتنه، ګدائي، دعا، مناجات، امید، التجا،
**خواستګار** : غوښتونکے، رویار، طلبګار، جرګه والا، ریبار.
**خواستګر** : خواست کونکے، سوالي،
**خواشیني** : خفګان، غمژني، غمژنوالے، خوابدي، غمګیني.
**خوابښې** : د ښځې مور، د میړهٔ مور.

**خواص** : نږدې او مقرب کسان، خاص خلق، د خاصيت او خاصي جمع.
**خوالهٔ** : د زړهٔ راز، همرازي، پټه خبره، د زړهٔ راز چاته وئينه، د زړهٔ راز چاته څرګندونه.
**خوان** : پتنوس، څپونړے، کندوړے، مجمه
**خوانچه** : مجمه، دسترخوان، هغه مجمه چې وريژې، قورمه، او نور خوراک پکښې يو ځاے پروت وي.
**خواوشا** : شاوخوا، چارچاپيره، څلور واړه طرفه، ګير چاپيره، ګردچاپيره.
**خواه** : د نومونو او صفتونو لاحقه چې د توريِ په اخر کښې د لګولو سره ترې معنيٰ راولاړيږي لکه نيمه خواه، بدخواه، خواه، طبعه، طبيعت، زړهٔ.
**خواه مخواه** : خامخا، ضرور، ارومرو، چاروناچار.
**خواهشمن** : غوښتونکے، هيله من، خواهش مند، ارزومند.
**خوب** : اودهٔ کيدنه، ويدهٔ کيدنه، بيدهٔ کيدنه، د ويښ والي متضاد، د تيرو شوو يا راروانو واقعاتو په خوب کښې عکس ليدنه، خوب ليدنه، تش خيال، تش تصور،
**خوبا** : معشوقه، شها، محبوبه، شهی، شهو.
**خوبانی** : مندته، خرمانی، زردالو، خرمانی.
**خوبروئے** : ښائسته، ښکلے، پيمخے، اغلے.
**خوبي** : هغه څوک چې ډير خوب کوي.
**خوبي** : صفت، ښهٔ والے، فائده،
**خوپ** : ګرد، غبار، لړه، سخته لړه.
**خوپنی** : کوپنی، پوکنی، پوقنی.
**خوتباد** : د اکو پاړسوب، د

خوټو پړسوب، هغه بيماري چې د بنيادم اګی پکښې پړسيږي.

**خوټکول :** يشول، جوشول، خوښول، داسې خوښ ورکول چې د خټ خټ اواز ترې وخيژي.

**خوټکيدل :** يشيدل، ايشيدل، جوشيدل، خوټ خوټے کول، خوټ خوټ کول، جوشونه وهل، خوټيدل، خټکيدل.

**خوټه :** د نارينه آله تناسل، خايه، اګی، د نارينه اګی، خصيه، دګه.

**خوجه :** خوجو، نامرد، نامرد، ايجړا، نربښځے، هغه سړے چې په جنسي لحاظ نامرد وي. ښښتن، خواجه. خاوند.

**خوځند :** خوځندے، حرکت ورکونکے. خزځيز، شاړيدونکے.

**خوځول :** حرکت ورکول، شوروول.

**خوځيدل :** ښوريدل، خوزيدل، په حرکت کښې راتلل، حرکت کول، کوچيدل، تلل، بې ځايه کيدل.

**خود :** واک، اختيار، حال، اراده، ځکه.

**خود :** هوش، زغم، حوصله، اکر، پخپله.

**خود :** شايد، بايد، پخپله،

**خودارادیت :** په خپله خوښه، خپلواکي، ازادي، د خپل اختيار، خپل سرنوشت ټاکنه.

**خودبين :** مغرور، کبرژن، خودپسند، په ځان مئين، ځان خوښے، هغه څوک چې ځان پيژني او بل څوک ئ د پامه څۀ نۀ راځي.

**خودپرست :** کبرژن، مغرور، خودخواه، په ځان مئين، ځان خوښے، هغه څوک چې خپل ځان وته هر څۀ هر څۀ ښکاري.

**خودپسند** : د خپلې مرضۍ مالک، د خپلې طبعې. ځان خوښے، خود پرست، خودبين.
**خود دار** : د خپل عزت خيال ساتونکے، غيرتي، نر.
**خودداري** : ځنګ کونه، ډډه کونه، ګوښه کيدنه. امتناع، قناعت، صبر. د خودار کيدو حالت.
**خودرو** : خودرويه، طبعي وابښهٔ، هغه بوټے چې پخپله راشين کيږي.
**خودسر** : سرايله وبرايله، پخپل سر، خودرايه، خودسرے.
**خودغرض** : خپل چارے، خپل چاروکے، مطلبي، مقصدي، د مطلب خاوند، مغرض، غرضي.
**خودکار** : هغه مشين چې پخپله کار کوي،
**خودکاشت** : هغه زمکه چې مالک ئې پخپله کري، خپله زمکه په خپله کرونکے.
**خودکُشي** : ځان وژنه، ځان مړ کونه، ځان له ژوندہ خلاصونه.
**خودمختار** : خوداختيار، د خپل واک خاوند، ازاد، خپلواک.
**خودمختاري** : خپلواکي، ازادي، خپل اختياري،
**خودنما** : ځان ښودونکے، ځان ښکارونے، رياکار، کبرژن.
**خودنمائي** : ځان ښودنه، ځان ښکاره کونه، تظاهر، د خپل ځان ښئينه.
**خودي** : کبر، غرور، خودخواهي، خودپرستي، ځانګړتوب، يواځې توب، سد، بيداري، هوش، هوښ، د بيداری حالت، ذات، هستي.
**خور** : د پلار لور، د مور لور، د ورور مؤنث. د پښتو د ځلورو مياشتو نومونه.
**خور** : اخور، د ځاروو او ډنګرو د خوراک او ترلو

ځاېږ، ګیاه، وابښۀ.
**خوړ** : خورک، پوټ، پټ، ځرمن، هغه ځرمن چې د جراحت نه وروستو وچه شي پټرې ونیسي او غورځېدو ته نږدې شي.
**خوړ** : وران، ويجاړ، ویړ، پرانستې.
**خور** : د نومونو سره د لاحقې په توګه استعمالیږي لکه غمخور، سودخور.
**خورا** : بېخي، ډیر زیات، د بېخي زياتو، لږو، ښو، بدو او نورو صفتونو سره د تاکید په ډول راځي لکه خورا ښۀ سړې، خورا زور.
**خوراک** : خوارۀ، غذا، طعام، د خوړلو څیزونه، اتام،
**خوراک څښاک**: خوړنه څښنه، چاۍ پاني، آب و دانه.
**خوراکه**: خوراک، خوارۀ، خوړنه.
**خوراکي دانه** : توره دانه،
**خورجین** : اس پنډوکې، دمبیله، خورجینه، بیړدن.
**خورځه** : د خور لور.
**خورخل** : د قینچې په شان یوه آله چې پسونه پرې سکنلې شي.
**خورد** : چیتاکی، خوړد، د پاؤ څلورمه حصه.
**خورده** : خوړده، خرده، د زیارت یا بل سپیځلي ځاې خاوره یا مالګه چې خلق ئې ځان سره راوړي او خوري ئې.
**خورغود** : بې تمیزه، بې اعتباره، چالاک، دوکه باز.
**خورک** : پټ، پوټکې، پوستکې، خور، د زخم په مخ باندې خروکې یا نرې پوستکې.
**خورلنه** : خورینګه، کومه جینی چې وادۀ شي نو د پلار کنی او د پلار د کلي والو خورلنه ګڼلې شي. خور بللي.
**خورماخور** : وران، کنډوډ، خوروور، ویړ، پروت.

**خورول** : څوک مړول، څهٔ څیز په چا خوړل.

**خورول** : ویرول، تیتول، نشرول، خپرول.

**خوروور** : ګډوډ، بې ډوله، بې ترتیبه، لاندې باندې، نوستلې شوې، خرلې شوې،

**خوریدل** : نشر کیدل، ویریدل، اواریدل، پلنیدل.

**خوری** : پتکړی، پتکری، پتکنی، زنخ، زمچ، زمه، سپین زچ.

**خوړ** : شیله، سم، لګډ، خوړه، توږې، لویه وله چې د باران په اوبو اباده وي.

**خوړل** : روټی خوړل، د خوراک څیزونه په خلهٔ کښې د میده کولو نه پس د مرۍ په لاره ګیډې ته تیرول، غصبول، غصب کول، د چا په مال ګیډه اچول، لګیدل، په ګولۍ یا کانې لګیدل، وهل، سولول.

**خوړه** : خوړ، لګډ، ناؤ، شیله، نرمه زمکه.

**خوړه** : د وادهٔ روټی، د ورا روټی، د وادهٔ نه دوه ورځې مخکښې هغه خوراک یا جنس چې د زوم له کوره د ناوې کور ته راوړلې شي او بیا د رابللو شوو خلقو دپاره پخیږي. د کوژدن یا کویدنې مراسم.

**خوړین** : ډیر پوخ، ښهٔ یشیدلې. ډیر تنګ، تر پوزې راغلې، چاته ډیر سوختیدل، چا سره ډیره کینه ساتل،

**خوړینول** : پخول، د اندازې نه زیات پخول، ورستول، پوده کول، خپه کول.

**خوړینیدل** : پخیدل، ډیر زیات پخیدل، ورستیدل، پوده کیدل، امباری کیدل، خپه کیدل،

**خوزول** : ړقول، شوررول، خپورول، ښنډول، حرکت ورکول، بیدارول، خوځول.

**خوزیدل** : ړقیدل، ښوریدل،

شوریدل، له یوهٔ ځایه بل ځای ته کیدل. زنګیدهٔ.

**خوږ** : درد، ناروغي، مرض، هغه درد چې د ناروغی له کبله وي. ژوبل، زخمي.

**خوږ** : د تریخ متضاد، شیرین، خوندور، لذیذ، مزیدار. په زړهٔ پورې، ګران.

**خوږلت** : خوږوالے، خوندوروالے، شیریني. شیرین ژباني، خوږې خبرې کونه.

**خوږلن** : ایره خول، تودې ایرې، پوړندے، د سرې اور.

**خوږمن** : دردمند، دږمن، دردیدلے، خوږ شوے، همدرد، خواخوږے.

**خوږول** : شیرینول، خواږهٔ وراچول، په زړهٔ پورې کول، خونده ور کول، مزه ناک کول، په سودا کښې لږ شان زیات ور کول، په جوارئ کښې داؤ غټول، نرخ لږ شان وچتول.

**خوږول** : زخمي کول، دردول، ژوبلول،

**خوږه** : شیریني، بوره، پلمیټ،

**خوږه وله** : ملتې، ملتي، خوږ لرګے، یو بوټے چې په دارو کښې پکاریږي.

**خوږیدل** : شیرینیدل، خوږ کیدل، خوند ښهٔ کیدل، د نرخ وچتیدل، په جوارئ کښې داؤ زیاتیدل.

**خوږیدل** : زخمي کیدل، ژوبلیدل، دردیدل.

**خوسی** : ښاپیرک، اسمان چکالے، اسمان څکالے، ماښام چکالے، شوپرک.

**خوسے** : سخے، د غوا بچے،

**خوش** : ښهٔ په زړهٔ پورې، خوشحاله، هغه لاحقه چې د ځنو اسمونو سره ولګولے شي نو صفت ترې جوړ شي لکه خوش طبع، خوش اخلاقه.

**خوشاتارے** : خوشکے، لړ، خشے، خشتارے،

خــوشــاتــر، خــوشــاتــنــک، خوشاتې.
**خــوشــاتــر** : وګــورئ خوشاتارې.
**خوشامدګر** : خوشامدګر، خوشامندې کونکے، چاپلوس، چــاپــړوس، د بــل صــفــتــونــه کــونــکے، پــه ژبــه څټونکے، چمچه، چمچه ګیرې کونکے.
**خــوشــامــندګر** : وګورئ خوشامدګر.
**خوشامندي** : چــاپلوسي، خوشامدګري، چاپړوسي.
**خــوشبو** : ښــهٔ بــوئ، ښــه وږمه.
**خــوشــبــودار** : ښــهٔ بــوئ لرونکے، خوشبویه.
**خوشبوئي** : ښهٔ بوئ کونه، ښهٔ بوئ،
**خــوش بویــه** : خــوشــبــوئي لـرونـکـے، چـې ښهٔ بوئ ترې خيژي.
**خــوشــت** : جــب جــوب، لوند، لوند خوشت.
**خوشول** : لوندول، لمدول، جب جوبول، ښهٔ لوندول. وهل ټکول.
**خــوشــيدل** : لـــونـــديـــدل، لـمـديـدل، جب جوب کيدل، وهلے کيدل،
**خــوشــحــال** : خــوشــال، خــوښ، چې طبيعت ئ جک جوړ وي.
**خــوشــحــالــه** : خــوشــالــه، خوښ، په مزه کښې،
**خــوشــخبري** : ښــهٔ خبر، زيرے.
**خــوشــخط** : ډيــر ښــهٔ او ښائسته ليک، ښهٔ ليکونکے.
**خــوشــخطي** : ښائسته او ښکلے ليکنه.
**خوشکے** : لړ، سوړ، ايله ګــرد، خــوشــے، خشے تشے، بيکاره سرے.
**خــوشــنــود** : خــوشــحــالــه، خوښ، په مزه کښې.
**خــوشنودي** : رضـامـندي، خوشحالي.

**خوشه** : غنچه، ګچه، ګاتهلي.
**خوشې** : چټې، عبث، بې ځایه، بې ګټې، ویړیا، مفت، مجاني، خلاص، ازاد، ایله شوي، وزګار، تش، خالي.
**خوښ** : خوشحاله، خوشاله، غوره، چوڼ شوی، منتخب.
**خوښول** : خوشحالول، چوڼ کول، راضي کول، انتخابول، غوره کول، چاڼول.
**خوښه** : رضا، میل، رغبت، انتخاب، غوره کونه، چاڼ، چوڼ،
**خوښېدل** : خوشالیدل، خوشالیدل، رضا کیدل، انتخابیدل، غوره کیدل.
**خوف** : ویره، ډار، بیم، ډر.
**خوفناک** : ویرونکی، یرونکی، بیرونکی، ډارونکی، ډرونکی.
**خول** : تاج، د وسپنې ټوپي چې د جنګ په وخت کښې پکاریږي. د کارتوس پټاخه، استر، پړو، تیکی، غلاف، پوښ، پوش.
**خولګۍ** : وړه خلۀ، کوکۍ، کوچنۍ خلۀ، خولګوټې.
**خوله** : هغه اوبۀ یا لوندوالی چې د ګرمۍ، بیماری یا شرم له وجې د وجود نه وځي. د اوبو بخارات.
**خولۍ** : پګړۍ، ټوپۍ، پړکۍ.
**خولې** : سرۍ، د ستنې برغولی، هغه لرګی چې د ستنې په سر د تیر د ټینګولو په غرض د تیر لاندې ایښودی شي.
**خوم** : خُم، هغه لوی مټ چې رنګسازان پکښې جامې رنګوي. د اوړو یا ګوړې چاټي، د شرابو چاټي.
**خون** : وژنه، قتل، قتل نفس، مړینه، وژله، بې ګناه وژنه، وینه، د قتل په وخت کښې د دیت یوه ټاکلې اندازه چې نرخیان د هغې په قرار د قاتل

په ذمه د مقتول دیت تاکي. د ناغې یوه تاکلې اندازه چې د ژوبلې په وخت استعمالیږي.

**خوناب** : سراوبې، زیړوبې، زوه، زروبه، ژوې، هغه نو چې وینه ورسره یو ځای وي.

**خون بها** : دیت، هغه مالي بدل چې قاتل ئې د مقتول وارثانو ته ورکوي.

**خونخوار** : قاتل، خوني، ظالم، د وینې څښونکی،

**خوند** : لذت، اثر، مزه، ذائقه، ښائست، سینګار، ډول.

**خوندناک** : خوند لرونکی، مزه ناک، خونده ور.

**خوندي** : ساتلی شوی، محفوظ، پټ کړی شوی.

**خونریزي** : وینه ضائع کونه، وینه تویونه، وژنه، قتلونه.

**خونړی** : خونخوار، خوني، قاتل، وژونکی، وینه تویونکی.

**خونکار** : خوني، قاتل، خونونه کونکی،

**خونه** : کور، کالهٔ، مکان، کوټه.

**خوني** : قاتل، خونخوار، خونړی، ادم کش، وینه تویونکی، انسان وژونکی.

**خوڼ خوږی** : ګنس، ګڼا، چې پوزه کښې خبرې کوي،

**خوئ** : عادت، خصلت.

**خوئ بوئ** : خوئ خصلت، عادت، تربیت، تربیه،

**خوید** : خید، د اوربشو شین فصل چې خلق ئې څاروو له ریبي.

**خیابان** : واټ، د ښار یا باړ په منځ کښې لویه او فراخه لار، د ګلونو کیاری.

**خیار** : انتخاب، واک، اختیار، واک لرونکی، خیال. آپشن، هغه معاملې ته وائي چې د هغې په بنیاد معامله کونکی یو څیز په معین وخت کښې او د تاکلو شرو شرائطو مطابق اخستلی او خرڅولی شي.

**خیاط** : درزي، ګنډونکے، د ریشو او داسې نورو شیزونو ګنډونکے.
**خیاطي** : د جامو ګنډلو کسب، درزي توب.
**خیال** : فکر، سوچ، تصور، پام، ګومان، وهم،
**خیالي** : د خیال، فکري، تصوري، ویاړ کونکے، ډولي، سنګاري، سنګار کونکے.
**خیام** : تمبو، یا خیمه جوړونکے، درزي.
**خیانت** : دوکه، بدنیتي، درغلنه، عذر، بې ایماني، امانت نهٔ ساتل.
**خیچن** : خچن، خیرن.
**خید** : وګورئ خوید.
**خیر** : شرمنده، غصه، سوخت، تیار،
**خیرج** : شرمنده، نادم، خیرخه، خیرجه.
**خیرن** : ګنده، ناولے، چټل، خفه، تور زړهٔ.
**خیرنول** : ناولے کول، چټلول، ګنده کول.
**خیرنیدل** : ناولے کیدل، ګنده کیدل، چټیدل.
**خیره** : چټلتیا، چټلتوب، ناولتوب، ناپاکي، ګندګي، کثافت، چټلي.
**خیرے** : زنګ، ګند، میل، ګندګي، سخاوالے.
**خیږ** : خور، خورګ، د زخم پترے، پترکے،
**خیک** : شناز، لوے مشک چې د هوا نه ډک شي او په سیند کښې پرې لامبلے شي.
**خیم** : جم شوے، کرنګ شوے، کنګل شوے.
**خیمیدل** : ټینګیدل، کنګل کیدل، ټونډیدل، نسکوریدل، ټوټیدل، ځوړندیدل.
**خې** : د الف ب د پټې د دولسم حرف "خ" تلفظ.
**خیټو** : خیټور، ګیډه ور، ډیر خوراکي.
**خیر** : ښیګړه، نیکي، ښهٔ کار، هغه روټۍ یا پیسې چې

سوالګري ته ورکولې شي، خيرات.

**خيرات** : صدقه، د الله پاک په نامه څهٔ ورکونه.

**خيرانديش:** خيرخواه، خير غوښتونکې، خواخوږې، نيک نظرې، هغه څوک چې د خلقو په مخ کښې خير او صلح غواړي.

**خيربرکت** : برکت، ښيګړه، ترقي.

**خير پخير** : سترې مشې، جوړ تکړه، عليک سليک، د روغ جوړ پوښتنه.

**خيرخواه** : خيرانديش، خير غوښتونکې، خوا خوږې،

**خير خيرات** : خيرات، د الله په نامه څهٔ ورکونه.

**خير خيريت** : روغ جوړ حال، خيرسګې،

**خيرمار** : سوالګر، سوال ګرې، چنګړې، ګدا.

**خيريت** : سلامتيا، قلاره قلاري، خاطر جمعي.

**خيز** : ټوپ، دانګ، ګوپ، جوش، غورځيدنه، زر وده کونه، زر لوئيدنه، د لاحقې په توګه هم استعماليږي لکه حاصل خيز.

**خيږک** : خيږ، پاترې، د زخم د پاسه وچ پوټکې، پوټکې، پټ، پوټ.

**خيږول** : پورته کول، جيګول، لوړول. د چيت ځايه لوړ ځاې ته ليږدول. قيمت وچتول، ارزښت جګول، بيه کول.

**خيش** : خويش، خپل خپلوان، رشته دار، خپل.

**خيښوالي** : خيښي، خپلوي، خپلوالي، رشته داري.

**خيښه** : هغه ښځه چې د زوم د کوره د وادهٔ په شپه د وادهٔ له کالو سره خي او د وادهٔ په ورځ ناوې سره يو ځاې راځي.

**خيښې** : وګورئ خيشي.

**خیل :** ذات، تپــه، تـو کـم، ټبر، خاندان.

**خیلـخانه :** ټبـر، کورنی، خاندان، کورمه.

**خیله** : ایلـه، ایله ګر، پوچ، بـې معنې، کم عقل، چټې، بې مفهومه، ټوقي، ټوقمار.

**خیمه :** تمبو، کیږدی، تامبو.

**د** : (دال) د پښتو ژبې د حروف تهجي ديارلسم حرف چې د ابجدو په حساب ئ شمير څلور (۴) دے.

**دا** : نـزدې څيز يا چاته د اشارې په طور وئيلے شي.

**د اوبو ژرنده** : هغه ژرنده چې په اوبو چليږي.

**داتا** : بخښونکے، فياض، ورکونکے، سخي، الله تعالیٰ.

**داج** : هغه توره تيارهٔ چې سپوږمي پکښې نهٔ وي. د ناوې سامان، جهيز.

**داجي** : وګورئ داداجي.

**داخل** : ننوتے، ورننوتے، چې په څهٔ کښې ئ داخله اخستې وي، شمار کښې راغلے، د خارج متضاد.

**داخل خارج** : په مدرسه يا محکمه مال کښې د اندراج رجسټر.

**داخلول** : ننويستل، دننه کول، داخله اخستل.

**داخله** : کورنے، وطني، د وطن، د ملک، د داخليدو، د ننوتو، د ننه ايستو،

**داخليت** : د خارجيت متضاد، دننه والے، اندروني.

**داد** : شاباشے، شاباسے، تعريف کونه، ورکړه، بخښنه، انعام، بخشش، عدل.

**دادا** : د پلار او مشر ورور دپاره د مينې تورے.

**داد خواه** : داد غوښتونکے، فريادي، مظلوم، مدعي، دعويدار.

**دادي** : داد ورکونکے، عرض کونکے، فريادي، انصاف غوښتونکے.

**دار** : غرغره، پانسي، سولی، صليب، نښه، کور، ځاے، ښار.

**دار** : د لاحقې په طور استعماليږي لکه زمين دار، ديندار، د مرکبو کلمو د وروستي جزو په شکل هم استعماليږي لکه دارالامان، دارالحکومت وغيره،

لرونکې، ساتونکې، تنګ.
**دارالخلافه :** د تخت ځاې، د ملک صدر مقام.
**دارالسلطنت :** پاې تخت، د بادشاه د استوګې ځاې.
**دارالعلوم :** مدرسه، ښوونځاې، کالج، درسګاه.
**دارائي :** شتمني، مال او دولت، پانګه، پنګه، سرمايه،
**دارچيني :** دال چيني، يو خوش ذائقه پوستکې چې په مصالحو کښې استعماليږي.
**دارو :** دوائي، دوا، ګوګړ، بارود.
**دارو درمل :** دوائي، دوا، علاج.
**داروغـه :** د جيل افسر، دروغه، محافظ، نګهبان، افسر، سردار، تانيدار.
**دارومدار :** تيټ پاس، انحصار، يقين، اعتبار، عزت.
**داره :** د مائع څيز پرله پسې ليکه، پشکه، فواره،
**داړل :** چيچل، څيرل، (په غاښونو سره). لوټل،
**داړه :** عموماً د خښتو په جوړ ديوال کښې د بل ديوال سره د جوړ ساتلو دپاره پريښول شوې ځاې، داړا.
**داړه :** وړ د غاښ، تمبه، دروازه، دره، لرګې، ډاکه، شوکه، لوټمار، شبخون، شيشه.
**داستان :** وړه قيصی، قيصه، د واقعې بيان.
**داسي :** دا شان، دغه شان، دا رنګې، دا رنګ، دارې.
**داغ :** تبې، تړکه، بګار، د سوځيدو چاپ يا نښه، نشان، خاپ، خال، خاپې، تور، تهمت، شوملو ته بګار کونه.
**داغي :** داغدار، تهمت زده، آلوده، خاپ لرونکې، داغ لرونکې.
**دال :** يو قسم غله، د پښتو د پتې د ديارلسم حرف تلفظ، دليل.
**دالان :** غولې، صحن،

انګن، ارتــه او لـويـه بـرنډه، باورچي خانه، ميدان، ډاګه.

**دال ساګ** : دال پيتي، د غريبي خوراک،

**دام** : داپ، جــال، لومــه، پـرکـه، پـرته، کوړکی، مکر، فريب، جنجال.

**دامان** : ميره، بيابان، دشت، دشتـه، صـحـرا، بيديا، کوغه، راغه، بيته.

**دامن** : لـمن، لـمنه، پيڅه، ډډه.

**دامي** : هـغـه بـاز چې په دام نيولی شوی وي. جره، کته.

**دان** : د ايښــودو شـــي، د لاحـقـې په ځای استعماليږي لکه قلم دان، نکته دان.

**دانا** : هـوښـيـار، ذهين، نابغه، عقلمند.

**دانائي** : هـوښـيـاري، پوهه، عقل، سوچ.

**دانست** : پـوهــه، فـکـر، خيال، علم، واقفيت.

**دانش** : عـلـم، عقل، پوهه، دانست.

**دانشمند** : عـقـلمند، پوه، عـالـم، پـوی، پـوهاند، دانش لرونکی، دانشور.

**دانشور** : دانـش مند، عقل مند، پوه،

**دانګ** : تـنـګـه، پيسـه. توپ، ترپ، ارغوچکه.

**دانګل** : توپ وهـل، تيز تـلــل، مستـي کـول، دانګ وهل.

**دانـه** : د غـلـې تـخـم، زړی، زړی. ننکی، نينکی، دانوکی، دانـکـی، د هـډوکي نـه جوړه يـوه مـخصوصه ځلور ګوټيزه ګيټی، کـنـجـکـه، داوبو د راوتو سرچينه، خرموره.

**دانـه دانه** : ذرې ذرې، بيل بيـل، تـرمـې ترمې، خورووړ، دانه وانه.

**داړو** : داوړ، ځادر، پړونی، پــټـکـی، چـکـالـه، داړی، ټيکری، پټو.

**داؤ** : چـل، ګـټـکـه، موقعـه،

وار، دؤ، منډه، ځغل، شرط، بازي.

**دائر** : شروع، جاري، پرانستې.

**دائرة المعارف** : هغه کتاب چې ټول انساني معارف پکښې په ترتیب سره راجمع شوي وي. انسائیکلوپیډیا،

**دائره** : چکر، چارچاپیره، غونډه کرښه، ګرده کرښه، حلقه،

**دائم** : تل، مدام، همیشه، تر ابده.

**دائمي** : عمري، همیشه، تل تر تله.

**دائي** : د زیږیدو په وخت مدد ورکونکې ښځه، دائي ګنه، وړه لوبونکي نوکره.

**دائریدل** : شروع کیدل، روانیدل، جاري کیدل، پرانستل.

**دباغت** : خرمن پخونه، څرمن رنګونه.

**دباؤ** : طاقت، زور، اختیار، اثر.

**دباوول** : زوروركول، زورل، د رعب لاندې راوستل، ویرول.

**دبدب** : دبدبه، رعب داب، شان و شوکت.

**دبدبه** : دبدب، شان و شوکت، ټیس ټپاس، عظمت.

**د بوډۍ ټال** : شین زرغون، د بوډۍ کنې، هغه رنګینه کرښه چې د باران او نمر دوارو په موجودګی کښې په اسمان د ټال په شکل جوړیږي، قوس قزح.

**دپاسه** : باندې، پورته، علاوه، سربیره، سرباري.

**دپکه** : دړکه، رعب داب، دباؤ.

**دپکه دړکه** : دړکه، دباب، دباؤ، زورنه ټوکنه، ویره، ترهه، چغړبه کونه، په چا اواز راایستنه.

**دټکارل** : لمسول، پاڅول، تحریکول، پرول، پارول.

**دجال** : کاږے، په یوه ستر ګه ړوند، په اخره زمانه کښې پیدا کیدونکے یو انسان چې خلق به ګمراه کوي، خرځجال، چلباز، ټګ، چل ولي.
**د خاوررو تیل** : خاورین تیل، هغه تیل چې په ډیوؤ او لالټینونو کښې بلولے شي. د سوځولو یو قسم تیل، کیروسین آئل،
**دخول** : داخلیدنه، جنسي فعل، کوروالے، د خروج ضد.
**دخیل** : لاس لرونکے، داخل، داخل شوے، شامل، ورګډ، ورننوتے، برخه لرونکے، برخه اخستونکے.
**دد** : بیهوشه، نشه، دت، ګنګس.
**دد** : داړونکے ځناور، بن ماښو، روے.
**در** : کور، دروازه، دړه، تمبه، ورخخه، قبضه کښې، درلودنه، لرنه.
**دُر** : مرغلره، ملغلره.
**دراز** : د میز خانه، په میز کښې جوړ شوے د سامان ایښودو ځاے. اوږد، لوے.
**درامد** : هغه مال چې د بهر نه ملک ته راشي.
**درب** : یو ډول وابښهٔ چې په ښوره او خشکه زمکه کښې پیدا کیږي. د څهٔ څیز د غورځیدو اواز.
**دربار** : دلبار، شاهي ماڼی، شاهي قصر،
**دربان** : څوکیدار، پیره دار، دروانچي، د دروازې څوکیدار.
**دریچه** : دریخه، کړکی، وړه کړکی.
**دربدر** : در په در، سرګردان.
**دربڅن** : باسي، دوپیا، سخا.
**دربلی** : د دریو پښو میز یا چوکی، درې پریز تپال،
**دربند** : د غرونو په منځ کښې تنګه لار، تاقچه،

تاخچه.

**در په در** : سر وهلے بر وهلے، در په دیکه،

**درته** : تاله، تا ته، درله، ستا د پاره. د مخاطب دپاره استعمال کیدونکې کلمه،

**درج** : لیکلے، په کتاب کښې شامل، په رجسټر کښې ختلے. دبلے، هغه صندوق چې کالي پکښې ایښودے دي.

**درجن** : درځن، دولس خیزونه.

**درجول** : ثبتول، لیکل، خیژول، په لیک کښې راوستل، ځایول، نغښتل، پیچل.

**درجه** : ځاے، رتبه، مرتبه، عهده، منصب، عزت، اندازه،

**درځن** : وګورئ درجن.

**درخته** : ونه، درخت.

**درخشان** : ځلیدونکے، روښان، درخشنده.

**درخواست** : عرض، عرضي، ګزارش.

**درد** : درد، خوږ، ځړیکه، بریښ، سوخت، قهر، غصه، ځور، کړاؤ، مصیبت.

**دردسر** : بغیر د څهٔ وجې مصیبت، بغیر د څهٔ وجې زحمت، د سر درد، سر خوږے.

**دردمن** : دردیدلے، دړدیدلے، دړدمن، دردمند، د قهره ډک، خشک.

**دردناک** : د درد نه ډک، درد لرونکے، دړدیدلے، خوږ، دردمند.

**دردوغم** : دړد او غم، غم دړد، تکلیف، خوږ.

**درز** : چاؤد، چود، چوند، درغوږ، سپاچه، تنګاچه، دبخه، دونکاچه.

**درز** : د څهٔ څیز د غورځیدو اواز، شان و شوکت، شهرت، د شهرت اوازه.

**درزا** : مسلسل درزهار، درزار، د درزیدو اواز.

**درزدروز** : درز غوبل، درز

غرب، شان و شوکت، لوے دبدب، قدر، عزت، خاطرمدار.
**درز غوبل** : درز دروز، غویمنډ، شوروشر، هله ګوله، غوبل، چغې سورې، هئ کوکار، وهل ټکول، رابنکل ترل.
**درزول** : وهل، ټکول، ګرزول.
**درزي** : جامې ګنډونکے، خیاط.
**درزیدل** : ډزیدل، وهل کیدل، ټکیدل، ډبیدل، جرقیدل، پرله پسې درزا کیدل.
**درس** : سبق، لوست، مطالعه، زده کړه، تعلیم، علم، عبرت، پند، جماعت، مدرسه.
**درست** : ټیک، صحیح، سم، راست، موزون.
**درست** : ټول، واړه، کلهم، روغ، واړه، ګرد، ثابت،
**درستول** : ټیک کول، سمول، درست کول، صحیح کول،
**درستول** : پوره کول، تمامول، بشپړول.
**درسته** : وسله، ترکش، د غشو کیښودو کڅوړه، غنچه، ټوله، د درست مؤنث.
**درسي** : درس سره تعلق لرونکے، د درس، درس ته منسوب.
**درشتي** : سختي، کلک والے، بې رحمي، بدخوئي.
**درشل** : د دروازې چوکاټ، درسال، درشائي، درشایه. یو قسم ساګ چې د ګندنې په شان وي.
**درشن** : کتنه، لیدنه، دیدن، نمائش، فیشن، ځان ښودنه.
**درغریبي** : غریبي، عاجزي، نیستي، خواري، کمزوري، خواري مزدوري،
**درغل** : منافق، دروغژن، پریشان، خوار، زوریدلے، ګیر، محاصر، احاطه، بند.
**درغله** : چلباز، ټګ، ټګي

ژن، دو که باز.

**درغلي** : ټګي، منافقت، چل، چلبازي، چلول، ټګي ټوري.

**درغلے** : حاضر شوے، موجود.

**درک** : د دروازې رپک، د خونې غولے، د کور غولے، انګن، پته، نښه، نښانه، بولګه، پته لګته، نښه نښانه.

**درک** : فهم، پوهه، قابلیت، پوهیدنه، تمیز، پیژندنه، هغه معلومات چې انسان ته د احساس په وسیله د چاپیرچل نه معلومیږي.

**درګاه** : استانه، دربار، دروازه، د دروازې خله، درشل، وربوے، زیارت، مزار، روضه، خانقاه.

**درکړي درکړي** : ټوټې ټوټې، درې درې، ذرې ذرې، ډیر سترے، غمژن، تس نس، ګډوډ، وران ویجاړ.

**درمان** : علاج، دوائي، دارو، دارومدار.

**درمانده** : حاجت مند، ضرورت مند، عاجز، بیچاره، غریب، بیوسه، سترے ستومانه.

**درمټ** : د کچه او پوله ځاے د کېنیمنډلو یوه آله، د کانو ټکولو د وسپنې یوه آله، ګرمټ.

**درمسال** : د هندوانو عبادت خانه.

**درمل** : هغه میوه چې پوره پخه شوې نهٔ وي، نیم پخته، کچه میوه، ځوانی ته نزدې چې لا ئ زیره نهٔ وي راغلې، ځوانکے، ژنکے.

**درملتون** : دواخانه، د دارو دکان.

**درمند** : درمن، راټول شوے فصل او غله، هغه ځاے چې غله او فصل پکښې د میده کولو دپاره راغونډ کړے شوے وي.

**درمه** : نل، نے، کرکے، نچه، هغه ډنډر چې منځ ئ تش

وي. د توپک شپیلی، د توپک میل، خواني، د انسان ځیره، ونه، قد.

**درناوے** : دروند والے، احترام، عزت.

**درنجکه** : توپ وهنه، دانګه، درینجکه،

**درنښت** : دروند والے، عزت، درناوے.

**درنګ** : وقفه، ډیال، ایساریدنه، تمیدنه، کان، معدن، وچه، کلکه او هواره زمکه، د رباب اواز، ترنګ، ټنګ.

**درنول** : عزت ورکول، قدر ورکول، قدرمند کول، وزن زیاتول، دروندول.

**درنیدل** : عزت زیاتیدل، عزتمند کیدل، وزن زیاتیدل، دروند کیدل.

**دروازه** : تمبه، ور، دره.

**درود** : د برکت او سلامتیا دعا چې د نبي علیه السلام د نوم اوریدو سره د رحمت د طلب دپاره لوستے شي. ستائنه، دعا، تعریف، صلوٰة، تحسین، شاباسے، سلام.

**دروزه** : د غنمو اوربشو وغیره ډانډې چې وړې ترې جدا کړے شوې وي.

**درون** : دننه، اندرون، زړۀ.

**دروند** : زیات وزن لرونکے ځیز، هغه ځیز چې وزن ئ زیات وي. باعزته، باوقاره، قدرمند، عزت مند، سنګین.

**درونړ** : د نچو (نلونو) ځنګل، نیزار، دروڼے،

**درویشت** : شل او درې، درې دپاسه شل.

**درویزه** : خیر ټولونه، خیر غوښتنه، سوالګري،

**درویش** : خداے ته رسیدلے، ولي، بزرګ، قلندر، فقیر، ملنګ، غریب، مسکین.

**درویشي** : د درویش کار، غریبي، نیستمني.

**دره** : تنګے، ناوه، د دوؤ غرونو تر منځ ځاے.

**درهم برهم :** ګډوډ، وران ویجاړ، بې ترتیبه.
**درهه :** دم، دعا، دم درهه، جادو منتر.
**دري :** د فارسیانو ژبه، د تاجکو ژبه.
**درياب :** رود، سیند، سین، سمندر، بحر،
**دريځ :** منبر، ممبر، لوړ ځای، د ودریدلو ځای. ګډا، نڅا. موقف، استقامت.
**دريم :** عددي صفت چې د دویم او څلورم تر منځ درجه یا رتبه ښیي. د درې صفتي شکل.
**درينچکه :** درنچکه، ارغوچکه، دریننجکه.
**دريه :** د موسیقی یوه لرغونې آله، تمبل، تنبل، داریال، دریال،
**درې :** د دوؤ او څلورو ترمنځ عدد.
**دريشي :** کرته پتلون، کوټ پتلون، وردي، هوارونه، برابرونه، جوړونه.
**درې ښاخي :** د رشې الوځولو، پوګ اړولو، د دروزې راغونډولو او داسې نورو کارونو له پاره پکاریدونکې د لرګي یا وسپنې نه جوړه درې ښاخیزه آله، ښاخی، شانګی، درې غاښی، سکو.
**دریغ :** انکار، آه آه، وش، ارمان، افسوس، وئ وئ، صرفه، سستي، ساتنه، اسره، سپما، دروغ.
**دري غاښی :** په غاښ درې، درې کلنی، هغه څاروی چې درې غاښ ئ کړی وي.
**دريغ من :** ناراض، ناخوښ.
**دريغه دريغه :** د افسوس کلمه، ارمان ارمان، افسوس افسوس.
**دريم :** د درې صفتي شکل چې د دویم او څلورم تر منځ درجه ښیي. په دویم پسې، د

پیر یا ګل ورځ.

**دریمګړے** : منصف، ثالث، دریمان.

**دریمه** : یو رسم چې د وادهٔ ځلمے د وادهٔ نه وروستو سره د ځنو خپلوانو د سخر کور ته په میلمستیا ځي. د مړي دریمه ورځ، د دریم صفتي شکل.

**دریمه خور** : د قمري کال پنځمه میاشت، جمادي الاول.

**درۍ** : د سنو، سپنسو یا د پلاستکي مزو نه اوبدل شوې غټه شډله کپړه چې د ناستې او روټي خوړلو وغیره دپاره پکاریږي، پړ، درئي.

**درے** : پشتي، پشته، اړ، او ورډ تاخ چې په کوټو کښې دننه د لوښو ایښودو دپاره جوړولے شي.

**دړ** : پارسنګ، پاسنګ، دړه، پړسنګ، پانګ، د تلې چابړے، د وزن کاڼے، د بنیادم تنه بوده، اړت، کمیشن، دړت، د دړوائي پیشه، درد، دړد، غټه تله،

**دړد** : دړ، درد، خوږ، څړیکه، بریښ، سوے، تکلیف.

**دړد غم**: پریشاني، خفګان، ګلهوړ.

**دړدیدل** : خوږیدل، دردیدل، تکلیف رسیدل، عذابیدل.

**دړکه** : لعنت ملامت، په خبرو تهدیدونه، دبکه، دپکه، دباؤ.

**دړوائي** : تولي، دړوي، تولګر.

**دړه** : د لرګي ټوټه، د لرګي یا هډوکي نه بیله شوې ټوټه، تخته، د لرګي چاؤد، درز، ونه، قدوقامت، دروازه، د ختکي یا هندوانې ترازه.

**دړه** : د تش لوښي تلل، د تش لوښي وزن کول.

**دړیز** : هغه لوښے چې دړ۔ وزن پکښې ځائیږي، څلور

سیره وزن ځایونکې،
**ډرۍ** : د زنـــانـــؤ د سر یو کالې، ځلور سیره وزن، ځلور سیـــره، د لـوښـو او خوراکـي شیزونو د ایښودو الماری.
**دست** : د اسهال په وخت د عـمـل شمیر یا تعداد، اسهال، د نــس اېلــه کیـدنـه، د نــس جـــارې کیــدنــه، لــه نســه کښیناستنه، ریښکې، پرپرې.
**دستار** : پټـکـې، پګـړی، لونګی، بګړی، لنګوټې.
**دستانه** : پـه لاس د یخنی له کبلــه اچـونـکې پوشاک، د بـجلی ټیک کولو په وخت لاس تــه اچـونـکې پوشاک، دستګله، دسماغو، دسکښه، لاسکله، لاس پییلې.
**دستاویز** : دلیـل، مردک، سـنـد، هر هغه څۀ چې په لاس کښـې وي، وسیلـــه، بهـانــه، پلمه.
**دستخط** : یو نښه یا نوم چې د لیک یـا سـند په اخر کښې لیــکــلـې شـــې. لاس لیک، قلمي، په لاس لیکلې.
**دسترخوان** : وړده څـلور ګوټیزه کپړه وړه یا لویه کپړه چـې روټی پرې خوړے شي، دسترخان، کندورے، رومال، تیګړے.
**دسترس** : لاس لـرنه، په یو کـار یـا مـوضـوع کښې لازمه پـوهـه لرنه، په یوه چاره کښې مهارت.
**دستکاري** : په لاس منقش شیـزونه جوړونه، د لاس کار، کاریګري، استاذي.
**دستګیري** : مرسته، امداد.
**دستور** : رسم، رواج، دود، قـانـون، قـاعـده، لاره، طریقه، فـرمان، امر. رخصت، اجازه، هدایت، لارښودنه.
**دستورالعمل** : هـدایت، لار ښودنه، نصیحت، مراسم، قـانـون، قاعده، رواج، طریقه، اصول.
**دستوره** : دستـور، طـریقه،

قاعده، دود.
**دستونه** : د دست جمع.
**دسته** : لاسکے، لاستے، ګلدسته، ګېډۍ، بنډل، کوده، مرسته، ډله، ګروپ، ټولے، د سپنسو یا ریښمو ګونجی، دوه درجنه کاغذونه.
**دستي** : اوس، سمدستيِ، فوراً، زر په زر، سم د لاسه، د لاس.
**دسمال** : رومال، رومیال، څپوټے، هغه ټوټه چې سر پرې ترلے شي، هغه ټوټه چې مخ لاس پرې وچولے شي.
**دسمبر** : د نومبر او جنورۍ ترمنځ میاشت، د عیسويِ کال دولسمه میاشت.
**دسیسه** : لانجه، حیله، اسباب سازيِ، دروهه، چلوټه، پټ چل، مکر، سوړه.
**دشت** : صحرا، بیابان، بیدیا، دشته، میره، دښت.
**دشمن** : دښمن، غلیم، مخالف، میرځے، بدخواه، خصم.
**دشمني** : دښمني، میرځي، غلیمي، تربګني،
**دشنام** : ښکنځل، کنځل، بدرد، زیرې، سپورې ستغې.
**دښمن** : دشمن، میرځے، غلیم، بدخواه، دښنو، خصم، د دوست متضاد.
**دښمني** : دشمني، بدي، غلیمي، تربګني، رټي، عداوت، غچ، بدخواهي، کینه، ټکه.
**دښن** : وګورئ دشمن.
**دعا** : غوښتنه، حاجت غوښتنه، فاتحه، د مغفرت دعا، پاتا.
**دعاسلام** : علیک سلیک، راشه درشه، دوستي، اشنائيِ، ملګرتیا، ناسته پاسته، تلۀ راتلۀ، ګپ شپ.
**دعاګو** : دعا کونکے.
**دعوت** : بلنه، رابلنه، راغوښتنه، میلمستیا،

**دعويٰ** : دعوا، دعوه، داوه، لانجه، شخړه، دنګله، ونګاله، جګړه.
**دعویدار** : دعويٰ ګير، دعويٰ کوونکے، دعويٰ لرونکے، مدّعي.
**دعويداري** : دعويٰ لرنه، دعويٰ ګيري.
**دغا** : تګي، چل، چم، دوکه، مکر، حيله،
**دغا باز** : دوکه باز، تګ، چلولي، درغل، فريبي، دوکه مار.
**دغسې** : داسې، دارې، دغه رنګې، دا ډول، هم دا رنګ، هم دا شان، دغه شان، د نر غوندې د نر په شان.
**دغلته** : په دغه ځاے کښې، دغه خوا.
**دغومره** : دغه هومره، دومره، په دې اندازه، دومره قدرې، دونې، دونه، دغونې، د دغه هومره عاميانه قرأت.
**دغه** : د نزدې اشارې ضمير لکه دغه سړے، دغه کسان.
**دغه رنګې** : دغسې، دغه رنګ، داسې،
**دف** : دارياال، دريه، تمبل، تنبل.
**دفاع** : د جنګ په وخت له دشمنه ځان بچ کونه، ژغورنه، حفاظت، ځان ساتنه، ځواب ورکونه.
**دفتر** : هغه ځاے چې پکښې سرکاري کار کولے شي، محکمه، افس، رسمي ځانګه، زمکه، پلار ګنے جائداد، وړده قيصې.
**دفتري** : دفتر ته منسوب، دفتري ليک، ديوانيٰ ليک، د دفتر سمونکے، د دفتر د سامان نګران.
**دفع** : شړنه، ردونه، ايستنه کونه، لرې کونه، غلې کونه، قراروڼه.
**دفعتاً** : له واره، ناڅاپه، نابېره، ناخبره، ناګهانه، فوراً، يو په يو، په يو مخ، يکدم.

**دفعه** : وار، خل، نوبت، کرت، د قانون یو شق، د قانون یوه خبره.

**دفنول** : ښخول، زمکې ته سپارل، قبر کښې کیښودل، دفن کول.

**دفینه** : خزانه، ښخه خزانه، پټه خزانه، ښخ کړے شوے مال.

**دق** : نرے رنځ، تي بي، دق سل، تنګ، مجبور، دلګیر، بې وسه، کمزورے، ناتوان، خوار.

**دقت** : غور، توجه، ځیریدنه.

**دقیق** : ځیر، متوجه، پام کونکے، کره، څک، حساس، منظم، نازک، مشکل، ګران، باریک.

**دقیقه** : شیبه، منټ، د یو ساعت شپیتمه برخه.

**دکانچه** : دنکاچه، دونکاچه، وګورئ دکانچه.

**دکتور** : ډاکټر،

**دکن** : سویل، سهیل، جنوب.

**د ګیدړ وادهٔ** : د باران په دوران کښې د نمر ښکاره کیدنه، په شین اسمان باران وریدنه،

**دَل** : نیم میده، درمیانه میده، غټ اوړهٔ، برباد، تباه، مات ګوډ، عبث، ضائع، بې ځایه، دل ګزارې. دلیدلے، دلیده شوے.

**دَل** : یوه خوراکه چې د غنمو میده کړو غنمو او اوربشو نه پخولے شي، او ګره، دلده، میده شوې شاخل چې څاروو له ورکولے شي، د غوا میښو باره کل.

**دِل** : زړهٔ، ړهٔ.

**دلاسه** : تسلي، تسله، ډاډګیرنه، راضي، رضا، خوښ، قانع.

**دلال** : د پلورونکي او پیرونکي تر منځه جوړ راوستونکے، د دوو تنو په منځ کښې د سودا جوړونکے.

بروا، ریبار، اړتیا.
**دلالت :** برهان، دلیل، پوهونه، لارښودنه، عائد کیدنه، هدایت، رعب، عظمت، شان، د دلال کسب او کار، ریباري.
**دلاور :** زړه ور، بهادر، په زړه ببر، شجاع، میړنی سرتیری.
**دلاوري :** زړه ور توب، بهادري، مړانه، زړه ورتیا، تکړه والی، دلاورتوب، دلاورتیا.
**دلبري :** زړه راښکنه، ناز، ادا، معشوقیت، محبوبیت، زړه وړنه، عشوه، نخره.
**دلبند :** په زړه پورې، زړه پورې، د ستر گو تور، د زړه توټه، معشوق، محبوب، لرمون.
**دلته :** دلې، دیلې، دلې ته، دې ځای ته، دې خوا ته.
**دلجمعي :** اطمینان، تسله، تسکین.
**دلجوئي:** شفقت، ډاډگیرنه، مهرباني، تسلي.
**دلچسپ :** په زړه پورې، په طبع برابر، زړه نښلونکی، ښکلی، د مزې، ښائسته،
**دلچسپي :** د زړه کیدنه، شوق، خوښي، په زړه پورې توب، علاقه لرنه، خوند.
**دلداده :** مئین، عاشق، زړه بائللی.
**دلدار :** محبوب، معشوق، گران، خوږ، عزیز، زړه ساتونکی، تسله ور کونکی.
**دلدل :** بوخته، مرغه، جبه زار، چړچوبنه زمکه، چیقړې، ختې.
**دلربا :** زړه وړونکې، معشوقه.
**دلسوز :** زړه سواندی، مهربان، مشفق، هغه څوک چې په غریبانو، بیوسو او مظلومانو ئ زړه خوږیږي.
**دلسوزي :** زړه سواندي، مهرباني، شفقت.
**دلفریب :** زړه لـه دوکه ورکونکی، زړه غولونکی.

**دلکش** : زړهٔ رابښکونکے، زړهٔ وړونکے، ښکلے.
**دلکي** : نرم او مهين رفتار، د اس هوار تګ.
**دلګير** : خفه، زهير، بې چرته، خوابدے، غمګين، غمژن، زړهٔ نيولے، بروس.
**دلنشين** : په زړه کښې کښيناستونکے، په زړهٔ اثر کونکے، زړهٔ کښې.
**دلنواز** : زړهٔ نمانځونکے، يار، ملګرے، منين، زړهٔ خوشحالونکے.
**دلو** : سلواغه، بوقه، ډولچه، دلوه، د هجري شمسي کال يوولسمه مياشت چې ديرش ورځې لري.
**دلول** : تکول، کوتل، ځوبل، غټ اوږهٔ کول، دل کول، ميده کول،
**دله** : بړوا، دوس، بې غيرته، بې شرمه، دويز.
**دليا** : دل، اوګره.
**دليل** : ثبوت، برهان، حجت، لار ښودونکے، په يادونکے، زيرے کونکے، نښه، علامه.
**دليه** : دل، اوګره، دليا.
**دلې** : دلته، دلته کښې، دا ځائے په دې ځاے، دې خوا، ديلې، دلې ته.
**دليدل** : دل کيدل، دلده کيدل، اوګره کيدل، ميده کيدل، غټ اوړهٔ کيدل، دل ګزارې کيدل،
**دلير** : بهادر، تکړه، توررزن.
**دليري** : بهادرې، تکړه والے، توررزني.
**دلی** : زبښت، زيات، بې اندازې، پريمانه، کوټه، امبار، ډيرے، د غلې ډيرے، درمن، دامبورے، پلاټه.
**دم** : غلے، خاموش، چپ، کبر، غرور، ناز، لو، اخوې.
**دم** : چوف، چُف، دم درهه، اوده. لحطه، شيبه، ساعت،

وخت، ژوند، روح، ځان، ساه نفس، ذات، د چیلم کش، د چرسو د چیلم کش، افسون، جادو، منتر، زور، طاقت، توان، همت، حوصله،

**دماغ :** مازغهٔ، مغز، د سر مازغهٔ، لوئي، کبر، غرور، تکبر، هوش.

**دمباله :** اخري سر، لکۍ، کوناټې، شا. د وړو ماشومانو د ځیزونو سمبال ساتلو وړوکې خورجین، دمبولا، دمبیله.

**دم پخود :** خاموش، غلې، چپ، ساکت، ساه راښکلې، پوزه راښکلې، ساوتې، حیران. د زړهٔ لیوالتیا ورکیدنه، په هوش کښې راتلنه.

**دم درحال :** په تکي، په هغه وخت، په موقع، سمدستي، سم د لاسه، فوراً، دستي، فوري، في الحال، هم دا اوس، اوس.

**دم درود :** دم درهه، دم تعویذ، ټوټه، ټونه، ټونه ټوټکه، دم چف، کوډې تعویذ، سحر جادو، تقوي داري، ورد وظیفه.

**دم دلاسه :** دلاسه، خوشحالونه، تسلي، ډاډ ګیرنه، لاس راښکنه.

**دمدمه :** برج، مورچه، وړه قلعه. فخر، کبر، غرور، لوئي. دلی، ډیرے، ټوپی، کوټه، امبار.

**دمساز :** ساه سره ساه برابرونکے، ډیر خوږ ملګرے، همراز، همدم، خوږ ملګرے.

**دمسه :** لوے او غټ ډولکے، غټ سرے یا ښځه.

**دمګر :** اوده کونکے، د اودې خاوند، دمګرے، دم اچونکے. هغه څوک چې د پښ (لوهار) بنی وهي.

**دمول :** دم اچول، چف

کــــول، دم کـــول، د اودې لاندې راوستل،

**دمه** : پــــه سیالــه کېښې، آسوده، د سترې متضاد، ارام، ســاه اخستنــه، سیــالــه، لنډ استراحت.

**دمه** : ساه لنډې، بخار، لړه، ساه، نفس.

**دنبه** : لم ور ګډ، دمبه.

**دنداسـه** : د غوز د ونې پوټکې چې د غاښونو صفا کولو او شونډو سرو کولو دپاره پکارولې شي.

**دندان** : غاښونه.

**دندوکار** : تیارهٔ، تورتم، تاریکه، شور زوږ، فساد، بد انتـظامـي، غوبـل، لوګې، لـوخـړې، لـړې دوړې، ډیر تـعداد. د بـریـښ تـنـدر او کړکړوز اواز، د توپو وغیره ګن ډزار.

**دنده** : شـغـل، وظیـفه، هنر، کسـب، کار، مشغولا، پیشه، ساعـت تیرونـه، عیـش، ښـهٔ ژوند تیرونه.

**دنکاچه** : دونکاچه، دکانچه.

**دنګ** : لوړ، جګ، جیګ، د دنګـې ونـې خاوند، مست نشـه، مـدهـوش، ګنګس، بې احساسه. ټوپ، ترپ.

**دنګ** : د شـولـو پـاکـولـو پایکو، دړدړې.

**دنګل** : د پهلوانانو د کشتي ځای، کاړه، اکاړه، ګېه ګوټه.

**دنګه** : د میزرو بوټې. د دنګ مؤنث.

**دننې** : داخلي، اندروني، د داخـل، د دننـه، دننـه سره متعلق.

**دننه** : داخـل، پکښې، د بهر ضـد. نـنـوتـي، ورکښې، اندرون، لړمون.

**دنیا** : نـړی، جهــان، عـالم، شتـهٔ، شتـمـني، دارائي، مـال متاع، دولت.

**دنیادار** : شتـمـن، دولتمند،

پیسه دار، موړ، مالدار، د دولت خاوند.

**دنیاګی** : حقارتاً دنیا ته وئیلے شي. د دنیا اسم تصغیر.

**دنیاوي** : دنیوي، د دنیا، د جهان، په دنیا پورې مربوط.

**دڼیا** : یو قسم بوټے چې پاڼې ئ د خوشبو او خوند دپاره په کټوی او چکنی وغیره کښې اچولے شي. ګشنیز، کروشه، دڼیه.

**دو** : زغل، منډه، تراټ، ترړه، ځغاسته، د جوارئ داؤ، بازي، شرط، شرمنده، خجل، خړ، خجالت، خړونه، زیاتونه، جګونه.

**دوابه** : هغه ځائے چې د دوؤ سیندونو تر منځ وي، دواوه.

**دوا** : هغه دارو چې د مرض په علاج بنۀ کولو یا د درد په تسکین کښې استعمالیږي. دارو، درمل، علاج، دوائي.

**دواب** : څاروي، ډنګر، حیوانات.

**دوات** : مشوانۍ، هغه د سیاهی بوتل چې د قلم څوکه پکښې رنګ کولے شي.

**دواړه** : جوړه، غبرګ، برغ، جوړه، جفت.

**دوام** : پائښت، ادامه، ثبات، بقا، هر وخت، همیشه والے، همیشه.

**دواوه** : وګورئ دوابه.

**دوبار** : دویم ځلې، دویم ځل، دوباره، بیا.

**دوبچه** : دوچه، دوپچه

**دوبړن** : دربجن، بدبویه، سوړبویه، هغه خوارۀ چې د ګرمی یا د زیات وخت د تیریدو په سبب خراب شي او بوئ پیدا کړي.

**دوبغرګه** : دوه برغه، دوه غبرګه.

**دوبنه** : د دوبي ښځه، د دوبیانو د کورنی ښځه.

**دوبي** : جامې وینځونکے،

هـغـه څوک چې د جامو وینځلو کسب کوي، دوړے، ډوبي.
**دوبیتي** : یو قسم نظم چې دوه بیته لري، وړومبی، دویمه او څلورمه مصرعه ئ د رباعی غونډې په یوه قافیه وي ـ و وزن ئ د رباعی په شان نۀ وي.
**دوپ** : دپ، دپه هوا، دوب، خوپره.
**دوپټه** : لوپټه، د ښځو څادر، د ښځو د پسرولو وړوکے څادر.
**دوپړی** : دو کړی، دوپړه، دو کړه، د نغارې په شان د تنک تکور یوه آله، طبله.
**دوپیازه** : تکولے شوے پړپوس چې پیاز او مصالحه کښې ویشولے شي. اینګولے، پخکړے، ښوروا.
**دوتر** : وګورئ دفتر.
**دوتی** : یو قسم لنګ، چې زنانه ئ تړي.
**دوجاله** : دوه زړے، دودله، فکرژن، مشوش، حیران، دوه زړۀ، متردد، مذبذب،
**دوچار** : اختـه، لګیـا، مشغول. مصروف. مخامخ، وړبانډې اوښنے، دوڅار.
**دوچتیز** : دوه چتیز، دوه چته لرونکے.
**دوچند** : دوه دونـه، دوه چنده، یو په دوه.
**دوڅار** : پـه ډاګه، څرګند، جوت، معلومه، پیښ، دوچار.
**دود** : پـه ډول، پـه څیر، پـه شـان، غونـډې، دغسې، هو بهو، په مثل.
**دود** : رواج، رسم، دستور، آئین، کلتور، کلچر، ثقافت، فـرهنګ، قـاعده، طـریقه، انداز، لاره، لیاره، باب، چلند.
**دود** : لـوګـے، لـوخـړه، دوګ، قربان، ځار.
**دور** : ګـردش، حـرکت،

چکر، څرخ، څرخیدنه، د یو څیز په خپل ځای حرکت او ګرځیدنه، زمانه، دوران، وخت.

**دوران :** وګورئ دور.

**دوراندیش :** پیش بین، عاقبت اندیش، محتاط، عقلمند، هغه څوک چې د یوې موضوع څو یا ټولو اړخونو ته ځیر کیږي او یا د یو کار پائ او عاقبت ته ګوري.

**د ورایه :** د لرې.

**دوربین :** دوراندیشه، ځیرک، هوښیار، پوه، هغه څوک چې لرې څیز ښهٔ لیدے شي.

**دوربین :** لرې لیدونکې یوه آله چې د لرو څیزونو د لیدو دپاره استعمالیږي.

**دورنګي :** دوه ژړهٔ توب، ریاکارې، دوه مخي، منافقت.

**دوره :** پیر، پیره، ګردش، دور، دوران، ګرځونه، جریان، سرکټ، بیهوشي، غوټه.

**دُوړه :** ګرد، ګردوغبار، خشک سالي، له منځ وړے، ورک، اورهٔ.

**دوړه دپکه :** اپه دپه، دړه دوړه، رعب اچونه، غصه کونه، ویرونه، دپکه، دړکه، دوړه دباؤ،

**دوزخ :** د جنت متضاد، د عذاب ځاے، جهنم، دوږخ، دوغس، سقر.

**دؤس :** بړوا، د حرامکاری دلال، دله، دووس، بې غیرته.

**دوست :** ملګرے، اشنا، یار، رفیق، خیرخواه، محبوب، زړهٔ ته نزدے، انډیوال، خپل، خپلوان.

**دوستي :** اشنائي، ملګرتیا، خپلوي، خیښي، دعا سلام.

**دوشاله :** شال، دوپټه شال، دوبره کشمیري شال، ښځینه شال، ریښمین یا وړین شال،

لوپټه، پشمینه بنارسي، پړونې، د ښځو د پسرولو لوړې څادر یا لوپټه.

**دوشنبه** : د ګل ورځ، غبرګه، پیر، د اونۍ دریمه ورځ، د یک شنبې او سه شنبې تر منځ ورځ، ګل.

**دوک** : حسد، رخه، کینه، بغض، عذاب، ربړ، کړاو، تکلیف، درد، غم، نول، خفګان، رنځ، نرې رنځ، دق، سل، تهدیدونه،

**دوک** : څوښه، څابښې، د وسپنې یا لرګي هغه آله چې تار یا وړی پرې ریشل کیږي. هغه نرې سیخ چې ښځې پرې ویښتهٔ ږومنځوي، سلائي، ستن، سیخچه، دوکې.

**دوکان** : د سودا خرڅولو ځای، اټ، هټۍ، اټۍ، پلورنځی، مغازه. د مالګې لاس ته راوړلو او تصفیه کولو اورغالې، هغه ځای چې لوهار پکښې وسپنې تودوي او سازوي. بټۍ. د کلۍ هغه کوغالې چې جولاګان پکښې پېښې شکته کوي او کار کوي، کلۍ، اډه، چوکاټ، د کولال پجه.

**دوکانچه** : ډبه، چوتره، سوپه، تونګاچه، د کور په منځ یا د کوټې یا دوکان مخې ته هغه نسبتاً لوړ ځای چې د کښیناستلو یا د مانځهٔ دپاره جوړ شوې وي.

**دوکاندار** : هغه څوک چې دوکان کوي، هټي وال، دوکان لرونکې.

**دوکه** : غولونه، خطا ایستنه، چل، چم، چل ول، ټګي، تیر ایستنه، دروه، دغا.

**دولت** : شتهٔ، مال، جائداد، ثروت، سرمایه، بخت، طالع، حکومت، د یو ملک د مسلطې طبقې سیاسي

جوړښت، د دولت د عمالو مجموعه، قانون.

**دولتمند** : دولتمن، شتمن، د پیسو خاوند، د مال او دولت څښتن، موړ، توانګر، سیټ، مالدار.

**دولس** : درځن، په شمار دولس، لس او دوه.

**دومباله** : کوناټې، کونه غاړه، ورستی شا، دومبال، لم.

**دومره** : دا قدر، په دې مقدار، دا اندازه، دونې، دغونې، دغومره، په دې اندازې.

**دومه** : مړ اور، خوړلن، دوهه، ډوډه، بټی، هغه اور چې وړې پرې وریتولے شي.

**دومے** : نزله، زکام، والګے، خرمیټ، تود سوړ کیدنه، بادوونے، ریزش، دومه، ساړۀ وهنه، توده سړه.

**دوند** : لړه، تیارۀ، غبار، خړه، دوړه.

**دونکاچه** : ډبه، ډپه، دنکاچه، چونتره، ستیج، ډبګی، خازه، د قبر ګیر چاپیره ډبه، هغه د ختو ګټو یا لرګي نه جوړه څلور ګوټې ډبه چې منګي پرې ایښوے شي، ګړونج،

**دونه** : دوړه، ټوقه، مسخره، ملنډه، معمه،

**دووس** : دؤس، دویز، دله، بې غیرته، پست، رذیل.

**دوه** : د یو او درې ترمنځ عدد.

**دوه نلیز** : هغه ټوپک چې دوه نلی لري. دومیله.

**دوهم** : دوم، دویم،

**دوي** : دغه خلق، دا خلق.

**دویم** : وګورئ دوهم.

**دویمه خور** : ربیع الثاني، د هجري قمري کال څلورمه میاشت.

**دهر** : زمانه، وخت، دنیا،

پیړی،

**دهریه** : ملحد، کافر، بې دینه.

**دهشت** : ویره، ترهه، ترورتیا، وهم، ډار.

**دهشت ګرد** : دهشت کونکے، دهشت خورونکے، دهشت پیدا کونکے.

**دهقان** : شریک، کاشتکار، بزګر، کرونده ګر،

**دهقاني** : چریکاري، دیقاني، زمیداري، بزګري، کاشتکاري.

**دیار** : سبر، د سروې ونه، د نښتر ونه.

**دیارلس** : درې دپاسه لس، د دولسو او څوارلسو تر منځ عدد.

**دیاړي** : د کار اجرت، د مزدور د کار معاوضه، د کار قیمت، حق الزحمه.

**دیانت** : ایمانداري، صداقت، راستي، د خیانت متضاد.

**دیانتداري** : د دیانتدار کیدو حالت، ایمانداري، دینداري، خدا پرستي، پاکي، پاک نیتي.

**دیباچه** : سریزه، سرلیکه، مقدمه، د کتاب پیژندګلو، سرنامه،

**دید** : بینائي، لید، نظر، ننبه، ننبانه، دیدار، ننداره، دیدن.

**دیدار** : لیدل، دیدن،

**دیدن** : دیدار، لیدنه، کتنه، وصال، ملاقات.

**دیده دانسته** : عمداً، قصداً، په قصد.

**دیګر** : مازیګر، د ماسپښین نه تر ماښامه پورې وخت.

**دیکه** : ټیله، ډغره، دیچکه، بغل، ځنګ.

**دین** : مذهب، آئین، لار، طریقه، طاعت، جزا، مکافات، اسلام.

**دیندار** : په دین ټینګ، پرهیزګار، متقي، د دین پیرو،

تقويٰ دار، د مذهب پابند.

**ديـنـداري** : تـقـويٰ داري، پـرهيزګاري، د دين د احکامو پابندي.

**ديني** : د دين، مذهبي، د دين سره متعلق.

**ديـنيات** : ديـنـي مـضمون، هـغـه کتـاب چې ديني مسائل پکښې بيان شوي وي. په دين مربوط مسائل.

**ديواليه** : تـاواني، په خساره کښـې، پـه کـاروبـار کښې داسې تـاوان چې سر او ګټه دواړه بائلي،

**ديوان** : د يو شاعر د اشعارو مـجـموعه. هغه کتاب چې په هغې کښې د يو شاعر کلام په مـردفـه توګه د هجا د تورو په اســاس راغـونـډ شـوے وي. مـحکمه، عدالت، دربار، دفتر، تخت.

**ديـوانـه** : ليـونـے، پـاګـل، مجنون،

**ديواني** : د مال او جائداد په حـقـلـه، ديواني قانون، قانون، عــدالــت، حــوالات. هـغـه عـدالـت چـې د زمکو فيصلې کوي.

**ديودار** : ديار، نښتر.

**دې** : د مـفـرد غـائب اشاري ضمير.

**ديچکے** : ديګچے، وړوکے ديګ.

**ديـخوا** : دې خـوا تــه، دې طرف ته،

**ديرپا** : ډيـر پائيدونکے، چې زر نــهٔ خـرابيږي. سـخـت، ټيـنـګ، مـضبـوط، مـحـکـم، پائيدار.

**ديرش** : لس او شل.

**ديـره** : حــجـره، ويـجـره، اوجره، ډيره، مهمان خانه،

**ديرينه** : زوړ، پخوانے، بوډا.

**ديسي** : د ديـس، د ملک، کـم اصل، بدل، نااهل، کچه، د اصلي ضد.

**دیګ** : لـه مسو جوړ هغه لوی لوښی چې اکثر بتیاران پکښې وریژې پخوي،

**دیګچون** : کچه وسپنه.

**دیـګچې** : وړوکی دیګ، هغه لوښی چې اخلې پخلی پکښې کیږي.

**دیو** : د پیـریانو یـو قسـم، مجازاً غټ، شورب، تکړه.

**دیوال** : دیـوار، د ختو یا بل څـهٔ نـه جوړ د کـور یا قلعې پرده، پنائي،

**دیوالګیر** : په دیوال کښې لـګیدلی کندې دار لرګی چې جامې پکښې ځوړندولی شي. کـوشـش، مـنـډې ترړې، هله ګوله، درزغوبل، غویمنډ.

**دی** : د مـفـرد غائب اشارې ضمیر.

**دی** : د فعلي ربط مفرده کلمه چـې د مذکر دپاره استعمالیږي لـکـه دغـه کتاب دی. موجود. شته. د واحد حاضر ضمیر.

**ډ** : (ډال) د پښتو حروف تهجي د پنځی څوارلسم حرف چې د ابجدو په حساب د "د" برابر يعنې قيمت ئې څلور (۴) دے.

**ډاډ** : تسلي، تسله، اطمينان، روغ زړۀ توب. زړۀ ورتيا.

**ډاډ کيرنه** : تسلي ورکونه، ډاډنه، ډاډهنه، ډاډ کيري، دلاسه ورکونه.

**ډاډه** : سمسور، وښند.

**ډاډه** : خاطر جمع، مطمئن، زړۀ ور.

**ډاډه** : ډوډه، بتهی، دومه، دينين، وړي په اور کښې ورتونه. د غنمو يا اوربشو شين فصل چې په ځارو د خوړلو جوګه وي، خيد، خويد.

**ډار** : خوف، وېره، ترهه.

**ډارن** : ويريدونکے، تړن، ډړن، بې زړۀ، کم زړۀ، يرندوکے، بې ايمانه، تېزن.

**ډارول** : ويرول، يرول، بيرول، خوف ورکول، په رعب کښې راوستل.

**ډاره** : د دروازې د سر چجه، د دروازې د سر پيک،

**ډاريدل** : ويريدل، يريدل، بيريدل، په رعب کښې راتلل.

**ډاک** : چيټی رسونه، هواره زمکه.

**ډاکټر** : ډانکتر، داکتر، ډاکتر، طبيب، د بيمارى علاج کونکے، هغه څوک چې په طبابت، ډاکټری يا جراحت کښې پوره لاس لري.

**ډاکټري** : د ډاکټر کسب او پيشه، درملګري، طبيبي، طبابت.

**ډاکخانه** : د ډاک استولو او اخستولو د بندوبست ځاے.

**ډاکو** : داړه مار، غل، چپاؤ کونکے، شوکمار، چوررونکے، د غلو د ټولګي يو غړے چې داړې وهي.

**ډاګــه :** چپــاؤ، شبـخـون، غـدی، داړه، شو که. ډاګه، یو قسم ناز که کپړه.

**ډاکـي :** کــاغـذ یــا خـط رسـونـکـے، پوسټ مین، هغه څوک چې چیټـی متعلقـه کسانو ته رسوي.

**ډاګ :** خـــراب، وران، ویجاړ. درمـنډاګ، د غنمو د پـاکـولـو او میده کولو ځاے، هـوار میـدان، میـدان، ډاګ، بیـابـان، دښتـه، دشته، پوسته، پـوســټ، ډاک، چیـټـی، خطونه رسونه.

**ډاګـه :** د بـجـلـی ستـن، د کـوټـي لرګـے، لاړے، لهړے، بـرګـه، د بـولاړې لرګے، هغه لـرګـے چـې د مـرزائو خلتې پکښې ځوړندولے شي.

**ډاګه :** ډاګ، میدان، هوار میدان، پلنه وچه زمکه.

**ډاګه ډګلی :** په میدان، په ډاګـه، ښکاره، صفا، مخې ته، څرګند.

**ډاګي :** میـدانـي، د ډاګ، د ډاګ سـره متـعـلـق، ښکاره، څرګند، واضح.

**ډاګیزه :** ښـکـاره، په ډاګه، په لوړه، جهر، برملا، په نغاره، ډنډوره.

**ډال :** کیسپـــت، یــو قسـم والـی، د غلې دلی یا ډیرے. د پښتـــو د الف ب د پـټـــی د څوارلسم حرف تلفظ. سپر، کـنـګـل، د تـورو پـــه جنګ کښې د ځان بچ کولو آله.

**ډالر :** د امریکې کرنسي.

**ډالی :** سـوغــات، تـحفـه، پیشکـش. هغه خوړده چې د عرس په موقع زیارت ته وړلے شـي. د څارنې کار، د نګرانی کـار، د څـادر یا لمخي څنډه، ټالي، جوټه، ځنګیدنه.

**ډالـی ټهـالی :** سـوغـات، ډالی، تحفه، مبارکي، رشوت یـا خـلـهٔ خوړونه، چا له لالچ یا طمع ورکونه،

**ډالوے :** واښکے، د انګورو

وړې، غوشه، وښکالې، ګنګورې، ګنګوړې.

**ډانډې :** لنډې کوتک، وړوکې او وچ لنډ لرګې.

**ډانس :** رقص، ګډا، رخس، یمیدنه، ناچ، نڅا.

**ډانسر :** نڅا کونکې، ګډیدونکې، رقاص، رقص کونکې، یمیدونکې.

**ډانګ :** غټ کوتک، لوړ، سوټې، ډبې،

**ډانګ ډبلې :** سامان، د کور اسباب، د کور سامان، د کور لوښي لرګي، تال شکال، کډه کوډه، ډول ډبلي.

**ډانګرې :** بانکې، ډانګري، هغه جامه چې مستریان ئې د کار کولو په وخت اغوندي، پتلون او جیکټ سره ګنډلي وي او له جین نه جوړ وي.

**ډانګورې :** ډاګه، ډاګرکې، ټاپوړه، ټاپوله، انټوک، بیساکي،

**ډانګې :** ګام، قدم. لنډ پنډ لرګې، وړوکې ډانګ.

**ډاوڼ :** لوپټه، ټیکرې.

**ډب :** ژورې اوبهٔ. په سیند یا وله کښې ژور ځاې. زیان، تاوان، ګوزار، وار.

**ډب :** وضع، طریقه، سلیقه، طور، ادب، سرپټوب، لوئي، عظمت. د یو څیز د لوئیدو اواز، د وهلو اواز، د پریوتو اواز.

**ډبا :** ډبار، ډبهار، د ډب ډب پرله پسې اواز، غټ سرې.

**ډبار :** د وهلو ټکولو اواز.

**ډبلوب :** بیهوشه، بې حسه، سرګومه، بیخوده، ناروغه، ناجوړه، مریض.

**ډبر :** تباه، هلاک، برباد، پوپنا. غټ، تیار. وګورئ ټبر.

**ډبرول :** تباه کول، ستهول، میراتول، ورکول، بربادول، تالا کول.

**ډبره :** تیره، کانړې، حجر، کلک جسم چې د زمکې په

سطح پـه سيندونو، کانونو او غرونـو کښـې پـه قسم قسم رنګونو سره پيدا کيږي.

**ډبـريدل :** تبـاه کيـدل، ميراتيدل، ستهيدل، ورکيدل، بربادېدل، تالا کيدل.

**ډبـل :** مـضبـوط، غبـرګ، بـرغ، دوچند، دوه لايه، يو په دوه. جوت، جفت، منډه.

**ډبل روټی :** هغـه پيړه او ډبـوسـه شـان روټـی چـې د ميدې لـه اوړو نـه جوړولے شي.

**ډبلـه :** پيـړه، غـټـه پټـه، پـړسيـدلي، غبنتلي، دوه غبرګې، دوه برغې.

**ډبلی :** سوبارے، ثوبارے، د نـداف او مـوچـي د ټـکولو لـرګے. ګډوله ډوډی، د وښو وښکلو لرګے، لتونه، ټکوڼې، وهنې.

**ډبلے :** وړوکے ډبے.

**ډبنګ :** چـاق، شلنډ، پنډ، مـزے، غـټ، ثـورب، پړسيدلے، ډبوس.

**ډبو :** چـاق، شـلـنډ، پـنډ، مزے، غټ، ثورب.

**ډبوس :** پړسيدلے، تمبوس، تمبوس.

**ډبوسکے :** ډبوس، ډپوس، بدشکله، بې ډوله، پړسيدلے.

**ډبول :** وهـل، درزول، پـه زوره وهل، ټکول، دربول.

**ډبه :** چوتره، چونتره، سوپه، صفه، ډپه، ديوسه، د راټوليدو ځاے، په کلي کښې د خلقو د کښيناستو ځاے، ستيج. د تيلـو ډبه، د غوړو تيم، ځلور لارې.

**ډبيـدل :** وهـلـے کيـدل، درزيدل، ټکيدل.

**ډبی :** ډبـه، ډپـه، واګنـا، د ريل ګاډي کوټه، د تيلو ډبی، هغـه ډبے چـې تيـلي پکښې پراته وي.

**ډپ :** کـلـي تـه نـزدې هغـه ځاے يـا هغـه غونډی چې په هغـې د کـلـي خـلـق تفريح او

ساعت تیرے کوي. د خاورو وره غونډۍ.

**ډپو** : ذخیره، ګودام، ډیپو.

**ډډ** : پړسیدلے، ګوګ، منځ تشے، په منځ کښې تش یا خالي. سخت اواز، غټ اواز، بم اواز، اصلیت، حقیقت، مرور، خفه، خوابدے، بیخ، ختپه.

**ډډبه** : پړسیدلے، ادو بدو، پړسو، نیمه خوا، نامراده، ځوانې مرګ، غټ، لوے، رسیدلے، کامل،

**ډډوزه** : خوړسکه، تریخ لوګے، تریخ دود، غړوسکه لوګے، بدبوئي، ډوزه، د ټوپک د ډز لوګے.

**ډډوزه** : د غنمو یا اوربشو هغه ډنډر چې وړے ترې جدا شوے وي. دروزه.

**ډډول** : پړسول، باد ورکول، ګوګول، بنی کول، تشول، د یو څیز منځ خالي کول،

**ډډه** : اړخ، پلو، طرف، څنګ. امتناع، ځان ژغورنه، اجتناب، د ډډ مؤنث.

**ډډیدل** : پړسیدل، د اواز بم کیدل، اواز غټیدل، ګوګیدل، منځ تشیدل، بلاربیدل، حامله کیدل.

**ډرامه** : ناټک، تماشه، نقل.

**ډرائیور** : د ګاډي چلونکے،

**ډرت** : ټر، پر، ټیز، د ګوز اواز. د بې اعتنایی او لاقیدی د ښکاره کولو دپاره هغه وخت مقابل طرف ته وئیلے شي چې وړومبے فریق وتښتولے شي یا ویرولے شي.

**ډرن** : ډارن، ویرندونکے، ویریدونکے، ډرو، بې ایمانه، ټیزن.

**ډرول** : ډارول، ویرول،

**ډریدل** : ترېدل، ډریدل، ډرتیدل، ناشودې او اپلاکې وئیل، پرتې وئیل، چتیات وئیل.

**ډز** : ټک، د ټوپک فیر، د

ټوپک ډز،

**ډزا** : ډزونه، ټکونه، ټکان، ډزهار.

**ډزول** : ویشتل، په ټوپک باندې ډزې کول، جنګول، مقابلې ته مخکښې کول، وهل، ټکول، درزول، څکول، دودول،

**ډزې** : د ټوپک اوازونه، د ټوپکو ټکان، فیر.

**ډزیدل** : جنګیدل، د ډزو تبادله کیدل، ویشتلے کیدل، وهلے کیدل، ټکولے کیدل، خرپیدل، درزولے کیدل، وهل خوړل.

**ډغره** : ټکره، ډکه، ټقر، تصادم، لګیدنه، مقابله، سره جنګیدنه.

**ډک** : خلې تر خلې، ژی تر ژی، خلهٔ په خلهٔ، مالامال، لبریز، موخه، ټکر، ډکه، تصادم، ټکره، غرض،

**ډکره** : ټوټه، ترازه، ټنګره، قطره.

**ډکشنري** : لغت، قاموس، هغه کتاب چې د الفاظو معنې پکښې لیکلې شوې وي.

**ډکول** : خلې تر خلې کول، مالامال کول، لبریزه کول، بلاربول، حامله کول، سرخانه ډکول، د چیلم په سر کښې تماکو او سکور اچول، مړول.

**ډکه** : د اوبو ایسارولو بند، د پیریانو غوټه، چپه، په غاړه، ذمه واري، عهده، د دریاب د غاړې پخونه، حادثه، پیښه، صدمه، تکلیف، ډغره.

**ډکے** : منډکے، وړه وچه لښته، وړوکے نیالګے. د ړیرې ویښتهٔ، خاشه، خسټے، تیلے، خلے، غین، غین،

**ډګر** : میدان، بیابان، اواره دښته، یوه ټوټه، هغه زمکه چې هواره او ښکته وي. محاذ،

**ډګري** : د عدالت د جائداد په حقله فیصله، سند، د یونیورسټۍ نه اخستے شوے سند، شهادت نامه.

**ډل** : د وازدې غــــور، د وازګې غوړ. ښاخ لرونکے لـرګـے، د ولـو يـا مـورګـو جـوړولو يوم، ګڼ ګور فصل، ګڼې ګورې ونې، بن، جنګی.

**ډلـه** : جـمعيـت، ټـولـے، ګـروپ، ګڼ خـلـق، ګـوند، حزب، پارټي.

**ډليت** : هغـه سړے چې په مـالک پسې وسله ګرځوي، ټوپک مار.

**ډم** : سـنـدرغـاړے، مطرب، سـازنده، ډول وهونکے، نائي، ګـلابـي، سـلـمـانـي، خليفه. د جـراحـی پـه ذريعـه ويـنـه ايستونکے،

**ډمامه** : نغاره، نقاره، تمبل، ډنـــډوره، اوازه، نـوبـت، د شهرت انګازه،

**ډمبر** : بـار، پـنـډ، حـجـم، ډيرے، انبار، دلی.

**ډمبره** : غـمبسـه، بـمبره، غالبوزه، ټنډه غالبوزه.

**ډمبره** : يو ډول ازغنه ونه چې دانـې ئ د تورو مرچو په شـان استعـمـاليږي، خوند ئ تريو او خونده ور وي.

**ډمبوس** : ډبوس، پړسيدلے.

**ډمــډاره** : ډمبـــره، تــوره غمبسه، توره مچی، ډنډاره.

**ډمه**: د ډم مؤنث، سندرغاړې، سازنـده، سـړو ته ګډيدونکې، رقــاصـــه، سـنـګــارونـکـې، جوړوونکې.

**ډنډ** : حـوض، تالاب، تالاؤ، هـغـه اوبهٔ چې د صحت دپاره ښې نهٔ وي. ولکه، چکله، ډب اوبـهٔ، ولاړې اوبـهٔ. ښيرازه او شـنــه وادي. د هنداري مخ. تروټه، تاوان.

**ډنډا** : کـوتـک، لـوړ، د قلم څوکه، قلم، نغاره، ډنډوره.

**ډنـډر** : ډونـډے، د نبـات ډنـډه، سـاقـه، تـنـه، ډانډے، نـاړے. د چـارګل او د پيزوان سيخ، د ټيک دورمه.

**ډنډوره** : نـغـاره، جار، بوله، اوازه،

**ډنډوکے** : وړوکے ډنډ، حوضچه، تلاؤګے.
**ډنډی** : د تلبې ډانډے، د غوړ نرمه، د غوړ نرمي، په تول کښې فرق، په لاس وهنه.
**ډنګ ډونګ** : تنګ ټکور،
**ډنګر** : خوار، کمزورے، کم غوښے، د څرب متضاد، څارویے، مال،
**ډنګول** : ډول وهل، نغاره وهل، د موسیقی الات غږول، رسوا کول، افشا کول، تشهیر کول، خوړول.
**ډنګیدل** : ډول یا نغاره وهلے کیدل، مشهوریدل، رسوا کیدل، ډنډوره وهلے کیدل، ترنګیدل، درنګیدل.
**ډوب** : غرق، لاهو، یوپ، پټ، حیران، ورک، په فکر کښې سرګومه.
**ډوبول** : غرقول، لاهو کول، په اوبو کښې منډل، یوپول، تاوانول،
**ډوبیدل** : غرقیدل، لاهو کیدل، یوپیدل، په فکر کښې سرګومه کیدل، تاواني کیدل.
**ډوډه** : د خشخاشو غوټی، د کوکنار غوزه، لاډو، د کوکنار غوټی، جوارینه، سکړک، د جوارو ډوډی.
**ډوډی** : مړی، روټی، ټیکاله، نغن، ټکاله، کتغ، اتام، خوارۀ، طعام، دعوت، میلمستیا، د جرګې او مرکې خرڅ.
**ډوډے** : د تشي لاندې هډوکے، د کناټي د سر هډوکے،
**ډوزمار** : لوئي مار، لاپو، لافو، لافي ویشتونکے،
**ډوزن** : ډوزې ویشتونکے، لافو، لاپو، تیزن.
**ډوغل** : ژوره کنده، کوندغالے، ژور ځاے.
**ډول** : ډوغے، هغه کنډی چې په زمکه کښې ژوره

جوړه شي. هغه ټکرنامه چې د ګریوان نه لاندې ګنډلے شي،
**ډول** : قسم، شکل، رنګ، طریقه، روش. سلوک، خوند، ښائست، سینګار، فیشن.
**ډولچه** : ډوله، د اوبو څښلو یا راخستلو وړوکے لوښے. بوکه، سولغه، سلواغه،
**ډول سینګار** : جوړ جاړ، سمبالښت، ارائش، ځان ښائسته کونه، ځان سینګارونه، ځنه ستر ګه کونه.
**ډولۍ** : جوپان، جپان، چوپان، د ناوې چوپان، د ناوې کجاوه، د ناوې حجله.
**ډونډ** : لټون، لټونه، پته، تلاش،
**ډونډ** : اعلان، ډنډوره، نغاره، جاربوله.
**ډونګے** : ډیر غرق، ژور، د زړهٔ خبره چا ته نهٔ کونکے، راز ساتونکے.
**ډيبرۍ** : د پیچ دپاسه وسپنه چې د هغې د پاسه ئ وچورلوي یا وګرځوي نو هغه پیچ یا میخ کلک شي.
**ډيزل** : د ګاډو دپاره استعمالیدونکي د پټرولو نه ارزان بیه تیل.
**ډيوټ** : د ډیوې د ایښودلو لرګے یا تاخ.
**ډيوه** : چراغ، څراغ، د تیلو څراغ، د خاورو یا ټین نه جوړه غونډه شان کوپۍ چې په تیلو بلیږي.
**ډيپو** : ګودام، ډپو، تحویل خانه، زیرمه تون، انبار خانه.
**ډير** : زیات، کافي، پریوان، بیسیار.
**ډير** : امبار، ډیرے، ټوپ، دلۍ.
**ډيران** : ډمبورے، د سرې اچولو ځاے. د حیض پاکولو کپړه او رنجه، انبار، امبار، خره، خرې، ډیرۍ.
**ډيرتوب** : ډیروالے،

**ډېر تېر** : وګوره ډېر تر ډېره.
**ډېرول** : زياتول، پرېمانه کول، بېسياره کول.
**ډېره** : ديره، حجره، د ناستې پاستې ځاے، ميشت، اباد. چوک.
**ډېرېدل** : زياتېدل، پرېمانه کېدل. ځناور لنګېدل.
**ډېرېدنه** : زياتېدنه، پرېمانه کېدنه،

**ډېرى** : تپوپ، د خاورو وړوکے خټ، ډېرک، وړه غونډۍ.
**ډېرے** : امبار، تپوپ، دلى. ځلے، په يو ځاے ډېر څيزونه د يو د بل دپاسه کېښنونه.
**ډيوډۍ** : د کور لويه دروازه چې د پاسه پرې چت وي او د ناستې پاستې دپاره پکارولے شي.

**ذ** : (ذال) د پښتو حروف تهجي د پنځه پنځلسم حرف چې د ابجدو په حساب ئې اعداد اووۀ سوه (۷۰۰) مقرر دي.
**ذات** : وجود، جوهر، حقيقت، اصليت، نسل، قام، قوم، قسم، ځان.
**ذاتي** : خپل، حقيقي، کورنې.
**ذاکر** : ذکر کونکې، د شيعه فرقې واعظ.
**ذال** : د پښتو د حروف تهجي د حرف "ذ" تلفظ.
**ذائقه** : خوند، مزه، لذت.
**ذائقه دار** : ذائقه لرونکې، مزيدار، خونده ور، خوندناک، مزه ناک،
**ذبح** : حلاله، حلالونه، الالونه، سر پريکونه، نفس ذليلونه، نفس تر پښو لاندې کونه.
**ذبحه** : حلاله، حلالونه. غړې پريکونه.
**ذبيح** : ذبح کړې شوې، حلال شوې، د قربانۍ غوره کړې شوې ښاروې.
**ذبيحه** : د قربانۍ ځناور، په شرعي طور حلال کړې شوې ښاروې.
**ذخيره** : گودام، پنگه، جمع کړې دولت، بوزغلې.
**ذخيره اندوزي** : د ذخيره اندوز کار،
**ذره** : وړانگه، رچه، لږ ځيز، پوتې، بکسکې، بسمه، د مادې ډيره وړه ټوټه.
**ذره ذره** : پوتې پوتې، ټول، کلهم، تمام، ټوټه ټوټه، تيکه تيکه.
**ذريت** : نسل، اولاد، پښت.
**ذريعه** : وسيله، موقعه، واسطه، د مخه، وساطت.
**ذقن** : زنه.
**ذکر** : ياد، خبره، بيان،
**ذکر** : ذهين، هوښيار، تيزفهم.

**ذَکر** : آله تناسل، غین، غین، غن، آلت، د نارینه د وړو بولو اندام.
**ذکي** : زیرک، تیز فهمه، هوښیار، استعداد لرونکے، زیارسي، د ذکا یا ذکاوت خاوند.
**ذلت** : ذلیل توب، سپکاوے، بې عزتي.
**ذلیل** : سپک، رذیل، کمینه.
**ذلیلول** : سپکول، بدبد رټل، بې عزته کول،
**ذم** : عیب، غندنه، بد وئینه، هجو، سپکاوے، پیوند.
**ذمه** : ذیمه، وعده، قول، لوظ، په سر اخستل.
**ذمه دار** : ذمه وار، ضامن، جواب ورکونکے. معتبر، پوخ.
**ذمه داري** : ذمه واري، د ذمه دار جوړیدو حالت.
**ذمي** : هغه څهٔ چې د چا په ذمه وي. هر هغه څوک چې د مسلمانانو د ساتنې او پام لرنې تر سیورې لاندې وي.
**ذمیمه** : قابل نفرت کار، د ګناه کار، ګناه، خراب کار، د حمیده متضاد.
**ذو** : هغه سابقه چې د مرکبې کلمې په وړومبي سر کښې راځي لکه ذوالجلال، ذوالنورین وغیره.
**ذوالجلال** : د جلال خاوند، د الله تعالیٰ صفتي نوم.
**ذوالحجه** : د حج میاشت، د لوے اختر میاشت، د قمري کال دولسمه میاشت چې د ذوالقعده نه وروستو او محرم نه مخکښې راځي.
**ذوالفقار** : د حضرت علي علیه السلام د تورې نوم.
**ذوالقعده** : د هجري کال یولسمه میاشت، هغه اسلامي میاشت چې د شوال نه اګاهو او د ذوالحجې نه پس راځي.
**ذوق** : شوق، لطف، مزه، خوند.
**ذوقمن** : ذوقي، شوقمن، د

ذوق او سليقې خاوند.
**ذومعني** : دوه معنيز، دوه معنې لرونکې خبره، دوه معنې ورکونکې خبره يا لفظ.
**ذهانت** : زيرکي، هوښيارتيا، د ذهن تيزوالے،
**ذهن** : پوهه، خيال، فکر،
**ذهني** : د ذهن سره متعلق، عقلي، خيالي، دماغي.
**ذهنيت** : فکر، نظر، عقيده، د ذهن نه اخستونکے کار.
**ذهول** : هيره، غفلت، د ياده وتل.
**ذهين** : پوه، زيرک، هوښيار، قابل، پوئ، پوهه،
**ذهين تيا** : وګورئ ذهين توب.
**ذي** : د مرکبو کلمو په سر کښې راځي او د خاوند معنيٰ ورکوي. لکه ذي روح، ذي شان.
**ذيابيطس** : د شوګر مرض.
**ذي الحج** : د هجري قمري کال دولسمه مياشت چې حج پکښې کولے شي.
**ذي روح** : روح لرونکے، ژوندے، ساه کښن، د اروا خاوند،
**ذي قعده** : وګورئ ذوالقعده.
**ذيل** : لاندينی حصه، لمن.
**ذيلدار** : يو سرکاري عهديدار چې د نهرونو د اوبو د تقسيم مشر وي.

**ر :** (رې) د پښتو حروف تهجي شپاړسم حرف چې د ابجد په حساب کښې دوه سوه (۲۰۰) اعداد لري.

**را :** د فعلونو سره د سابقې په طور راځي او د متکلم طرف ښيي لکه راکړه، راشه. د راکړه مخفف لکه دا کتاب را، دا کاپي را.

**رابرسيره :** رابرخيره، راښکاره، راځرګند، ظاهر.

**رابرغ :** راغبرګ، رابغرګ، راواپس، راستون، په بيرته راتلنه.

**رابطه :** تعلق، ارتباط، اړه، اړيکه، قرب، نزديکت، رشته.

**رابع :** څلورم.

**رابلل :** راغوښتل، رابولل، دعوتول، خان ته راغوښتل،

**رابلنه :** راغوښتنه، دعوتونه،

**رابيا :** د اوبو لوے مشک چې په اس يا خر بارېږي او اوبه پکښې وړلے شي.

**رابيرته :** راديخوا، رادې پلو، رااېلې، راځټ ته، راوروسته، دا کلمه د مخاطب دپاره راځي. راهيسې، راهيلې، را په دې خوا، راخلاصونه، بيرته کونه، رالرې کونه.

**رابيل :** راجدا، راګوښے،

**راپاتې :** باقي، پاتې شوے، راپاته، بار شوے، ميراث، په ميراث کښې ورپاتې شوے.

**را په ديخوا :** راهسې، را ديخوا، را وروستو.

**راپرغول :** په زمکه راغورځول، په کشتي کښې شا لګول، څملول، رانسکورول، مغلوبول، ماتې ورکول.

**راپسې :** تر شا، راوروسته، را تر شا، را تر څټ، تعقيب، څارنه.

**راپورته :** راجګ، راولاړ، تحريک شوے، لمسولے، مخاطب ته د امر په توګه وئيلے شي.

**راپورې :** راباندې، ديخوا، دې غاړې، ترنه، بندونه، بنده،

تړلی، په ناروغی مبتلا، اخته، گرفتار.

**راپیښیدل** : راپیدا کیدل، راواقع کیدل، اتفاقي راتلل او مخامخ کیدل، مخې ته راتلل.

**راتاؤ** : راتاؤ شوی، کوږ شوی.

**راتاوول** : راکږول، خپل خان طرف ته راکږول،

**راتاویدل** : راکږیدل، خپل خان طرف ته راکږیدل.

**راتب** : تل، همیشه، دائم، ثابت، برقرار، معاش، خیره. وظیفه. د یو خناور د یوې ورځې خوراکه.

**راتګ** : راتلنه، د ورتګ مقابل.

**راتلل** : راتګ کول، د تلل مقابل، له بله خایه دیخوا راتګ کول.

**راټول** : سره یو خای، راجمع، ګډ، ګرد، جمع، شریک،

**راټولول** : راغونډول، رایوخای کول، راجمع کول، یو لاس کول.

**راټولیدل** : یو خای راغونډیدل، راجمع کیدل،

**راتیټول** : خان طرف ته خمول، څوک له ضد نه اړول، څوک خپل لاس ته کښینول.

**راتیټیدل** : راخمیدل، خپله خبره پریښول،

**راج** : حکومت، واک، دور، اختیار، بادشاهي، شتهٔ مني، ثروت. ګلکار.

**راجا** : راجه، حکمران، د یو ور کوتي ریاست بادشاه، شتهٔ من، موړ، مالدار، سخي، ډیر شریف، بې پروا، ساده.

**راجع** : ګرځیدونکی. ورګرځونه، ورګرځیدهٔ، ستنیدهٔ، حواله، مخامخ کونه، مخامخونه، په اوړه وراچونه،

**راجګنه** : د راجه مؤنث، رانی، راجنه، د راجه ښځه. د راجه میرمن، هندوه، ایندوه.

**راچاپیر** : راتاؤ، گیر چاپیر، شاوخوا، گرځېدي ګوښه.
**راح** : خوشحال، خوښ.
**راحت** : دمه، ارام، اسودګي، استراحت، خوشحالي، مسرت.
**راحته** : راته، وګوره؛ راحتګي.
**راختل** : راولاړېدل، راښکاره کېدل، راجګېدل، راپورته کېدل، له پاسه وړیدل، وړباندي وړیدل.
**راخلاصول** : راخوشې کول، را ازادول، خلاصول، راپرېښودل، بېرته کول، پرانستل، وازول، لرې کول.
**راخلاصیدل** : خوشې کېدل، خلاصېدل، راازادېدل، راپرېښودې کېدل، بېرته کېدل، پرانستلې کېدل، لرې کېدل، وازېدل.
**راد** : مېړنې، پیاوړې.
**رادار** : لیکې لیکې، خط خط، کرښې کرښې، پټې پټې، هغه کپړه چې لاړې لاړې یا لیکې لیکې وي.
**رارسول** : رسول، د یو ځای نه بل ځای ته راوړل، د متکلم په لوري راوړل، راانتقالول، واردول، له سرحده راتېرول.
**رارسیدل** : رسېدل، له بل ځایه راتلل، راواردېدل، را انتقالېدل.
**راروې** : لاروې، راهرو، په لاره تلونکې.
**راړه** : پېتې، موټ، لوبیا، مهې، مې، چڼه، مسور، مټر.
**راز** : پټه خبره، هغه خبره چې په زړهٔ یا فکر کښې پټه وي.
**راز** : قسم، دول، غوندې، په شان.
**رازق** : رزق رسونکې، خواړهٔ رسونکې، روزي رسان، روزي ورکونکې، د الله تعالی یو صفتي نوم.
**رازونیاز** : د زړهٔ خواله، د مینې او ناز خبرې، راز و باز، د سر خبرې، د عجز عبادت.

**راس** : سر، د یو شي برنی برخه، د وچې هغه یوه برخه چې په اوبو کښې وړاندې تللې وي. د مثلث هغه زاویه چې قاعدې ته په مقابل کښې وي. د قوم مشر، سرکنه، سرغنه، د څاروو د شمیر سره هم وېئیلې شي.

**راسا** : مستقیماً، نیغ په نیغه، بې له رابطې.

**راست** : ښې، د کین یا چپ متضاد، سم، نیغ، رښتین، د منافق ضد.

**راستنول** : راګرځول، بیرته ستنول، بیرته راګرځول، په شټ راګرځول، واپس راګرځول،

**راستیدل** : راګرځیدل، بیرته ستیدل، واپس راګرځیدل.

**راستون** : راګرځیدلی، بیرته راغلی، راغبرګ، بیرته راګرځیدلی.

**راسته** : کیله، رسته، کنار، کتور، لین، هغه کورونه، دکانونه یا ودانۍ چې په یو لوري یا یوه خوا کښې واقع وي.

**راستي** : صداقت، ایمان داري، سپین توب، رښتیا.

**راسخ** : ثابت، کلک، محکم، برقرار، استوار، ټینګ.

**راسره** : راڅخه، له ما سره، د متکلم سره د یو شي موجودیت او ملګرتیا ښیي.

**راشبیل** : دړګې، رشبیل، رشپیل، د لرګي آله چې وانۍ پرې الوځولې شي، د واوړو پاکولو څوړې، ګانۍ نه د اور را ویستلو د وسپنې آله.

**راشپیل** : وګورئ راشبیل.

**راشه** : راشۀ، رشه، د غلې دانې ډیرې چې په درمند کښې د خس او خاورو نه پاکه کړې پرته وي.

**راشه** : راسه، راځه، مخاطب ته د راتلو امر.

**راشه درشه** : سلوک، ګزاره، ګوزاره، زیست

روزګار، تګ راتګ، تلهٔ راتلهٔ، تعلق، خپلوي.

**راشهٔ** : ویاسه، اریاسه، رشه، د صفا غلې ډېرے.

**رابنکارهٔ** : متکلم ته څهٔ شے ښکاره کونه.

**رابنکل** : راکښل، راکاږل، راکشول، راڅکول، راوباسل، راویستل، لـه ژور ځاے نه د یو شي راپورته کول.

**رابنکون** : راکاږنه، راکشونه، رابنکنه، راباسنه، راکښون.

**رابنکے** : شروع شو، عموماً د باران یا ږلی په وخت وئیلے شي.

**راضـي** : رضـا، خـوښ، خـوشـحـالـه، خـوشـاله، قانع، ډاډه، مطمئن.

**راضـي من** : رضـامـنـد، راضي، خوښ، قانع.

**راضي نامه** : هـغه پاڼه چې پـه هـغـې کښـې خپله رضا او خوښـه لیکلے کیږي. حوږه، روغه، موافقه، خوښه.

**راعي** : شپون، غوبه،

**راغبـرګ** : راستـون، راګرځیدلے، بیا راغلے، غبرګ رابغرګ، برغګ.

**راغرځول** : را ارتاوول، را اړتـاوول، د متکلم طرف ته را اچـول، د متـکـلـم خـوا تـه غورځول، راشړل، رابوتول.

**راغرځیدل** : را ارتاویدل، را اړتاویدل، د متکلم طرف ته راغورځیدل.

**راغـلے** : راغبرګ شوے، راړسیدلے، راستون شوے.

**راغنډ** : راغونډ، راټول، یو ځاے، ګرد، ګردے، ګرډے.

**راغـنـډول** : راغـونـډول، راټـولـول، یـو ځـاے کـول، راپـنـډول، یو ځاے ته راجمع کول.

**راغـنـډیدل** : راغـونډیدل، راټولیدل، غونډیدل، یو ځاے کیدل، راپنډیدل.

**راغه** : میره، د غـره په لمن کښې میره، ورشو، سبزه زار،

د غره دړه، دشت، صحرا، ډاګ.
**رافضي** : د خلافت راشده د ورومبو درې خليفه ګانو د خلافت له حقه منکر.
**رافع** : ارمے، اړم، وورم، رفع کونکے، لرې کونکے، عارض، د عرض يا عريضې وړاندې کونکے،
**راقم** : ليکونکے، رقم کونکے، تحرير کونکے.
**راک** : راګ، روګ، له سنيو نه جوړ شوے پتلون ډوله لباس چې د شړى په شان خيږ وي او د پرتوګ کار ترې اخستے شي.
**راکاږل**: راوښکل، راوکښل، راباسل، له ښکته يا ژور ځاے نه راپورته کول او را ويستل.
**راکب** : سور، سپور.
**راکړه** : اخستنه، له بل چا د يو شي د اخستو عمل، مخاطب ته د راکولو امر، راکه، روکه.
**راکښته** : راکوز، راښکته، رالاندې، تيټ.
**راکښل** : راښکل، راايستل، راباسل، راوښکل، کشول، کش کول، ځکول،
**راکښے** : راشروع، رالاندې، وګورئ راښکے.
**راکوز** : راښکته، رالاندې، راټيټ.
**راکوزول** : کوزول، راښکته کول، له پاس نه کوزول، له مقامه يا چوکى نه لرې کول، راټيټول، لرې کول.
**راکوزيدل** : له مقامه يا ځۀ عهدې نه اخوا کيدل، راښکته کيدل، د سورلى نه راښکته کيدل، راټيټيدل.
**راکول** : راخيستل، له مقابل طرف نه د يو شي تر لاسه کول، د ورکول ضد.
**راګ** : سندره، نغمه، سرود، عيش، طرب، راګ رنګ، آهنګ، ټون، پرده، د موسيقى مقام، د سنګيت يو توک، د کلاسيکي موسيقى

د اوو ګونو موډو نه یو موډ، هغه وضع شوې چو کاټ چې د ختیځې موسیقۍ د ترنګونو بنسټ جوړوي.

**راګرځول** : راستنول، راواپس کول، په شا راستنول، مخه نیول.

**راګرځیدل** : راستنیدل، راواپس کیدل، په شا راستنیدل.

**راګیر** : بندي، حصار، راایسار، محصور، رابند، دوچار، اخته، لګیا، مشغول، مصروف.

**راګیرول** : ایسارول، بندول، اخته کول،

**راګیریدل** : ایساریدل، بندیدل.

**رالره** : راله، راته، ماته، زما د پاره.

**راله** : وګورئ رالره.

**رالیږل** : رااستول، له مقابله لورې دیخوا ته راستول، د وړلیږل مقابل.

**رالیږلې** : رااستولې،

**رام** : اموخته شوې، تابع، مطیع.

**رامات** : راخلاص، را په منډه، جمع کیدنه، راروان، راتلنه، مات شوې.

**رامبوړه** : رامباړه، بروه، د غوا میښې وغیره اواز.

**رامبیل** : رانبیل، رابیل، رمبیل، یو قسم ګل چې ډیر خوشبو دار وي.

**رامچک** : لړ، لړی.

**راموسې** : هغه هوسی چې مشک ترې حاصلیږي.

**رامیا** : شپون، ګډبه.

**رانجۀ** : د سترګو توررولو دپاره پکارونکي دارو، کجل.

**رانخرۀ** : رنخرۀ، ننخرۀ، لنخرۀ.

**رانده** : بدکاره سړې، به بدو کولو نۀ شرمیدونکې، مردود، شړلې شوې، رټلې شوې.

**رانسکورول** : راچپه

کول، چپه کول، په بل مخ اړول، پرمخ کول، سرچپه کول، راځملول، ماتې ور کول، حریف یا غلیم ته ماتې ور کول.

**رانسکوریدل** : راچپه کیدل، چپه کیدل، په بل مخ اړولے کیدل، ماتې ور کیدل.

**رانغاړل** : راغړل، راناوول، نغاړل، راتولول، هر شے په خلهٔ منډل، تول خوارهٔ په خله منډل، حرص کول.

**رانوتل** : خپل ځان طرف ته دننه راتلل، بهر نه داخل خوا ته راتلل.

**رانه** : له ما نه، زما څخه، له ما څخه، راشکه.

**رانیول** : په لاسونو کښې نیول، یو شے له هوا نه یا د منډې په حال کښې نیول، اخستل. په بیه اخستل، په قیمت اخستل، خریداري کول.

**رانهٔ** : پاک، شفاف، چې هیڅ خیرے او خړوالے پکښې نهٔ وي، د روڼ جمع.

**رانی** : ایندوانی، هیندوانی، هندوه، رانې، رانی، د راجه ښځه، راجګنه، ملکه، د باچا لور.

**راوتل** : رابښکاره کیدل، رابرڅیره کیدل، ورچنې راتلل، بیدیا ته راتلل، له دننه نه بهر ته راتلل، راخارجیدل، د باندې راتلل.

**راوړل** : یو شے د یو ځاے نه بل ځاے ته را انتقالول، زیږول، بچے زیږول، اولاد زیږول.

**راوستل** : رالیږدول، یو ساه لرونکے انسان یا حیوان په خپلو پښو یا یو بې ساه د څهٔ وسیلې په واسطهٔ خپلې خوا ته رانقلول، د بوتلل ضد.

**راولاړیدل** : راپاڅیدل، راجګیدل، راودریدل، راپاریدل، ویښیدل، بیداریدل، قیام کول، جنګیدل، جګړه کول.

**راوي** : روایت کونکے، د بل چا د خبرې یا د قول نه روایت کونکے، هغه څوک

چې حدیث رانقلوي.
**راویستل** : راوښکل، راوکښل، راایستل، راباسل.
**راه** : دود، طریقه، قاعده، لار.
**راهب** : عابد، پارسا.
**راهبر** : راهنما، رهنما، بومیا، لارښونکے.
**راهداري** : لارپانه، د لارې یا پولې د تیریدو اجازه لیک، د لارې یا سرحد نه د تیریدو پاڼه.
**راهرو** : ډیډې، سوب، دالیز، دالان، کوشکن، د تیریدو لاره، د تیریدو ځاے، لاروے، لاریه.
**راه روے** : په لاره تلونکے، لاروے.
**راهزن** : لاره وهونکے، تاړ، راه ګیر، داړه مار، شوکمار، هغه شوکې چې خلق په لارو کښې شوکوي.
**راهزني** : شوکه، شوک ماري، داړه.
**راهیسې** : له هغه وخته، له هغه راسې، د هغه راسې، رادیخوا.
**رایٔ** : وګوری رایه.
**رایت** : رعیت، اولس، خلق، ملت، فرمان وړونکي خلق، د رعیت یو قرأت. بیرغ، نښه.
**رائج** : مروج، رواج شوے، عام شوے، جاري شوے.
**رائیسته** : راهیسته، دیخوا ته، رائیشته، رادیخوا، دې پلو ته.
**رایله** : راخوشے، ازاد، رها.
**رایه** : فکر، رایٔ، ګروهه، عقیده، اعتقاد، د زړهٔ بصیرت.
**رائجول** : رواجول، عامول، جاري کول.
**رائجیدل** : رواج کیدل، عام کیدل، عامیدل، جاري کیدل.
**رائګان** : وېړیا، مفت، ضائع، عبث، توې.
**رائے** : وګورئ رایه، د پخواني هند د واکمنانو لقب.
**رب** : پالونکے، پروردګار، الله تعالی یو صفتي نوم.

**ربا** : بیاج، سود، سوائي گټه.

**رباب** : د ساز یوه مشهوره آله، سپینه وریځ.

**ربابي** : رباب وهونکے، رباب غږونکے، هغه څوک چې په رباب وهلو کښې مهارت لري.

**رباعي** : څلوریځه، دوبیتي، د شاعرۍ مخصوص صنف.

**رباط** : پړاؤ، سرائ.

**رباني** : رب ته منسوب، د رب، عارف، عابد.

**ربانه** : سپوږمی.

**ربړ** : زحمت، تکلیف، کړاؤ، عذاب، ربړه، زغفر.

**ربړ** : د ځنې ونو د سلیښ ناکې مادې نه جوړیدونکے هغه څیز چې تاثرونه ترې جوړولے شي.

**ربړول** : کړول، په عذابول، په تکلیف کول، په کړاؤ اخته کول، ځورول، چیړ چاړ کول.

**ربړه** : مناقشه، مجادله، جګړه، جنجال، د خلې جنګ او جګړه، شخړه، ربړ، زحمت، کړاؤ، ستونځه.

**ربړي** : ربړیز، رابړي، د ربړ، ربړ ته منسوب، هغه څۀ چې د ربړ نه جوړ وي،

**ربړیدل** : کړیدل، په کړاؤ اخته کیدل، په زحمت کیدل، ځوریدل، غمیدل.

**ربط** : تړون، اړه، اړیکے، تړاؤ، تعلق، میل جول، نسبت، دوستي، محبت.

**ربع** : څلورم، څلورمه حصه.

**ربنه** : ربنې، تته رڼا، لږه رڼا، د نمرلږه رڼا، په وریځ کښې د سپوږمی رڼا، وږمه، نرے باد.

**ربوبیت** : خدائي، الوهیت.

**ربیع** : پسرلے، څرمونے، سپرلے، سمسورتیا، د غنمو د فصل وخت.

**ربیع الاول** : وړومبی خور، لومړی خور، د هجرې قمرې کال دریمه میاشت.

**ربیع الثاني** : ربیع الاخر، دویمه خور، ربیع الاول پسې

مياشت، د هجري قمري کال څلورمه مياشت.
**رپ** : رپا، رپيدنه، لړزيدنه، لـرزيـدنـه، اهتـزاز، خوريدنه، خوځيدنه، حرکت.
**رپ** : شيبه، لحظه، لږ وخت، آن، يو دم، زر.
**رپ** : رپکے، توک بندي، موړه، رپک، په ديوال کښې لګيدلې تخته چې لوښي پرې ايښوے شي، رف خانه، رپکے.
**رپا** : رپ، رپيدنه.
**رپارے** : رپ، رپ رپے، لړزه، رپ رپ.
**رپندے** : رپ، لـــرزه، دهشـت، ويـره ترهه، هيبت، د ويـرې لـه کبله رپندے لګيدنه.
**رپو** : رفو، پنځرک، پيوند، د جامو شليدلے ځاے ګنډنه.
**رپوټ** : اطلاع، خبر،
**رپول** : خوځـول، ښوررول، زمبـــول، ځـمبـــول، اهتــــزاز ورکول.
**رپهار** : رپــا، خـوځيـدهٔ، ښوريدهٔ، لرزيدهٔ، اهتزاز.
**رپيدل** : ښوريدل، خوځيدل، زمبيـدل، ځـمبيـدل، پـه اهتـزاز راتلل، غپيدل.
**رتبوي** : د درجې، د مقام، د رتبې، د چوکۍ، هغه عدد چې رتبه او عدد ښيي.
**رتبـه** : درجـــه، مـنـزلـت، څوکۍ، چوکۍ، مقام.
**رتي** : د يوې ونې د تخم نوم چې د وزن دپاره پکاريږي. لږ شے، ډير کم شے، کم مقدار، نوکه، د ماسې اتمه برخه.
**رټ** : جوت، ښکاره، واضح، ځرګند، سخت، کلک، د زړا کيفيت.
**رټل** : تــرټـل، غنـدل، پـه خبـرو سـره تهديدول، شړل، خفـه کـول. ستغې سپورې وئيل.
**رټه** : نيغـه، سپينه، ښکاره، جوته، صريحه، سخته،
**رټي** : شړی.
**رجــال** : ســړي، وګــړي،

اشخاص، د رجل جمع.
**رجا** : اسره، طمع، امید.
**رجب** : د الله تعالیٰ میاشت، زبرګه میاشت، بزرګه میاشت، د هجري قمري کال اوومه میاشت.
**رجحان** : بانديږ والی، بزرګ والی، لوړ والی، ترجيح، برتري، توجه.
**رجړومه** : لجړومه، رنجړومه، رنجوني، هغه وړه کڅوړه چې رانجه پکښې ساتلي شي.
**رجز** : ویاړنه، هغه شعرونه چې په جنګ کښې وئیلے شي.
**رجس** : ناولتیا، پلیتي، ګندګي، ګناه، وبال،
**رجسټر** : یاداشت، روزنامچه، د حاضرۍ کتاب.
**رجعت** : راستنیدنه، راګرځیدنه.
**رجل** : سړے،
**رجم** : سنګسارونه، په تیږو یا ډبرو ویشتنه، کنځل کونه، ترټنه.
**رجوع** : مخ راګرځونه، بیرته راتلنه، بیرته راستنیدنه، مخه، علاقه، د رجعي طلاق فسخ کونه،
**رچه** : ریچه، د سپږو یو ډیر وړوکے قسم چې د ګندګۍ له وجې په سر کښې پیدا کیږي.
**رچه** : پلوشه، نوکے، وړانګه، چوک، ذره، هغه وړه ذره چې د نمر په شغلو کښې لیدلے شي.
**رحلت** : تلنه، کوچیدنه، تګ، مرګ، وفات، له دنیا نه تلنه.
**رحم** : زړه سوے، زړه خوږیدنه، لور، زړه خوږونه، مهرباني.
**رحم** : زیلان، زیلانځ، توملنه، د ښځې په خیټه کښې هغه ځاے چې اولاد پکښې وي.
**رحمان** : رحمن،

بخښونکے، د الله تعالیٰ صفتي نوم. د پښتو ژبې یو مشهور صوفي شاعر.
**رحمت** : بخښنه، لورینه، مهرباني، فضل، رحم.
**رحم درخواست** : هغه درخواست چې د سزا د معاف کولو دپاره صدر ته وړاندې کولے شي.
**رحمیدل** : رحم کول، مهرباني کول، شفقت کول، لورینه کول،
**رحیل** : کوچ، لیږد، یون.
**رحیم** : رحم کونکے، مهربان، بخښونکے، د الله تعالیٰ یو صفتي نوم.
**رُخ** : مخ، څیره، شکل، واکې، د اس جلو، پلو، لورے، خوا، طرف، سیمرغ، د یو افسانوي مارغه نوم.
سمے، برابرے
**رَخ** : حری، ربنه، حط. کرښه، هغه کرښه چې د ټوپک د شپیلي په دننه برخه کښې کیندل شوې وي.
**رخت** : څرمن، پخه څرمن، سامان، ټوکے، ټوکر، ټوټه، لباس، جامې، کالي.
**رخت** : پال، سپاره، سسپاره، سسپور.
**رخدار** : رخ لرونکے، رخې رخې، هغه شے چې جرې لري.
**رخسار** : غومبورے، اننگے، بارخو، باړخو، نغور، سرهٔ وورتي.
**رخشان** : پرقیدونکے، روښانه، ځلیدونکے،
**رخصت** : اجازت، اجازه، دستور.
**رخصتول** : اجازه ورکول، اجازت ورکول، شړل، له کاره ایستل.
**رخصتي** : هغه رسم چې د جینۍ د وادهٔ په وخت جینۍ خپلو کیدونکي خپلوانو ته سپارلے شي، ډولۍ ورکونه.
**رخصتیدل** : رخصت کیدل،

رسختیدل، شړل، له کاره وتل.
**رخنه** : درز، چاود، سوړے، ګرت، خونه.
**رخنه** : عیب، فساد.
**رخه** : حسد، بدخواهي، کست، قصد، غوږ. اروړ.
**رد** : طرف، لوړے، خوا، پلو، غاړه، تیرېدنه، تلنه.
**رد** : ردونه، تمبونه، مستردونه، ځوابونه، تردید، ورګرځونه، نۀ قبلونه، نۀ مننه، انکار، باطلونه، پریښونه.
**ردوبدل** : لاندي باندي، تیروبیر، نۀ مخامخ کیدنه، عوض و معاوضه، بدلونه، تبادله، یو له بل سره بدلونه.
**ردول** : رد کول، مستردول، تمبول، ورګرځول، تردیدول، نفي کول.
**رده** : پخخه، موره، بنیاد، لاره، لاړ، قطار، قط.
**ردي** : رد شوے، باطل، منسوخ، له کاره وتلے، بیکاره، له بنې وتلے.
**ردیف** : کیر، قطار، ځیره، پسي شا، پشي شا، تر ځټ، غبرګ سوارۀ، دوه سوارۀ، د غزل، قصیدې وغیره هغه توړے چې د قافیې نه پس بیا بیا راځي.
**ردیدل** : جوابیدل، رد کیدل، مسترد کیدل، مرتدیدل، مرتد کیدل، له دینه ګرځیدل، نفي کیدل، باطلیدل، منسوخیدل، لۀ بنې وتل، له کاره وتل.
**رډ** : وچ سترګے، سپین سترګے، کلک سترګے، رټ، راوتلے، بټ سترګے، ښکاره، څرګند، سرټمبه، سرتمبه، په خپله خبره ټینګ، سرکش، ضدي،
**رډول** : ښکاره کول، جوتول، نیغول، سترګې سپینول.
**رډیدل** : رنډیدل، خرې کیدل، ښنې کلکول، ښنې خرییل، خره ښنه کیدل.
**رډے** : تاغ، ډغ، تاغې

تـاغـې ستر ګې لرونکې، بټ ستر ګې، بوک ستر ګې، رډ ستر ګې.
**رذالت** : پستـي، پستيـا، کـچوتـي، کـچګي، ناکسي، سپيتانه.
**رذاله** : کمينه، پاسو، سپک، رذيل،
**رذيل** : پست، کچه، کچوت، سپک، ناکس، رذاله.
**رذيلانه** : د رذالت، د رذيلتوب، د رذالت په طور.
**رړۍ** : شنډۍ، د بکيانې بچې، د بکيانې يا شنډۍ دانې، پچې.
**رزاق** : د الله تعالیٰ يو صفتي نوم، روزي ور کونکې، رازق، روزي رسان.
**رزق** : روزي، روټۍ، خورمه، خوراړه، روزي، رزۍ، شومه،
**رزم** : جنګ، جګړه، شخړه،
**رزمي** : د جنګ، د حماسې، د جګړې، ايپيک.
**رزميه** : د رزم سره متعلق، چې پکښې د جنګ بيان وي.
**رژول** : ريـژول، کـولـول، دوړول، ميده ميده کول،
**رژيدل** : ريـژيـدل، توئيدل، رالـويدل، تليدل، ميده کيدل، دوړيدل.
**رس** : روزي، خواړه، ازوغه، اذوقـه، مـرسته، رښ، يو قسم يوناني دارو.
**رس** : جـوهـر، څوز، ارغ، عرق، نچوړ.
**رسا** : بـالـغ، رسيـدلې، لوړ، سم، درسـت، سيـخ، نيغ، پـه نښه.
**رسالت** : خبر رسونه، پيغام رسـونـه، اطلاع ور کـونـه، پيغمبري، استاځې توب.
**رسالدار** : د رسالې افسر.
**رساله** : وړه مجموعه، وړو کې کتـاب، ليک، د سورو يوه ډله يا يوه قطعه،
**رستـه** : رده، کيلـه، قطار، صف، کيږ، څيره، لين.
**رسد** : بـرخـه، حصه، ونډه،

قسمت، دړې، د خوراک د ځیزونو رسیدنه، خرڅه، د لو وخت، د حاصل وخت، د ایوې وخت، کومک، امداد.

**رسم** : دود، رواج، دستور، عرف، عادت، عنعنه، قاعده.

**رسم** : انځور، تصویر، د یو شي صورت، په هندسه ی قواعدو سره د تصویرونو ایجادونه.

**رسم الخط** : لیک دود، معیاري لیک، د یوې ژبې د لیکلو طریقه.

**رسمول** : رسم ایستل، رسم کښل، انځورول، ځیره یا منظر کښل.

**رسمي** : د رسم سره متعلق، په رواجي ډول، حکومتي، دولتي، سرکاري، په دولتي چارو مربوط، د غیر رسمي مقابل

**رسمیت** : رسمي جنبه لرنه، هغه څهٔ چې رسمي اړخ یا جنبه لري.

**رسمیدل** : انځوریدل، تصویریدل، د یو شي صورت یا ځیره کښل کیدل.

**رسوا** : بدنام، بې آبرو، لوڅ، شرمنده، خوار، ذلیل، معلوم، څرګند، ښکاره، جوت.

**رسوائي** : بدنامي، بې عزتي، موزري، ذلت، پکړې کیدنه، لوڅیدنه، څرګندیدهٔ، افشا کیدنه، جوتیدنه.

**رسوخ** : مخ روړې، اعتبار، عزت، منلتیا، ثابت، ټینګ، محکم، استوار، مضبوط.

**رسُول** : پیغمبر، د خدای استاځی، استاځې، قاصد، هغه څوک چې د خدای پیغام مخلوق ته رسوي.

**رسَول** : ورل، سپارل، تر سره کول، تر اخره کول، پای ته رسول، لوړول، جګول، لوړ مقام ته پورته کول،

**رسولی** : رسوړی، هغه غوټه چې لاسونو یا پښو په ګوتو کښې یا په ګیډه کښې

راخيزي

**رسوم :** رسمونه، رواجونه، عادتونه، دودونه، دستورونه، د رسم جمع،

**رسه :** غټ پړے چې څاروي پرې تړلے شي.

**رسيد :** سند، رسليک، چيټهی، پاروخط، هغه ليکنه چې څوک ئ د پيسو، جائداد يا بل شي د تر لاسه کولو وروسته بل چاته ور کړي.

**رسيدل :** تر سره کيدل، پوره کيدل، بشپړيدل، پخيدل، ځوانيدل، بالغيدل، ودې ته رسيدل، ورسپارل کيدل.

**رسی :** بېسته، رسه، پړے، بدريشه، لوے او غټ پړے، لويه بدريږه، سوتلی، سوتری

**رش :** د اړې بوره، د اړې بور، پوډر، ميدکې، وړې وړې دانې، ننکی، زخې، کرمکې.

**رش :** خيرے، خورے، چرک، گاڼه شربت، تينگ يا غليظ شربت، خګک، کپا، قف، کپ.

**رش :** پيروے، د پيو سر، قيماق.

**رشاد :** ځوان، رشد موندلے، سم، برابر، په لاره سم، گمراهی نه راوتلے، راست، د سمې لارې ښونکے، بريالے، کامياب،

**رشپيل :** د زميداری اوزار چې غنم يا اوربشې پرې بادولے شي، وگوری راشپيل.

**رشتونے :** رشتين، رښتونے، رښتين، صادق، سپين، سم ساده، سپيځلے،

**رشته :** تار، مزے، سپيسے، څانگه، مسلک، اړيکې، رابطه، خپلوي، خپلولي.

**رشتيا :** رښتيا، صداقت، راست گوئي، د دروغو ضد.

**رشتين :** رښتونے، رښتين، رښتيا ويونکے، رشتيا

ویونکی.
**رشتینوالی** : رښتین والی، حقیقت، صداقت، رښتونوالی.
**رشد** : نمود، وده، جسمي او ذهني انکشاف، سمه لار موندنه، په ښهٔ بد پوهیدنه، هدایت موندنه، غوړیدنه، رسیدنه، غښیدنه.
**رشقه** : رشکه، ریشکه، د شوتلو غوندې یو قسم واښهٔ چې کرلی کیږي او څاروي ئ خوري.
**رشک** : سیالي، همسري، برابري. رخه، سخه، اروړ، حسد، ترویځه.
**رشکی** : ډیری، غونډی، ختې، راشهٔ، وړه رشه.
**رشوت** : بډې، رشپت، د څهٔ کار کولو دپاره ناجائزه تحفې، پیسې یا بل څیز اخستنه.
**رشه** : ریشه، پاک شوی درمند، د درمند هغه پاکه شوې غله چې د اخستلو یا وړلو دپاره تیاره وي.
**رشید** : وده موندلی، د ودې خاوند، هغه څوک چې د رشد وصف لري. هغه څوک چې کتېه او زیان او ښهٔ او بد سره پیژندلی شي. د ذهني او بدني ودې خاوند. سمه لار موندونکی، په لاره سم، رښتینی، زړهٔ ور.
**رښتني** : رښتیا، رشتیا، رښتینولي، صداقت، رښتوني، خبره سپینونه.
**رښتنی** : صادق، سپین، رښتونی، رشتینی،
**رښتیا** : رشتیا، د دروغو ضد.
**رښتیاګو** : په رښتیا، رشتیا، په صداقت، د حقیقت له مخې، رښتیانو.
**رښتیانو** : وګورئ رښتیاګو اکثر ورسره "د" راځي لکه د رښتیانو.
**رښتین** : رشتین، صادق، سپین. رښتونی.
**رښتینولي** : د یوې خبرې

سپینونه، د یوې موضوع دروغ او رښتیا معلومونه.

**رښتینې** : رښتونې، رشتین،

**رښی** : نول، کړاو، غصه.

**رضا** : خوښه، اختیار، موافقت، میل، رغبت، انتخاب، غوره کونه، چاړ، چوړ، راضي، خوښ، تابع، خوشحال،

**رضاعت** : د ماشوم د پي رودلو موده.

**رضاعي** : د تي ورور، د پیو شریک ورور، رودني، د تي ورور یا خور.

**رضاکار** : د قوم او ملک خدمت ته پخپله خوښه ځان وړاندې کونکې.

**رضامند** : راضي، رضا، قانع، خوښ.

**رضوان** : د جنت څوکیدار.

**رطب** : لوند، تر، خوشت، خیشت.

**رطل** : د شرابو پیاله، اوړی، د وزن یوه پیمانه.

**رطوبت** : لوندوالې، نمي، تازګي، لنده بل، خوشتوالې،

**رعایا** : رهل، حکم منونکي، رعیت.

**رعایت** : خاطر، لحاظ، نګهباني، حق پیژندنه.

**رعب** : ویره، ډار، خوف، یره، مصیبت، پرتم، ستر،

**رعب داب** : شان شوکت، دبدبه، سام.

**رعد** : تالنده، د اسمان غرا، د اسمان ګړزا، د اسمان ګړز ګروز، غرنده. تندر، صاعقه، تکه.

**رعنا** : خیالي، خیالي ګره، احمقه او خود خواه ښځه، ښکلې، ډولی، د ښهٔ متناسب اندام خاونده.

**رعنائي** : ښائست، ښکلا، حسن، وضع داري، خیال

**رعونت** : تکبر، غرور، تندي، ناپوهي، کم عقلي

**رعیت** : پاسلې، تابع، تبعه، اتباع، رایت، رعایا، عوام، هغه قوم یا ټولنه چې یو سرپرست

مرئے، غلام، بنده. هغه زمکه چې چا ته د هغهٔ تر مرګه پورې ور کړے شوے وي.

**رقص** : ګډا، نڅا،

**رقعه** : خط، لیک، د کاغذ هغه ټوټه چې څهٔ ورباندې لیکلے کیږي. د یو شي ټوټه یا څیرې برخه.

**رقم** : راز، ډول، قسم، انځور، لیک، عدد، پټ لیک.

**رقوم** : د رقم جمع.

**رقیب** : حریف، رخے، سیال، دشمن، خارو،

**رقیق** : ابرن، نرے نروبے، ابلن، هغه مائع چې ټینګه نهٔ وي،

**رکاب** : رکابه، رکیب، د وسپنې هغه دوه حلقې چې د زین دواړو اړخو ته اویزاندې وي او سور پکښې پښې ږدي.

**رکابي** : رکابی، رکیبی، قاب، غاب، پلیټ.

**رکابی** : رکیبی، پلیټ، قاب، غاب، رکابي.

**رکات** : رکعت، د مونځ دومره حصه چې پکښې یو رکوع هم راشي. د مونځ هغه حصه چې پکښې یوه رکوع او دوه سجدې راشي.

**رک روغ** : روغ رمټ، روغ جوړ، بیخي جوړ.

**رکشه** : هغه مشین لرونکې ډولګی چې سورلۍ پکښې اوړلے شي.

**رکعت** : وګورئ رکات.

**رکن** : ستن، بنسټ، پایه، مهم جزو، ستر توک، د هر شي لویه برخه، د هر شي پیاوړے توک، ستره چاره، لوے کار، د قوم مشر، د قوم واکمن.

**رکوع** : د سجدې او قیام ترمنځه حالت، په مانځهٔ کښې د ودریدو نه وروستو د کوزیدو هغه حالت چې لاسونه په زنګنونو وي.

**رکیبی** : رکابی، رغرے، غاب، قاب، بشقاب، نالبکے،

نولبيکې، نعلبکې.

**رګ**: د انسان او حيوان په وجود کښې هغه پلې چې وينه پکښې ګرځي راګرځي. په تيره کښې نرى کرښه يا خط، فکر، نظر، رګې، رشته، د خپلوى رابطه،

**رمباړه**: د ځناورو اواز، رمبکې، وړده چغه.

**رمبې**: د موچي د کار کولو يوه آله چې څرمن يا ربړ يا تار پرې غوڅولې يا توړلې شي. هغه آله چې زمکه پرې ګوډ کولې شي.

**رمټ**: ترکيبي صفت لرونکې کلمه لکه روغ رمټ.

**رمز**: په سترګو، شونډو يا وروځو اشاره، پټه اشاره، زونګه، راز، پټه خبره.

**رمضان**: روژه، د روژې مياشت، د هجري قمري کال نهمه مياشت.

**رمق**: وروستې دم، اخرنى سلګى، نرى ساه، توان، تاب، لږه غذا، د پسونو ګله.

**رمه**: غيله، د ګډو او بزو ګله.

**رمه**: زوه، رمى، هغه مواد چې له زخمه راوځي. هغه سپينې اوبۀ چې دستونو سره څي.

**رميا**: شپون.

**رمى**: هغه ګډوډ زر چې زرګران پرې کالي ټانکه کوي.

**رنج**: کړاو، تکليف، زحمت، درد.

**رنجړومه**: رنجونى، رنجومه، نجړومه، رنجوڼى، وړه کڅوړه چې د سترګو رانجۀ پکښې ساتلې شي.

**رنجه**: خرخوړې، ريتاړه، تريشه، ليشوړه، ريتوړه، ليتاړه، وړه او نرى ټوټه، چيرړه، چيرړه، تړانګه، رخت، ټوټه، ټوکر، کالي، جامه، لباس.

**رنځ**: ناجوړي، ناروغي،

ورېده ناروغي، کړاو، زحمت،

**رنځړهٔ :** رنځړ، رانځړهٔ، چوړيل، زرنه، زرېه، لنځړهٔ، د لمنځې د ونې د جرړو تيل.

**رنځور :** رنځمن، رنځرے، ناجوړه، بيمار، مريض، په مرض اخته.

**رنځوري :** ناروغي، مرض، ناجوړتيا، رنځ.

**رنځول :** کړول، ځورول، ناروغي ورېدول، خبره ورېدول، خبره ځنځول.

**رنځيدل :** بيماري ورېديدل، کړيدل، ځوريدل، يوه خبره يا موضوع ورېديدل، په نرۍ رنځ اخته کيدل.

**رند :** زيرک، ځيرک، دروهلے، بې پروا، ازاد، لاقيده، مست. زړهٔ ور، تيز، جرأت لرونکے، چالاک.

**رنده :** د ترکاڼي يوه آله چې لرګي پرې توږلے شي.

**رنډۍ :** ګډېدونکې، بيسوا، فاحشه،

**رنګ :** لون، د يو شي له ظاهره معلوميدونکے کيفيت، ځيره، بڼه، شکل، قواره. طريقه، طرز، قاعده، کيفيت، حال، قسم، راز، طور، شان، رونق، بهار، جوبن، پړق، ښائست، نظير، مثال، مزه، لطف، د تاش د پتې رنګ.

**رنګدار :** رنګ لرونکے، رنګين.

**رنګريز :** جامې رنګونکے، رنګر.

**رنګمال :** هغه څوک چې د رنګ ورکولو کسب کوي. رنګساز، رنګريز.

**رنګوټ :** رنګروټ، رکروټ، نوے برتي شوے سپائي.

**رنګول :** رنګ ورکول، د رنګ په ذريعه د يو څيز بنيادي حيثيت بدلول، په دعا ښهٔ کول، مالدارول، مالداره کول، په چا ډير احسان کول.

**رنګين :** رنګارنګ،

رنګداره، ښکلې، ښائسته، رنګه.

**رنګیدل** : رنګ اخستل، رنګ کیدل، په دعا ښه کیدل.

**رنګے** : رنګړ، رنګړے، د ګن متضاد. لږ او لږې لږې.

**رڼا** : د تیرې متضاد، روڼه، روښنائي، رڼائي، روښانه، روڼ.

**رڼائي** : روڼائي، روڼوالے، اسودګي، سوکالي، ارامي.

**رڼول** : روښانه کول، رڼا کول، پاکول، صفا کول.

**رڼه** : د روڼ مؤنث. شفافه،

**رؤ** : نرى لاره، لاره، انډو، يو قسم لوبه. روان، جارى، تجويز.

**روا** : حلال، د حرام ضد، جائز، مشروع، مناسب، وړ.

**روابط** : تعلقات.

**رواج** : دود، دستور، رسم، لاره، باب، چلند، ضابطه،

**روادار** : لوررونکے، پیرزو کونکے، د پیرزو خاوند.

**روان** : چالان، تلونکے، په حرکت کښې، بهاند، جاري.

**روانول** : چالانول، حرکت کښې راوستل، بهول، بیول، جارې کول،

**روانیدل** : چالانیدل، متحرکه کیدل، بهیدل، بیيدل، جاري کیدل، تلل، حرکت کول.

**روایت** : خبرې نقل کونه، ذکر، بیان، حکایت، قصه.

**روباه** : لومبړه، سپلمه، ترورږي.

**روبرو** : مخامخ، مخ په مخ.

**روپۍ** : د پاکستان او هندوستان د سکې نوم، شپاړس انې، سل پیسې، روپیه، د حکومت د خزانې نه جاري شوې سکه چې پرې پیرل پلورل کولے شي.

**روټه** : اوربشینه روټی، د اوربشو ډوډی، هغه ډوډی چې د اوربشو د اوړو نه

پخولے شي.

**روټــی** : ډوډی، مــړی، ټیکله، ککوړے، نغن.

**روح** : ارواښ، زړهٔ، نیت.

**روحاني** : د روح سره متعلق، پاک، مقدس.

**روحانیت** : روحاني توب، مـذهبي تـوب، د روح سـره متعلق خاصیت یا طاقت.

**رود** : خــوړ، لـګـډ، سم، وړوکے سیند یا خوړ چې اوبهٔ پـکښـې بهیږي. سیند، سین، دریاب، بحر.

**رودبار** : د سیند، د رود، په رود پـورې مربوط، هغه زمکه چې د رود لانـدې وي یـا لـه رود نـه اوبهٔ کیږي. هغه ځاے چــې پـکښې ګنې ولـې یا نهرونه وي.

**رودل** : رول، روول، تـــے رول، چـوپـل، ځبیښل، ریبل، لو کول.

**روده** : لاره، لار، سـړک، نښـه، نښـانه، نښکه، علامه، اثر.

**روډے** : اموخته، بلد، عادت.

**رو رو** : ورو ورو، پــه مـزه مـزه، سـو کــه سو کـه. زر زر، چــټـک چـټـک، پــه مـنـډه منډه، متے متے.

**روړه** : کــلــک، سـخــت، مـنـجـمـد، ټینګ، وچکالي، سو کړه، خشکالي، مات شوي کاڼي.

**روړه** : ګـډولـه ډوډی، ګډه وډه ډوډی.

**رُوړه** : انګولا، کوله، کولې، د سپـــي اوړد اونـګـاړے چې خلق ئې سپیرهٔ ګڼي.

**روړیــا کوړیا** : ټـوکـړې ټـوکـړې، عــام طور سـره د ښیرو دپاره استعمالولے شي.

**روزانه** : ورځنــے، د ورځې، روزمره، یومي.

**روزګـــــار** : د ورځــــو مـجموعه، ژوند، زمانه، نړی، دنیـا، ګـزاره، ګـزران، فصل، موسم، کسب، کار، پیشه.

**روزل** : تربيه كول، پالل.
**روزنامه** : روزانه وتونكے اخبار.
**روزه** : روژه.
**روزي** : رزق، خوړے، خواړۀ، قسمت، برخه.
**روزينه** : توښه، ورځني خواړۀ، ورځني جيره، د تولې ورځې معاوضه.
**روژه** : روزه، رمضان، د هجرې كال نهمه مياشت چې د شوقدر نه وروستو راځي. د بوزه ضد.
**روژه دار** : روزه دار، روژه ساتونكے، روژه نيونكے، روژتي،
**روږد** : روږدے، اموخته، عادي، بلد، اشنا.
**روږدول** : روږدے كول، بلدول، عادت كول، عادي كول، اموخته كول، اشنا كول.
**روږديدل** : عادت كيدل، اموخته كيدل، بلديدل. عادتيدل.
**روږدے** : عادي، بلد، اشنا، اموخته، عادت.
**روسياه** : تورمخے، مخ تورن.
**روش** : چلند، چلښت، گزاره، چليدنه، يون، رفتار، دود، دستور، طريقه.
**روشن** : رڼا كونكے، ځلان، ځلاند، واضحه، صفا، ظاهر.
**روشني** : رڼائي، روښنائي،
**روښان** : روڼ، ځلاند، څرگند، ښكاره.
**روښانول** : رڼا كول، رڼول، ښكاره كول، جوتول، عيانول.
**روښانه** : روښان، ځلند، ځلان، ښكاره، عيان.
**روښنائي** : رڼائي، نور، ځلا، ځل.
**روضه** : باغ، بن، گلزار، گلستان، شنيلے، سبزه زار، ښنه، مزار، زيارت، قبر، د ولي الله قبر.
**روغ** : جوړ، سالم، صحت

منـد، تندرست، سم، صادق، بې جنجاله، په تجارتي چارو کښې روغ.

**روغبړ** : بره کړه، سترې مشي، جوړ تازه، روغ جوړ، د دوؤ کسانو یا زیاتو کسانو مخامخ کیدو په وخت د لاس ورکولو یا غیږ ورکولو په طرز کښې د جوړ ناجوړ پوښتنه او خبرې اترې.

**روغتون** : شفا خانه، د بیمارانو د علاج او دارو درملو ځاے.

**روغ جوړ** : روغ رمټ، بالکل جوړ، بیخې روغ، صحیح سالم.

**روغ رمټ** : روغ جوړ، صحیح سالم، جک جوړ.

**روغ موټ** : روغ جوړ، جک جوړ، صحیح سالم، صحت یاب،

**روغني** : په تنور پخه شوې هغه روټی چې په منځ کښې ئې غوړي اچولے شوے وي.

روغنـی، روغانی، خوږه روټی.

**روغنیات** : گریس. تیل، غوړي، غوړ لرونکي څیزونه.

**روغول** : جوړول، شفا ورکول، ښه کول، سازول، سمول، ترمیمول، پخلا کول، جوړه راوستل، اختلاف لرې کول، رغل، بخښل، د دښمن جزا بخښل.

**روغه** : جوړه، صلح، پخلا کیدنه، سوله، سمه، درسته،

**روغه جوړه** : جوړه جاړه، صلح، روغه.

**روغیدل** : جوړیدل، شفا موندل، سازیدل، صحت موندل، ښهٔ کیدل، ترمیمیدل، سمیدل، بخښلے کیدل، عفوه کیدل، پخلا کیدل.

**رؤف** : مهربان، مشفق، د الله تعالیٰ یو صفتي نوم.

**روګ** : د څپلی تسمه، د کمربند تسمه، پټی، د سنیو پرتوګ.

**روګردان** : مخ اړونکے، نافرماني کونکے،

**روګودر** : لاره، بندوبست.

**رول** : رابښکل، راکښل، چوپل، تے رودل

**رومال** : دسمال، رومیال، ریمال،

**رومان** : رومانس، حکایت، داستان، افسانه، ناول، د حماسي ادب یو قسم چې د انساني ژوند پیچلې پروسه د حکایت او داستان په ډول منعکسه شي.

**رومي** : باټینګر، باتینګړ، سرهٔ بانجان، رومي بانجان. ټماټر،

**رومیال** : رومال، دسمال، ریمال.

**رونق** : ښهٔ والے، سموالے، خوند، مزه، ښکلا، ښائست، شان، پرتم، پرمختیا، په کار کښې پرمختګ، خلا، خل، ځلیدنه، رڼا، روښنائي.

**روڼ** : ځلانده، ځلند، روښان، ښکاره، څرګند.

**روڼول** : روښانه کول، رڼا کول، رڼا ته ښکاره کول، رڼا ته ایستل، پاکول، صافول، شپه په ویښه تیرول، شپه وهل، شو ګیره کول، دعوې فیصله کول، دعوې خلاصول، په وار کول، په نوبت کول، ترتیبول، مرتبول، منظمول، په ترتیب سره ایښودل.

**روڼیدل** : رڼا کیدل، روښانه کیدل، صفا کیدل، پاکیدل، په وار کیدل.

**رووول**: رودل، رول، چوشل، چوپل، د تي نه پئ رودل، د تي نه په خلهٔ باندې پئ راښکل،

**روي** : د قافیې اخري بار بار راتلونکے حرف.

**رویا** : خوب، خوب لیدنه.

**رویت** : دیدن، کتنه، دیدار.

**روئیداد** : پیښه، واقعه، حادثه، شخړه، د حال حقیقت. روداد.

**رویدار** : لحاظ دار،

مخوریز، معزز.
**رویه** : چلند، چلښت، انړ.
**رهبانیت** : د راهب او راهبی طریقه، راهب والے، راهب توب، دنیا پریښودنه، یواځې توب.
**رهبر** : رهنما، پیشوا، راهبر.
**رهبري** : لارښودنه، لیډري، پیشوائي، راهنمائي. رهنمائي.
**رهزن** : لاره وهونکے، شوکمار، هغه څوک چې لارې شوکوي، ډاکو، غل، لاره شوکونکے.
**رهګزر** : د تیریدو لار، درک، لاره، لاروے، په لاره تلونکے.
**رهنما** : راهنما، رهبر، لارښود، راهبر.
**ریا** : ظاهرداري، ښودنه، منافقت.
**ریاست** : دولت، حکومت، سلطنت، د یوۀ وزارت د تشکیل لویه اداره، مشري، سرداري.
**ریاضت** : مشقت، محنت، پرهیزګاري، عبادت، ورزش، مزدوري.
**ریاضي** : یو علم چې حساب، هندسه، موسیقي نجوم او جبر و مقابله پکښې شامل وي.
**ریاکار** : دوکه باز، فریبي، منافق، ظاهردار.
**ریال** : د سعودي عرب د سکې نوم.
**ریتاړه** : ریخه، شلیدلې کپړه، چیرړه.
**ریچن** : په سر کښې ریچې لرونکے.
**ریچه** : پوتے، پیڅانے، د سپږې اګی.
**ریچې ریچې** : ذره ذره، ټوکړې ټوکړې.
**ریخ** : ریخه، د خاروي یا بنیادم نرم ګروبے شان اودس ماتے چې د بیماری یو قسم ګیلے شي.
**ریخ** : روح، روخ، نفس.

**ریختاره** : نرمه سوته، شلیدلې کپړه،
**ریخن** : ریخ وهونکے، ریخي، سیرن،
**ریخے** : د خاروو یو مرض چې پکښې خاروي بهیږي،
**ریدي ګل** : د لاله ګل
**ریشتلے** : پاتې شوے څیز، په غوبل کښې کار کونکي سړي ته د زمیدار له طرفه ورکړې شوې غنم.
**ریښانګه** : رنجه، رینجه، ریښه، چیرړه، چرړه، د زړې توتې یا توکي نه شلیدلې نرې توکړه،
**ریښه** : چیرړه، رنجه، د کپړې شلیدلې توته.
**رینګټ** : رینګه رینګه کول.
**رینګول** : ماشوم د تنګولو په وجه په رینګه رینګه سر کول، د ماشوم بې وجې مسلسل په خاص انداز کښې تنګول او ژړول.

**رینه** : د چمیارې د کار یو خاص اوزار چې سورې پرې کولے شي، په څنو ځایونو کښې پرې شکورونه هم جوړولے شي او وړې پرې سپینولے شي.
**ریو** : فریب، چال، دوکه.
**رئیس** : سردار، مالدار، صدر.
**رې** : د پښتو د حروف تهجي د شپاړسم حرف "ر" اواز او تلفظ.
**ریبار** : قاصد، پیغام رسونکے.
**ریباري** : د عاشق او معشوق تر منځه پیغام رسونه.
**ریبځ** : ریبځونے، جاړو، جارو، جاروب.
**ریبړ** : نرمه ختهه.
**ریبل** : ریبدل، لو کول، فصل پریکول.
**ریټ** : نرخ، قیمت، بیعه، بیه.
**ریحان** : کشمالو، کشمالے،

یو خوشبو دار بوټے، بوبرے، ببرے.

**ریدي** : د لاله ګل، غانټول، غاټول، خاټول.

**ریړه** : د غوانو ګاډے.

**ریزش** : نزله، د یخنی وهنه، د پوزې بهیدنه.

**ریز ګاري** : ماتې پیسې، چینج.

**ریز مریز** : ذرې ذرې.

**ریزه** : ذره، پوټسکے، بکسکے، معمولي، وړوکے، ډیر لږ.

**ریږول** : رژول، دانه دانه کول، د ورې نه دانې لرې کول، ګل پاڼې پاڼې کول.

**ریږیدل** : رژیدل، دانه دانه کیدل، د ورې نه دانې لرې کیدل، ګل پاڼې پاڼې کیدل.

**ریږد** : لړزان، ریږدان، لړزه.

**ریږدل** : ریږدیدل، رپیدل، لړزیدل.

**ریږدیدل** : خوځیدل، د ویرې یا تبې په وجه وجود په حرکت کښې راتلل،

**ریشخند** : پیشاړه، ټوقه، ملنډه، نخوال،

**ریشل** : وریشل، وریښل، ورتل.

**ریشم** : ابریښم، ابریشم.

**ریشه** : بنیاد، بیخ، ویخ.

**ریښم** : ریشم، ابریښم، وریښم.

**ریښمین** : وریښمن، ریشمین، له ریښمو جوړ،

**ریګ** : میده خاوره، شګه،

**ریګستان** : صحرا، شګلنه زمکه،

**ریګمال** : یو زیږ شان کاغذ چې د وسپنې نه پرې زنګ لرې کولے شي.

**ریل** : اور ګاډے، هغه د سورلو ګاډے چې په پټړی چلولے شي.

**ریمن** : خیرن، ګنده، مړاوے، نیم ژوندے، رامچک، رامجک، بدرنګه، بدشکله،

**ریمنول** : خیرنول، مړاوے

کول، بدرنگه کول،

**ریودل :** چوپل، تې رودل، رول، لوړیدل، هسکیدل.

**ریوړی :** لیوړی، د کنځلو او ګوړې یا چینو نه جوړ شوې واړهٔ واړهٔ غونډ خواږهٔ غونډاري.

**ړ** : (ړې) د پښتو د حروف تهجي اوولسم حرف، د ابجدو په حساب ئ قيمت د "ر" برابر يعني دوه سوه (۲۰۰) دے.

**ړانده** : د ړوند جمع، نابينا ګان.

**ړپول** : اوبه په حرکت کښې راوستل، خوځول، ړقول، ژبه تاوول، په دروغو خبرو ژبه خوځول، اوبو کښې وهل،

**ړپيدل** : اوبه خوځيدل، ړقيدل، په اوبو کښې وهلے کيدل.

**ړچ** : خوځيدنه، حرکت، ځنلړ.

**ړچا** : خوځيدنه، ړپا.

**ړچول** : ړچ ورکول، خوځول، حرکت ورکول، ړنجول، ښوررول.

**ړق** : ړقا، حرکت، خوځيدنه، لړزيدنه، رپ.

**ړقا** : وګورئ ړق.

**ړقول** : حرکت ورکول، ړچول، خوځول، شوررول، ړپول.

**ړقيدل** : حرکت کښې راتلل، خوځيدل، لړزيدل، ړپيدل.

**ړنبوسه** : ليتمی، اتوب، اوماچ.

**ړندول** : نابينا کول، پسخول.

**ړنده** : د ړوند مؤنث.

**ړنده کاته** : بې پرسه، انديړ، انديړ ګنلړ، ناپرسانه، بې انصافي، بې عدالتي.

**ړنده مږه** : يو قسم مږه.

**ړنديدل** : نابينا کيدل، د نظر بيخي ختميدل، پسخيدل، بغض او دشمني ساتل.

**ړنګ** : وران، تباه، برباد، خراب تراب، نړيدلے، وران شوے، له منځه تللے،

**ړنګول** : ورانول، بربادول، تباه کول.

**ړنګيدل** : ورانيدل، تباه

کیدل، برباديدل، نړيدل، خرابيدل، پريوتل،

**ړنګی** : ړينګی، لونګی، د ريښمو ړينګی.

**ړوند** : نابينا، په ستر ګو معذوره، کم عقل، جاهل،

**ړوند کوڼ** : کوروکر، وارخطا، چې نۀ څۀ اورې او نۀ څۀ ويني.

**ړيچه** : منډه، زغل، دولکي.

**ړينګے** : کبے، کندړے، خدران، روړے، بروتے. دسترخوان، اسباب خانه، د سامان ايښودو ځاے، تال ګکال.

**ړې** : د پښتو د حروف تهجي د اوولسم حرف تلفظ او اواز.

**ز** : (زې) د پښتو د حروف تهجي اتلسم حرف چې د ابجدو په حساب ئ شمير اووۀ (۷) دے.

**زاد** : توښه، خوراک، اذوقه.

**زاد** : پيدا شوے.

**زاد** : هغه لاحقه چې د څنو اسمونو سره يو ځاے شي نو معنیٰ ور کوي لکه پري زاد، ادم زاد وغيره.

**زار** : تکليف، رنج، مصيبت، پريشاني، ژړا، فرياد، تاپ، گيله مانه، د زهر دويم قرأت.

**زار** : لاحقه چې د نورو کلمو سره راځي لکه گلزار، لاله زار، ريگزار وغيره.

**زار زار** : په چغو چغو، په کوکو.

**زارع** : کرونده گر، بزگر.

**زارموره** : زهرموره، يو انساني عضو.

**زاره** : تريخے، ترخے، يو انساني عضو، د صفر کڅوړه.

**زاره چاودے** : زاره مړے، مصيبت زده، غمزده، زاره ترکے، خوارو زار.

**زاري** : فرياد، منت، چغې سورې، خوشامنده.

**زاريدل** : خفه کيدل، پريشانه کيدل.

**زاړې** : هغه پيور ځاروے چې د لنگون ئ ډيره موده شوې وي او پي ئ پکښې کم شوي وي، د تانده متضاد.

**زاړۀ** : زيړ، شاړشپاړ، شلډل بلډل، د مهين او هوار متضاد.

**زاغ** : کارغۀ. رقيب، هوښيار، زيرک، چالاک.

**زاغه** : سمڅ، کمرغالے، سمڅه.

**زاک** : خاورى، پتهكرى، پتهكهى.

**زال** : بوډا، زوړ.

**زامن** : ځامن، نارينه اولاد، د زوي جمع.

**زانگل** : ځانگل، جوتې خوړل، په يو ځوړند څيز

جوتې خوړل، تپال خوړل.
**زانګو** : ځانګو، هغه ګواره چې ماشومان پکښې زنګولے شي.
**زانګول** : جوتې ورکول، ځانګول.
**زانګه** : انګې، انګازه.
**زانګـه** : قـد، لوړوالے، زانګې.
**زانـي** : زنـا کـار، بـدکـار، بدکاره، د زنا سره متعلق.
**زانيه** : زناکاره ښځه.
**زانه** : وړدې پښې وړده غاړه او تيرهٔ مښو کـه لـرونکے يو مـارغـهٔ چـې عـموماً پـه اوبو کښې ژوند کوي.
**زاويه** : کـنـج، ګوټ، ګټ، هغه شکل چې د دوؤ مستقيمو کرښو د تقاطع سره جوړيږي.
**زاهد** : پـرهيـز ګـار، زهد و تـقـويٰ کونکے، پارسا، عابد، نيک.
**زاهـدي** : پـرهيـز ګـاري، تقويٰ، تقويٰ داري.
**زائچه** : د منجم پيش ګوئي، د نوي ماشوم د ژوند د حالاتو پيش ګوئي.
**زائد** : زيـات، ډيـر، دپـاسه، اضافه، علاوه.
**زائـر** : زيـارت کـونـکـے، زيارت ته تلونکے.
**زائل** : ضـائـع، نابود، له منځ تللے، زوم، لرې.
**زبـات** : ښيـګـړه، نيـکـي، احسـان، زبـاد، صـفـت، د احسـان او ښـو يادونه، ثابت، کلک، استوار.
**زبـاتل** : پـاسـتـل، پـاسلل، احسـان يـادول، نيکي او مينه يادول.
**زبـاتيـدل** : زبـاديـدل، ثبوتيدل، ثابتيدل.
**زباد** : وګورئ زبات.
**زبادول** : زبـاتـول، ثابتول، ثبوتول.
**زباديدل** : زباتيدل، ثبوتيدل، ثابتيدل.
**زبان** : ژبه، وعده، ژبان.

**زباني** : په خلهٔ وئيلے شوے، په خلهٔ، په ژبه، د ژبې سره متعلق، شفاهي.
**زُبده** : غوره، مهم، زبردست، معروف، ښکاره.
**زبر** : دا تورے عموماً د "زير" سره راځي لکه زير و زبر، يا زبر او زير. خراب تراب، گډوډ.
**زبر** : د "ا" نيمه چې نيم علامت گڼلے شي. فتحه.
**زبر** : ياد، زوت، حافظه کښې، ازبر.
**زبرجد** : يو قسم زمرد، قيمتي کاڼے.
**زبردست** : تکړه، زورور، غښتلے، قوي، ښکاره، وتلے، د قدرت خاوند، د مهارت خاوند، ماهر.
**زبردستي** : زورورتيا، زوروري، ماهرتيا، مهارت.
**زبرگه مچۍ** : د سرې مچۍ هومره يوه برگه (خړه توره) مچۍ چې د ختو نه د گلاس په شان کور جوړوي او په هغې کښې بچي راوړي.
**زبور** : په حضرت داؤد عليه السلام نازل شوے اسماني کتاب.
**زبون** : مزه، ذائقه، خوند، ژبه، زبه.
**زبون** : ذليل، خوار، کمزورے، خوريدلے، عاجز، لاغر.
**زبه** : ژبه، لوظ، وعده، اقرار.
**زبيرگے** : په بيمارى يا سختى کښې فرياد، زويرگے، زگيروے، فرياد.
**زبيښ** : ځبيښ، جذبونه، زبيښنه، چوشنه، چوپنه.
**زبيښل** : ځبيښل، چوپل، جذبول، راکښل، نچوړول،
**زبى** : ژبى.
**زجر** : ځور، کړاؤ، تکليف، زحمت، ځوروونه، شکنجه، ترټنه، ستونه.
**زُحل** : د شمسي نظام له نهو ستورو نه يو ستورے.
**زحمت** : ربړ، کړاؤ،

کړاک، تکلیف.
**زحمتي** : د زحمت، زیار کښ، خواري کښ، زحمت لرونکے، په تکلیف کښې.
**زخم** : پرهر، پرهار، پرار، تپ، خارخوږي، ګرزنے، ځرخاؤ، بغری، زغومے، غړومبے، ګرداؤ.
**زخمي** : تپي، ژوبل، پرهرژلے، خوږ.
**زخه** : د وجود په یوه برخه راختلې زیاتي شان غوښه، دانه، خنډ، غوټه، د ټوپک یا تماچې غوټې، زړے.
**زد** : تاثیر، اثر، اغیزه.
**زدکول** : زدکړه کول، پوهیدل، تعلیم حاصلول، د پوهیدلو دپاره کوشش کول.
**زدکیدل** : پوهه حاصلیدل، پوهیدل.
**زده** : په حافظه کښې پروت، زده شوے، حفظ.
**زده** : وهلے، خپلے، زپلے، خمبلے، غمژن، غمګین، خفه. لګیدلے، داغي شوے.
**زر** : یو قیمتي دهات، دولت، مال، سرۀ.
**زر** : هزار، لس خله سل، د شمار یوه اکائي،
**زر** : د ژر مفغں، په بیړه، تیز، ګړندے، جلت.
**زراعت** : کر، کښت، کرنه.
**زراعتي** : د زراعت سره متعلق.
**زربفت** : زرناپ، کین خاب، کمخاب، یو ریښمین ټوکے.
**زرپانه** : زر ورق، زر برخ، د زرو پاڼه.
**زرپرست** : د دولت سره مینه لرونکے.
**زر تر زره** : ژر تر زره، سمدستي، فوراً، ډیر ژر.
**زرتشت** : زرتښت، زرتشتي، د زرتشتي منصب خاوند چې اور ته ئ سجده کوله.
**زرخیز** : اباد، شاداب،

تروتازه، زيات پيدوار كونكے.

**زردار** : شتـهٔ من، بډائـي، دولت مند، مالدار.

**زرداري** : د زردار كيـدو حالت.

**زردالو** : خوبانـي، مندتـه، زيړ غنجي، زيړ رنګ لرونكې يو قسم ونه او د هغې ميوه.

**زردكه** : ګاځره. زيړانګه، زيړكـه، ژړانګـه، زيړ رنګ لرونكې يوه مرغى.

**زرده** : په پان كښې د خوړلو تـمـاكو، زيـړ رنګ لرونكې خوړې وريژې.

**زرزري** : زريـن، زربـفـت، هـغه كپړه چې د تيلې نه جوړه شوې وي.

**زرزرين** : زرزري، زرين، له زرو جوړ.

**زرشوئي** : د زرشوئ كار.

**زرغـن** : شيـن زيـړ بـخـن رنګ. تږ كيدلے،

**زرغـنول** : تـږ كـول، شنـهٔ كول، زرغونول.

**زرغنه** : شنه، شينكے، سبزه زار، شنهٔ زرغونه.

**زرغنيدل** : تـږ كيدل، شنهٔ كيـدل، زرغن رنګ اخستل، نيک مـرغـه كيـدل، بختور كيدل، زرغونيدل.

**زرغـه** : سستـي، كـاهلـي، ناراستي، تمبلي.

**زرق** : فريب، چال، دوكه،

**زرک** : ښـائستـه ستركې لرونكے يو مارغهٔ،

**زركالے** : د زرو د اصليت د معلـومـولو دپاره پكارونكے تور كالے.

**زركه** : يو ښائسته مرغى، د زرک مؤنث.

**زرګر** : د زرو كـار كـونكے، چې د زرو كالي پتري جوړوي.

**زرګري** : د زرګر پيشه او كار.

**زرګون** : د زرو عـدد سـره متعلق، د زرو نوټ.

**زرګـونه** : زر چـنده، پـه زر كرته.

**زرنده** : ژرنده، د اوړو اوړولو یوه آله چې په اوبو ګرځي.

**زرنګار** : د زرو په اوبو لیکلی شوی، ښکلی، ښائسته، محبوب.

**زرنګي** : زیرکي، چالاکي، هوښیارۍ.

**زره** : زغره، بګتری، د جنګ دپاره پکاریدونکې جامې چې له وسپنې جوړې وي.

**زرها** : په زر کرته، ډیر زیات.

**زري** : د زرو، طلائي، زرین، هغه کپړه چې د تیلې کار پرې شوی وي.

**زرین** : له زرو جوړ، زري.

**زړتوب** : زوړ والی، زړوالی، زړتیا،

**زړخن** : هغه غوړي چې خوند ئې خراب شوی وي او یا ئې خوند اړولی وي.

**زړښت** : ونګورئ زوړوالی.

**زړغی** : تذبذب، تردد، بې زړه توب.

**زړغی** : متردد، بې زړه، زړغښی. له ناروغی نه وروستو اشتها.

**زړګوتی** : زړګی، د زړه اسم تصغیر.

**زړوالی** : زوړوالی، زړښت، سپین ږیرتوب.

**زړور** : دلاور، شجاع، زړن، د زړه خاوند.

**زړوکی** : زړګوتی. تیکری، پړونی، پوړنی، لوپټه، زوړکی، جامه، کپړه.

**زړول** : په مزه مزه له منځه وړل، بوډا کول، عمر تیرول، ورستول، فرسوده کول.

**زړه** : د زوړ مؤنث، بوډۍ، عمر خوړلې.

**زړهٔ** : په سینه کښې ګس اړخ ته د وینې صفا کولو یو اندام. جرأت، همت، خواهش، رغبت، مخه، مرضي، رضا، خوښه، منځ، مرکز.

**زړۀ سواندے:** زړۀ خوږے، د نرم زړۀ خاوند، زړۀ سواند.
**زړۀ ور:** زړور، تکړه، بهادر، دلاور.
**زړیدل:** بوډا کیدل، عمر زیاتیدل، عمر تیریدل، رمیدلے کیدل، فرسوده کیدل، له استعماله وتلے کیدل، ورستیدل.
**زږے:** زوښے، زښے، تخم، مندکه، بمبته، نسل، ختښه، نسب.
**زږګے:** جیږګے، زیږګے، جوزګے، شیژګے، سیزګے شژګے.
**زږه:** د سپینو زرو یوه سکه.
**زشت:** زښت، بیسره، کرغړن، ناکاره، بد، پوچ، بدرنګ، خراب.
**زشتي:** خرابي، بدرنګي.
**زښت:** ډیر زیات. له پامه بد، له نظره بد، زشت.
**زعفران:** زاپران، کنګو، کنکو، یو قسم زیړ رنګ لرونکے بوټے.
**زعفراني:** د زعفران سره متعلق.
**زعیم:** د قوم مشر، رهبر، سرکرده، پیشوا. کفیل، ضامن، رئیس.
**زغاره:** د غوښتو ډوډۍ، د ږدنو ډوډۍ.
**زغاست:** ځغاست، ځغاښت، منډه، زغل.
**زغاستل:** ځغاښتل، منډه وهل، زغلیدل.
**زغاښتل:** ځغاښتل، زغلیدل، منډه وهل،
**زغل:** سکارۀ، زوغال.
**زغمږ:** زغوپر، آفت، بلا، مصیبت، تکلیف.
**زغر:** یو قسم دانې چې تیل ترې ایستے شي.
**زغرد:** زغرد، زړور، نیغ، تیز، تند، چالاک.
**زغره:** زره، بګتری، د جنګ دپاره پکاریدونکے فولادي قمیص.

**زغل** : ځغل، منډه، تیښته، تیز تګ.
**زغلول** : ځغلول، په منډه کول، تښتول.
**زغلیدل** : ځغلیدل، منډه وهل، تښتیدل.
**زغم** : صبر، تحمل، حوصله. جذبونه، هضمونه، ګالنه، زغما، برداشت.
**زغمل** : برداشت کول، ګالل. جذبول، جذب کول، هضمول.
**زغمه** : برداشت، صبر، تحمل، حوصله، زغما.
**زغومې** : وژغنه، وژغنه، د بزو وری.
**زغومے** : غړومبے، بغرى، تندوره، زخم، ګرداب، ګرداؤ، څرخاو، چرخاو، ګمند، وهلندے، خارخوړی، ګرځی
**زقوم** : زقم، تیره ازغي لرونکے يو قسم تریخ بوټے.
**زک** : د غوړو ګوډے، د غوړو مشک، سناز، شناخ.
**زکات** : زکوة، له پنج بنا يوه بنا چې د صاحب نصاب دپاره عین فرض دے.
**زکام** : ریزش، یخني، يوه بیماري، چې پکښې له پوزې اوبۀ بهیږي.
**زګیروے** : زګروا، فریاد، زویرګے، زبیرګے، نالښت.
**زلال** : پاکې او رڼې اوبۀ. زنګال. د واورې چینجے چې بدن ئې له واورې ډک وي.
**زلال** : لیونے، مجنون، دیوانه، ظالم.
**زلزل** : خوځیدنه.
**زلزله** : د زمکې ناګهانه خوځیدنه، ریږدیدنه.
**زلفې** : زولپې، زولفې، کوڅۍ، کمڅۍ، څڼې
**زلق** : خلق، پرق، پړک، خلا، بریښ.
**زلل** : ضرر، اذیت، تاوان، زیان، نقصان.
**زلمے** : ځلمے، ځوان، رسیدلے، بلوغ ته رسیدلے.

**زلند** : زبردست، زورور، جابر، ظالم.

**زلوچه** : غالیچه، غالینچه، قالینچه، وړوکے قالین.

**زم** : وار، ګوزار، زخم، تپ، پرهر، پرهار، زخمي او ټکیدلے ځاے.

**زما** : د ما، ایما، د واحد متکلم اضافي ضمیر.

**زمام** : واګې، جلو، عنان، مهار، نته. سرشته.

**زمامدار** : واکمن، واکدار، اختیار لرونکے، مختار، اداره کونکے، مشر، رئیس، سرکرده، سرغندوي.

**زمان** : وخت، مهال، شیبه، روزګار، پیر.

**زمانه** : زمان، پیړی، عصر. وخت، دور.

**زمبک** : زمبق، نرمې او ښکلې پاڼې لرونکے یو قسم ګل، سوسن.

**زمبور** : ډبره مچی، غمبسه، بمبره، ډنډاره.

**زمبیل** : زامبیل، زنبر، جغے، د بوجی او لرګي نه جوړه هغه آله چې د دوؤ کسانو په ذریعه پکښې خاوره چلولے شي.

**زمرد** : یو قسم قیمتي شین کاڼے. زرغن کاڼے.

**زمریالے** : میړنے، ژرور، مړنے، تکړه، د زمري په شان زړور.

**زمرے** : مزرے، منزرے، امزرے، ازمرے، یو طاقتور ځیرونکے ځناور. زړور، دلاور، بهادر، مړنے، میړنے.

**زمزم** : د بیت الله شریف سره خوا کښې چینه او د هغې اوبهٔ چې د مرضونو شفا ګڼلے شي.

**زمزمه** : اتفاق، ملګرتیا، لښکر، جماعت، د اوښانو رمه، ترانه، نغمه.

**زمستان** : ژمے، د ژمي موسم.

**زمکه** : هغه خاورینه کره چې مونږ پرې وسیږو. دنیا،

جهان، د غزل ردیف، قافیه او وزن بحر.
**زموږ** : د زمونږ بل قرأت.
**زموږه** : د زمونږه بل قرأت.
**زمونږ** : زموږ، د جمع متکلم اضافي ضمیر.
**زمونږه** : زموږه. د جمع متکلم اضافي ضمیر.
**زمه** : پتکړی، خوری، پتکنې.
**زمهریر** : سخته یخني، سخت ژمی، د دوزخ یخه برخه.
**زمیدار** : زمیندار، کرونده گر، بزگر، زمکه کرونکے، د زیاتې زمکې مالک.
**زمیداره** : دهقاني، کرونده، د کر کروندې دنده، کاشتکاري،
**زمیداري** : زمینداري، بزگري، دهقاني، د زمکې د کر کیلې کار او پیشه.
**زمیندار** : وگورئ زمیدار.
**زمینداري** : وگورئ زمیداري.
**زمینه** : زمکه. حالات، واقعات، ماحول.
**زمیني** : د زمکې سره متعلق، د زمکې سره مربوط.
**زمے** : ژمے، د ژمي موسم.
**زنا** : بدفعلي، بدکاري، ناجائزه تعلقات، د غیر منکوحه ښځې سره نزدیکت.
**زنار** : کاپرمزے، هغه مزے چې عیسایانو یا یهودیانو ملا پورې تړلے وي یا هغه مزے چې یو قسم هندوانو په داسې شان په غاړه کښې اچولے وي چې یو سر ئې په مټ او بل د ترخ د لاندې وي.
**زناکار** : زاني، زنا کونکے.
**زنانه** : ښځه، تورسرې، مایینه، اورته، عورته، ارتینه. ښځینه، د ښځو.
**زنجبیل** : سونډ، شونډ، وړدې او نرې پاڼې لرونکے یو قسم زیړ رنګ واښهٔ.
**زنځول** : ځځول، د کوزې یا بل داسې لوښي نه قطره

قطره څڅول.

**زنځه :** شوبله، سرسوبنده، د زمکې یو خزنده.

**زنځیر :** د وسپنې د کړو لړی.

**زنځیرول :** زنځیر اچول، ور ته زنځیر اچول، بندول، راګیرول.

**زنځیری :** یو تاریخي لیک چې د خوشحال بابا سره منسوب دے. د چاربیتې یو قسم.

**زنځیدل :** څڅیدل، له کوزې یا بل داسې لوښي نه قطره قطره زنځیدل.

**زنځی :** نری نری او وړې وړې کړی.

**زنخدان :** د زنې منځنی ژوره برخه، زنچخے.

**زندان :** جیل، بندي خانه، د قیدیانو ساتلو ځاے.

**زنداني :** محبوس، قید، بندي. د زندان سره متعلق. هغه خاروے چې زندان ئ

راوځي.

**زندګي :** ژوند، ژوندون.

**زنده باد :** ژوندے وسه، د دعا کلمه.

**زندیق :** ملحد، ګمراه، له خدایه منکر،

**زنکدن :** وګورئ ځنکدن.

**زنکی :** زیره، یو خوشبودار او باریک تخم چې اکثر په ګرمه مصالحه کښې اچولے شي.

**زنګ :** د وسپنې خیرے سخته یخني، سخت ساړهٔ،

**زنګ :** تهلی، د پیتلو یا وسپنې جوړه تهلی چې په سکولونو کالجونو یا جیلونو کښې د ګینټې پوره کیدو نه پس وهلے شي. جرنګانے، ږنګ، ګینګړے، کړنګانے، شرنګانے.

**زنګون :** د ورون او پنډۍ ترمنځ برخه،

**زنګي :** زنګ خوړلے، زنګ نیولے، زنګ شوے

**زنګي** : حبشي، تورپوستی.
تور پوټکی، تور غټ او قوي

**زنه** : د لاندې شونډې او
مرۍ ترمنځ حصه. ذقن.

**زنهار** : خبردار، هرګز، هيڅ
کله، هډو. بيخي، امان، پناه،
د تاکيد دپاره هم راځي

**زنې** : زړی، تخم، زوڼی. د
ختکي، هندوانې وغيره تخم.

**زو** : زيږنه، زيږيدنه، زوکړه.

**زواک** : ژواک، ژوند،
ژوندون.

**زوال** : کمی، تنزل، د ترقی
او عروج کميدنه، لرې کيدنه،
ورکيدنه، له برمه پريوتنه،
لويدنه، غورځيدنه.

**زوبل** : ژوبل، زخمي، ټپي.

**زوتول** : ضبط کول، يادول.
زده کول.

**زوج** : ميړه، جوړه. جفت.

**زوجه** : ښځه. ارتينه،
ماندينه، اورته. عورته.

**زوجيت** : د زوج [illegible] متعلق

**زور** : طاقت، قوت، توان
تاؤ، سيک. جبر، ظلم،
زياتی، تعدي.

**زور** : فتحه،

**زوراک** : زوراق، پسخاک.
زړه خوراکي.

**زوراور** : زورور، طاقتور،
قوتناک، سيکور، جابر،
ظالم.

**زورزياتی** : ظلم، تيری،
ستم، زور ظلم.

**زور شور** : شان و شوکت،
ګرماګرمي، ګرمجوشي.

**زورق** : کشتی، وړه کشتي.

**زورکی** : وړوکی زور، د
پښتو مخصوص حرکت چې
د نيم زور برابر وي او الټه
ليکلی شي.

**زورل** : ځورول، ربړول، په
عذابول، ملامته کول.
سپورې ستغې ويل.

**زورور** : زور لرونکی، د
زور خاوند.

**زوريدل** : ځوريدل،
[illegible] پاريدل، ربړی کيدل.

د عتاب لاندې راتلل.
**زوړ** : بوډا، د ډېر عمر، عمر خوړلے، سپین ږیرے، د نوي متضاد.
**زوږ** : شور، غوغا، غالمغال، غورپش، غورمش.
**زوکړه** : پیدا کیدنه، تولد، زیږیدنه، پیدائش.
**زوکول** : پیدا کول، زیږول،
**زول** : ځول، تیزه سیلی چې ځان سره دوړې راپورته کړي.
**زولن** : زون، له زوو ډک، زوې لرونکے زخم.
**زوم** : د لور میړهٔ، د وادهٔ ځلمے، د لور خاوند.
**زومنه** : ښوروا، شوروا، شوربا. نقصان، زیان، تاوان، خساره.
**زون** : سیمه، منطقه. طبقه. قلمرو، کمربند.
**زوند** : ژوند، ژوندون.
**زوندے** : ژوندے، حیات.
**زوول** : زیږول، پیدا کول، راوړل، زوکول، سولول، زودیل، زدوول، ژوول، ژویل،
**زووه** : د غرهٔ د لمني هغه ځاے چې په ګرمی کښې پرې اوبهٔ راځي.
**زوه** : د زخم نو، د داني خړ رنګ لرونکې اوبهٔ. پیپ،
**زوې** : ځوے، د انسان نارینه اولاد، بچے.
**زویرګے** : زبیرګے، زګیروے، زګروے، فریاد، بلاڼه، نالښت.
**زهٔ** : د مفرد متکلم ضمیر، خپل طرف ته اشاره.
**زهد** : تقوي، پرهیز.
**زهر** : زار، ګنډیر، انډیر، جړ. تریخ.
**زهرموره** : زارموره، جړمری، جړی، یو قسم مری چې د زهرو د علاج دپاره پکارولے شي.
**زهرمهره** : وګورئ زهر موره.
**زهرناک** : زهرژن،

زهرناک، زهر لرونکے.
**زهره** : د ماښام ستر ګه، ماښامے ستورے،
**زهره** : زاره، تریخے، بورے، د بنیادم د بدن دننه یو عضو.
**زهریله** : زهر لرونکے، زهرناک، زهرژن.
**زهوب** : زوه، د زخم اوبۀ.
**زهوزاد** : زوزاد، اولاد، بال بچ.
**زهیر** : کمزورے، ناتوان، ضعیف. زارشوے، په تکلیف شوے، غمژن، خفه، خوابدے.
**زهیرول** : خوارول، ناتوانه کول، کمزورے کول، غمژنول، خفه کول، خوابدے کول، خړول، سپکول، خجلول، تکلیف ور کول.
**زهیریدل** : کمزورے کیدل، ضعیفیدل، خفه کیدل، خوابدے کیدل، عذابیدل، ازاریدل، خړیدل، شرمیدل، خجلیدل.

**زي** : دا لفظ د بعضې قبیلو د نومونو سره وروستو راځي لکه بارکزي، یوسفزي، اورکزي وغیره.
**زیات** : زیاد، ډیر، سیوا، زښت، باندې، تیرے.
**زیاتره** : اکثر، ډیر زیات، زښت ډیر.
**زیاتول** : ډیرول، ټولول، جمع کول، جګول، لوړول، دو وهل.
**زیاتي** : اضافي، له حده وتلے یا وتلي.
**زیاتیدل** : ډیریدل، پریمانه کیدل، اضافه کیدل.
**زیاتے** : زور، ظلم، تیرے، تجاوز. زیاتوالے، ډیر والے.
**زیار** : زحمت، ربړ، کوشش، جدوجهد، افسوس، ارمان.
**زیارت** : قبر، مزار، ملاقات، لیدنه.
**زیار کښ** : زحمت کښ، خواري کښ، زیار ایستونکے، کوشش کونکے.

**زيان** : تاوان، نقصان، ضرر، خساره، د اولاد بې وخته غورځيدنه، مړ بچي پيدا كيدنه.

**زيانكار** : مضر، زيان رسونكى، نقصان رسونكى

**زيانمن** : تاواني شوى، نقصاني شوى.

**زيانول** : نقصانول، نقصان كول، تاوان كول، اولاد ضائع كول، اولاد بې وخته غورځول.

**زياني** : تاواني، نقصاني، د ضرر، د زيان.

**زيانيدل** : تاوانيدل، نقصاني كيدل، تاواني كيدل، ضرر رسيدل، اولاد ضائع كيدل، بچي نقصانيدل.

**زيروبم** : لوړ ژور، ټيټ وهسك، سر او سرور، په سندرو وئيلو كښې په ډير خوږ اواز سره د اواز ټيټول او هسكول او په اواز كښې خوږوالى پيدا كول.

**زيرك** : هوښيار، عقلمند، دانا، پوه، ځير.

**زيړ** : ژيړ، ژړ، يو قسم رنگ.

**زيړبخن** : ژيړبخن، زيړغلن، ژړوزمه، زيړ رنگ ته مائل.

**زيړ پيړ** : زيړ بوړق، زيړ كدو، زيړا، زيړ مخى. خوار او مانده، په رنگ تك زيړ.

**زيړ زبيښلى** : زيړ ځبيښلى. د بيمارۍ له كبله ئې چې رنگ زيړ تبنتيدلى وي.

**زيړك** : چې رنگ ئې زيړ وي. د زيړي بيمار.

**زيړكه** : د زيړ رنگ لرونكې يوه مرغۍ.

**زيړ لړگى** : يوه زيړ رنگې ونه او د هغې ميوه چې توري توري داني نيسي او حكيمان ئې په دارو كښې پكاروي.

**زيړول** : زيړ رنگ ور كول، ژيړول، خړول، شرمول، شرمنده كول.

**زيړه** : كنځل، زيړې،

ښکنځا، زیاړه،

**زیړیدل** : ژیړیدل، زیړ رنګ جوړیدل، خړیدل، شرمیدل، شرمنده کیدل، وارخطا کیدل.

**زیړے** : د زیړي بیمارۍ، یرقان، هغه بیماري چې رنګ پکښې زیړ شي.

**زیړګے** : ششګے، شزګے، جزګے، جیشګے، سیزګے،

**زیست** : ژوند، روزګار،

**زیست روزګار** : ورکړه راکړه، لین دین، تعلق، رشته، تلۀ راتلۀ، مړے ژوندے، غم ښادي، کار روزګار، کار کسب.

**زیم** : نم، نو، سیب، نمژنوالے، لندبل، رطوبت.

**زیمژن** : زیم لرونکے، زیم ناک، مرطوب، سیب ژن، سیب کونکے.

**زین** : پالنګ، چپرکټ، تخت، د اس د شا هغه د څرمنې او لرګي نه جوړه آله چې سور پرې کښیني.

**زینت** : ښائست، ښکلا، ډول.

**زینه** : پوړی، پاوړی، اندرپایه، پارچنګ، پارڅنګ،

**زې** : د پښتو د حروف تهجي د اتلسم حرف "ز" تلفظ.

**زیب** : زینت، ښۀ ښکاره کیدنه، ښائیدنه.

**زیبا** : ښائسته، ښکلے، ډولي،

**زیتون** : ښون، ښوون، ښونه، خانلے.

**زیر** : کسره، لاندینے حرکت.

**زیر** : ښکته، کښته، کوز، لاندې، د پورته متضاد.

**زیرمه** : ځیرمه، توښه، سپما، پاسره.

**زیرے** : ښۀ خبر، نیک خبر، خوشخبري.

**زیړ** : د صفرا تکلیف، خوا ګرځیدنه، خوا بدیدنه، د بدهضمی له وجې له خلې نه

ترخې زيړې او بهٔ وتنه.

**زيړو** : د زيړ اسم تصغير، زيړ.

**زيړمه** : زيزمه، خيزمه، برزاله.

**زيږول** : زوول، راوړل، اولاد پيدا کول، بچي پيدا کول.

**زيږيدل** : زوکيدل، پيدا کيدل.

**زيمنه** : ښورروا، شورروا، شوربا.

**زيور** : کالي، پسول، ګاڼه.

**زی** : ژی، غاړه، کناره، پيڅه، څنډه.

**زے** : ژے، ګوډے، خيګ، شناز، غرکه.

**ژ :** (ژې) د پښتو حروف تهجي نولسم حرف چې د ابجدو په حساب یې شمیر د "ز" برابر یعني اووهٔ (۷) دے.
**ژارندوک :** ژړندوک، ژړاند، ژړندوکے، ژړان، ژړیدونکے.
**ژاله :** ږلی، انتهائي منجمد شوې واوره.
**ژالی :** ژلی، ږلی.
**ژامنه :** ژامه، جامه،
**ژامور :** د لویو ژامنو څښتن، ګیډه غاړے، ډیر خوراکه. بدرنګ، داړور.
**ژانر :** ادبي صنف.
**ژاولن :** ژاوله لرونکے، د ژاولې ماده لرونکے. کم جرأته، بې زړهٔ.
**ژاوله :** سیته، د ګبین موم، چیونګم.
**ژباړه :** ترجمه، ژبه اړونه.
**ژبان :** ژبه، وعده، لوظ، زبان.
**ژبپوه :** د ژبې عالم، د ژبې پوه، د لسانیاتو ماهر.
**ژبغړاند :** ژبور، په خبرو نوے نوے راغلے ماشوم، ژبغړاندے.
**ژبن :** وعده کونکے، لوظ کونکے، ژبه کونکے.
**ژبون :** ژبه. زبون، وارخطا، بې واره.
**ژبونکے :** ژبینکے، ژبونے. د قمیص کالر. د ښځو د ټټر په زرتار ګنډلې شوې غاړه. د پرتوګ خښتګ.
**ژبونګه :** د ټوکي هغه ټوټه چې د ګریوانه نه د لاندې ګنډلې شوې وي.
**ژبونے :** ژبونکے، ژبینکے، د پرتوګ خښتګ.
**ژبه :** ژبان، زبان، د غوښې هغه ټوټه چې خلهٔ کښې وي.
**ژبه :** لسان، نطق، تکلم، د خبرو اترو دپاره استعمال کیدونکې د وینا ذریعه.
**ژبه کی :** وړه ژبه، کمکی ژبه، ژبی. د کپړو ترخځ. د

وږو يو قسم بيماري. د قلم په خلهٔ کښې د نوک سره نښتې آلـه چې نوک تـه رنګ رسوي.
**ژبه ور** : تيز ژبی، ژبغړاند، په ژبه چالاک. د اوږدې ژبې خاوند، بې لحاظه.
**ژبی** : وګورئ ژبه کی.
**ژر** : زر، چابک، چټک، په بيړه، په جلتی، سمدستي، په شتاب، فوراً.
**ژر تر ژره** : سمدستي، زر تر زره، چټ پټ، سمدست، فوراً، په هغه درنګ.
**ژرل** : اوړهٔ کول، وړهٔ کول، دلول، پـه ژرنـده يا ميچن يا مشين اوړهٔ کول.
**ژرنده** : سانچـه، جنتري، جنـدري، د نـاليو او تشو کارتوسو د درستولو او ډکولو قالب. قفل، کولپ، تالـه، قلف.
**ژرنده** : د اوړهٔ کولو يو قسم مشين چې په اوبو ګرځي.
**ژرنده ګړی** : ژرنده چلونکی، ژرندې چلولو واله.
**ژرنګ** : ژرنګا، شرنګ، شرنګا.
**ژروالی** : تلوار، بيړه، تادي، جلتي، جلدي.
**ژری** : د اوبش تتی ته نزدې څکه توتکی. ژرګه.
**ژړ** : زير، يو قسم زيړ رنګ لرونکی لوښی.
**ژړا** : ژړيدنه، اوښکې تويونه.
**ژړا انګولا** : وير، هائ کوکار، ژړا فرياد.
**ژړان** : ژړاند، ژړونکی، ژړيدونکی.
**ژړدکه** : ګاځره، زردکه.
**ژړغونی** : ژړغونی، ژړا ته مائل، ژړغونکی، وارخطا، زيړرنګی.
**ژړل** : لـه سترګو اوښکې تويول.
**ژړند** : ژړا تـه نـزدې، ژړندويه، چې اوښکې ئ لا د سترګو نهٔ وي بهيدلی.

**ژړندوک** : ژړان، ژړاند، ژړیدونکے، ژړند.

**ژړنده** : ژړانده، د عاشورې میاشت.

**ژړول** : په ژړا راوستل، په ژړا کول.

**ژړه غوښے** : ژړا ته مائل، ژړا ته تیار.

**ژړیدل** : ژړل، په ژړا کیدل، په ژړا راتلل، زیړ رنګ اخستل، شرمیدل، مړاوے کیدل، جینګړیدل.

**ژړی** : جړی. وګورئ پیریان اوبۀ.

**ژړی تبه** : سره لړې تبه، د ملیریا تبه.

**ژړے** : زیړے، د زیړي مرض، یرقان.

**ژږګے** : شیژګے، شیزګے، ششګے، جیزګے، ځیږګے، جیشګے.

**ژغ** : زغ، یغ، جغ هغه آله چې د یوې کولو په وخت د غوایانو څټ ته اچولے شي او یوې ورپورې تړلے شي. د ختمو د یوم یوه پره.

**ژغ** : اواز، شور، چغه، ږغ، غږ.

**ژغال** : ژژ، کانې، کت کانې، قوت کانې، نرې کانې، باجرې.

**ژغځی** : د نښتر د ونې پاڼې چې د ستنې غوندې تیرې وي.

**ژغ ژغوی** : نری او لږه ږلی.

**ژغری** : فکر، عمل، وتنه، پروا، فرق، بیلتون.

**ژغړ** : جوغړ، درز، وړه کنده، ژوغړ.

**ژغژغے** : ګونګرو، جرس، یو قسم وابنۀ. د غز بور.

**ژغل** : له لړګو نه جوړه شوې جاله. بجرې، باجرې. شګه،

**ژغنډ** : ژوغنډ، په ونه او لړګي کښې د تبر په واسطه شوے ژغړ. په بدن کښې ژور

زخم.

**ژغنلوه** : ژور لښتے، ژوره وله.

**ژغنلوے** : ژغ موږے، ژوغنلوے، هغه لرګے چې په جغ کښې د غوایانو د سر د وتلو مخه نیسي.

**ژغورل** : خلاصول، ساتل، بچ کول.

**ژغونلوے** : جغونلوے، جغنلوے، ژغنلوے.

**ژغے** : د جنګي زخمیانو د وړلو دپاره پکاریدونکے زامبیل، سټریچر،

**ژګه** : نکاح شوې ښځه.

**ژلګرے** : ږلګرکے، ږلغرے، ږریږے، ږلکرے، نرۍ نرۍ ږلۍ.

**ژلیاغره** : نرۍ ږلۍ.

**ژلۍ** : ږلۍ، ږړۍ.

**ژمنځ** : ږومنځ، ګومنز، منږز، ږمنځه.

**ژمنه** : زمنه، نیته، وخت، قول، ژبه، لوظ، وعده.

**ژمے** : د یخنۍ موسم، د شمسي کال څلورم فصل. زمستان.

**ژندره** : سانچه. تاله، کولپ، قفل، قلف.

**ژندرۍ** : سیم کش. د زرګرانو د کار یوه آله.

**ژنل** : شاربل، زګول، مښل.

**ژنکے** : ځلموټے، زنکے، نوے نوے بلوغ ته رسیدلے هلک.

**ژنۍ** : ځوان، ځلمے، زنۍ، نوے رسیدلے، ژنکے.

**ژواک** : ژوندون، ژوند.

**ژوبل** : زخمي، ټپي، خټ پټ، وهلے نتلے، مجروح، غوڅ غوڅ.

**ژوبلول** : زخمي کول، خوږول، ژوبل کول، ټپي کول، خټ پټ کول،

**ژوبله** : زخمي کیدنه، زخمي توب، ټپي توب، جګړه، جنګ.

**ژوبلیدل** : زخمي کیدل،

مجروحیدل، خوږیدل، ټپي کیدل.

**ژور** : د رغي متضاد، عمیق، ډونګی.

**ژورلینګی** : د زنګانهٔ د ستر ګې لاندې ژور ځای، د توتکی ژور ځای.

**ژورول** : ډونګی کول، کنده کول،

**ژوره** : د ژور مؤنث، ډوغله، شکته زمکه، لویدلې او کنده زمکه.

**ژوریدل** : عمیقیدل، کنده کیدل، ډونګی کیدل.

**ژوغنه** : سر کښې لار، ژنده.

**ژول** : ژوندی پاتې کیدل، ژوندی وسیدل،

**ژوند** : د مرګ متضاد، ژوندون، حیات.

**ژوندون** : ژوند، حیات.

**ژوندی** : ساه لرونکی، د مړي ضد، حیات. ثابت.

**ژوول** : ژویل، ژیل، زوول، په غاښونو پستول او رس ترې ایستل، چوپل، ژول.

**ژوی** : ژوندی، د ساه خاوند، ژوندي سر، د سیلوې ښتن، حیوان.

**ژیره** : ږیره،

**ژې** : د پښتو حروف تهجي د نولسم حرف "ژ" تلفظ.

**ژی** : څنډه، غاړه، کناره، پیڅه.

**ژے** : د اوبو مشک.

**ږ** : (ږې) د پښتو حروف تهجي شلم حرف چې د ابجدو په حساب د "ژ" برابر يعني اووه (۷) دے.

**ږدل** : کيښول، کيښودل.

**ږږی** : ږلی، ژاله.

**ږغ** : د غږ يو بل قرأت.

**ږغانځه** : ورګه، ورږه، کيله،

**ږغږغه** : ږغږغے، زنګوله، ګونګرے، ګينګرے،

**ږغږغی** : د غنمو د دانې پوښ. د غوز پاڼه.

**ږغل** : د شکو او کاڼو جغله، د کنګل جغله يا ټوټه، د کاڼو او تيږو ژغل.

**ږغن** : په بلا اخته. ږغ لرونکے.

**ږغول** : غږول، وهل لکه رباب او نور د موسيقی آلات. په خبرو راوستل، له خلې خبرې ايستل، ګوډول.

**ږغولے** : غږولے، په خبرو راوستلے،

**ږغونکے** : غږونکے، هغه څوک چې غږول کوي، خبرې ايستونکے،

**ږغيدل** : غږيدل، په خبرو راتلل، وهلے کيدل، غږول کيدل،

**ږغيدونکے** : غږيدونکے، په خبرو راتلونکے.

**ږلی** : د واورې ورې ټکرې چې د باران سره وريږي، ژلی، ږږی، ژاله.

**ږمنځ** : ګومنز، منګځ، يو قسم غاښ لرونکې آله چې ويښته پرې سمولے شي.

**ږمنځول** : ويښتهٔ سمول، غمنځ کول، ګومنزول، په ويښتو کښې ږومنځ وهل.

**ږمنځونکے** : ګومنز کونکے، منګز کونکے، غمنځ کونکے، په ويښتو کښې ږمنځ وهونکے.

**ږمنځونه** : غمنځونه، ګومنزونه، منګزونه،

**ږمنځيدل** : ويښتهٔ سميدل،

غمنځیدل، ګومنزیدل، ویښتو کښې ګومنز وهلې کیدل.

**ږمنځیدهٔ** : ویښتهٔ سمیدهٔ، منګز کیدهٔ، ګومنزیدهٔ، غمنځیدهٔ.

**ږمنځی** : د جولا ږمنځ. د اوبدلو ږمنځ.

**ږمنځې** : یو قسم ږمنځ چې یو خوا غاښونه لري او بل پله نهٔ لري.

**ږمونځ** : وړکورۍ ږمنځ.

**ږوږ** : زوږ، شور، غوغا، اوازونه.

**ږیرور** : د ږیرې خاوند.

**ږیره** : د مخ هغه ویښتهٔ چې لوے پریښوے شي.

**ږیری** : د جوارو د توکې نازکه پرده چې د دانې مخ ئې پوښلے وي. پرده، پخه.

**ږیړے** : د ځنګلي سر، د ځنګلي بند.

**س** : (سین) د پښتو د حروف تهجي یوویشتم حرف چې د ابجدو په حساب ئ شمیر شپیتهٔ (۶۰) دے.
**سابق** : وړاندینے، اولنے، مخکښې، وړومبے، لرغون، سابقه.
**سابقه** : معامله، تعلق، رابطه، واسطه. د سابق مؤنث.
**سابودانه** : د یوې ونې تخم چې بیمارانو ته په پیو کښې اچوي او دغسې یو نرم خوراک ترې تیار کړے شي.
**ساتل** : بچ کول، په ځاے کول، حفاظت کول.
**ساتنه** : حفاظت، ژغورنه، په امن کونه، بچ کونه، پالنه.
**ساتول** : هغه آله چې غوښه پرې قیمه کولے شي، تړوقیه، تړوکا، هډکپ، ساطور، د هډو کو ماتولو آله.
**ساټین** : ساټن، اطلس، یو قسم کپړه.
**ساجد** : سجده کونکے. خداے ته سر ښکته کونکے.
**ساحر** : جادوګر، کوډګر، سحرګر، پاړوګر.
**ساحري** : جادو، جادوګري، کوډګري.
**ساحل** : د سین غاړه، هغه وچه غاړه چې په بحر پورې نښتې وي.
**ساحلي** : په ساحل مربوط، د بحر د وچې غاړې.
**ساخت** : جوړ شوے، روغ شوے. جوړونه، رغونه. پخه او رنګ شوې څرمن.
**ساختګي** : جوړه شوې، جوړ شوے، جعلي، غیر اصلي، غیر طبعي، بناوټ.
**ساد** : پاک، سوتره، روغ، ایماندراه، د ښو اخلاقو خاوند، د غل متضاد، سادکه.
**سادګي** : ساده والے. بې تکلفي، سهولت، اساني، خاکساري. شوده، توب، پاڼي توب،
**ساده** : معمولي، اسان. هغه

کپړه یا بل کوم څیز چې نقش و نګـار پرې نهٔ وي شوے، بیوره. سپین زړے، اخلاص منـد. کم عقل، پاډې، شوده، نګه، خالص.
**ساده باده** : کم عقل، احمق، ساده بوده، ساده سوده.
**سادین** : هغه زمکه چې د کروندې نه مخکښې واړولے شي.
**ساربان** : ساروان، اوښبه، اوښوان، هغـه څوک چې اوښان ساتي.
**سارق** : بخي، خبخي، بوخخي.
**سارق** : غـل، شوکمار، ډاکو، داړه مار.
**سارنده** : سرنده، سرینده، د موسیقۍ یوه آله.
**سارنګي** : د موسیقۍ یوه غټه آله.
**ساروان** : ساربـان، اوښبه، اوښان ساتونکے.
**سارواني** : د اوښـه یا ساروان کار او کسب.
**سارے** : سیال، مخے. برابر، مساوي، انډول.
**سارهٔ** : د یخنـۍ موسم، د ګرمۍ متضاد، یخني.
**ساز** : د موسیقـۍ د یوې یا ګـنو آلو اواز. روغ، جوړ، سم.
**سـازباز** : چـل ول، سازش، چل وټه، جوړ توړ، اټ سټ، چـلو کښې سره څهٔ خبره جوړونه.
**سازش** : منصوبه، صلاح. د څهٔ کار د کولو نه وړاندې د هغې د کولو طریقه خوښونه.
**سازنده** : ساز غږونکے، د موسیقـۍ د یوې آلې نـه اواز ایستونکے. سازي.
**سازول** : سمول، جوړول. د دوؤ کسانو یا ډلو منځ کښې صلح راوستل. پخلا کول
**سازي** : د موسیقۍ هنرمند، ساز غږونکے. سازنده

**سازیدل** : جوړیدل، سمیدل. روغیدل، د دوؤ کسانو یا ډلو تر منځه صلح راتلل، سره پخلا کیدل.
**ساعت** : لمحه، لحظه، وخت، ګړی.
**ساغر** : جام، پیاله، د شرابو څښلو جام یا پیاله.
**ساق** : د ګیتهی او کونډی تر منځ د پښې حصه، لینګی.
**ساقط** : ضائع کیدونکی، پریوتونکی، لوئیدونکی، زیان شوی اولاد، بې موده اولاد.
**ساقي** : اوبهٔ ویشونکی، اوبهٔ ورکونکی، ابی، ابیار. شراب ویشونکی، په بل شراب څښونکی، محبوب.
**ساکت** : خاموش، چپه خلهٔ، پټه خلهٔ، غلی، چپ، په ارام.
**ساکن** : په ځای ولاړ، په ځای پروت، نهٔ خوځیدونکی، د متحرک متضاد.
**ساګ** : سابهٔ، یو قسم شنه سبزي چې پخولی شي او د پخلي نه پس هم شین بخن رنګ لري.
**ساګ سګرک** : د غریبی خوراک.
**ساګودانه** : وګورئ سابودانه.
**سال** : وړ، مناسب، سیال. کال. یوه آله چې ګلکاران پرې د دیوال نیغ والی معلوموي.
**سال** : نرمه شګه، پسته شګه.
**سالار** : مشر، سردار، د لښکر مشر. د ډلې مشر.
**سالانه** : کال په کال، کالیز، کال پس.
**سالک** : لاروی، لاربه. نیک، صالح، پارسا، پرهیز ګار.
**سالګره** : د پیدائش ورځ نمانځنه.
**سالم** : روغ، جوړ، ثابت. بې عیبه، بې نقصه. مکمل، پوره.

**سالو** : پړونی، شال، څادر، ريښمين څادر، د زنانو څادر.
**ساله** : د فصل ساتنې دپاره جوړ پټونی چې سړی پکښې ناست وي او فصل ساتي. منځنی، ميانه.
**سام** : ويره، خوف، هيبت. دروندوالی.
**سامان** : مال اسباب، لوښي لرګي، د کور لوښي کودي.
**سامع** : اوريدونکی،
**سامعه** : د اوريدو قوت، د اوريدو حس.
**سان** : يو قسم سپين رخت چې عام طور سره د کفن دپاره پکارولی شي.
**سانچه** : قالب، جندرى. د واورې د جوړولو قالب، د خښتو د جوړولو قالب.
**سانچه** : نوی، نوې نوزې، جديد.
**سانحه** : حادثه، واقعه، پيښه.
**سانده** : ژړا، فرياد، مړي پسې ژړا.
**سانډه** : هغه څاروی چې د نسل زياتولو دپاره ساتلی شي.
**سانډو** : د ښيني خاوند، د ښځې د خور خاوند، هم زلف.
**ساه** : سا، اروا، روح، ژوند، دم، پوکی، براس.
**ساه لنډی** : سالنډی، ساه بندي، دمه، يو مرض چې ساه پکښې بنده بنده کيږي.
**ساهو** : اصيل، شريف، سوچه، جاندار، ژوی.
**ساهوکار** : لوی مالدار، سيټ.
**سائبان** : سيوری پيدا کونکی څادر، د نمر يا ګرمی نه بچ کونکی څادر، مينا، چتر، سيوان، سايه وان.
**سائل** : سوال کونکی، فقير، ملنګ، خواست کونکی. درخواست کونکی،
**سائنس** : يو تحقيقي علم چې له بر کته ئ نوي نوي خيزونه پيدا کيږي. حکمت، فن، د طبيعياتو علم.

**سايه** : سيورے ، سورے .
**سايه دار** : سيورے لرونکے ، چې سيورے لري.
**سائي** : بيه ، بيعانه ، پيشګي څه پيسې ور کونه.
**سايوان** : سيورے ، شاميانه ، سائيوان ، سائبان ، څپر ، منډو ، چجکے .
**سبا** : راتلونکې ورځ ، د نن او بل سبا منځنی ورځ .
**سباوون** : د سحر وخت ، سباګون .
**سبائي** : د سحر وخت . سحر وختي ، وګوری سبا .
**سبب** : عذر ، وجه ، وسيله ، ذريعه ، بدل ، عوض ، سوب .
**سبحان** : پاک ، د پاکی خښتن ، د الله تعالي يو صفتي نوم .
**سبر** : سرو ، سرزوې ، سروه ، يو مخروطي ونه چې کالو سر سنه وي .
**سبز** : تازه ، تروتازه ، شين .
**سبزه** : شين چمن ، شينکے ، شين کبل ، شنه ګياه .
**سبزي** : هغه مراوې کيدونکې ځيزونه لکه ګوپي ، پياز ، متهر وغيره چې ترکاري ترې پخولے شي .
**سبق** : تعليم ، ليک لوست . تلاوت ، پوهه ، درس . پند ، نصيحت . سزا .
**سبقت** : وړاندې والے ، مخکښې والے ، مخکښې کيدنه .
**سبک** : سپک . نازک . تيز . چست . چالاک .
**سبک** : طرز ، طريقه ، لاره ، د شاعر اديب د حپلو احساساتو بيانولو يوه خاص طريقه يا طرز .
**سبيل** : لاره ، طريقه ، طرز . قرباني ، نذر .
**سپارش** : سفارش ، حواله ، سپارښتنه .
**سپارښت** : سپارل ، سپارښتنه ، چا ته حواله کونه ، د چا په ذمه کونه .
**سپارل** : حواله کول ، په ذمه

کول.

**سپاره** : د یوې پـه کـنـدۀ کښـې د وسپـنـې هغـه تیرۀ مښو که چې زمکه پرې اړولے شي، پاله.

**سپاره** : هغه زخم یا ټنکی چې د خرابیدو نه پس ترې هر وختې نو بهیږي. ناسور.

**سپاس** : د چا احسان منته، د چا پـه احسـان شکریـه ادا کول، شکریه، احسان مندي.

**سپاسنامه** : هغه تحریري شـکـریـه چـې د چا لوئ بنده وزیر یا صدر په خدمت کښې د هغۀ د ښـۀ کـار کردګی په وجه پیش کولے شي.

**سپاهي** : سپـائـي، د فوج یا پولیس زلمے، اسپائي.

**سپر** : ډال، کنګل.

**سپـرخـے** : لـویـه ستن چې کیږدی او کتـې وغیـره پرې ګنډلے شي.

**سپرغی** : د اور بڅري.

**سپـرلـے** : پـــه څـلـورو مـوسـمـونو کښې د یو موسم نوم چې ونې بوټې پکښې شنۀ کیـږي او نۀ پکښې یخني وي او نۀ ګرمي. بهار.

**سپرول** : سوړول.

**سپریدل** : سوړیدل.

**سپړدل** : پرانستل. خلاصول، ازادول.

**سپړدے** : سپړلے، خلاص، سپړے.

**سپړل** : سپـړدل، بیـرتـه کول، ښکاره کول، پرانستل.

**سپږن** : هـغـه څـوک چې سپږې پکښې وي.

**سپږه** : د میږې نـه لږه وړه ویـنـه څښونکې حشره چې د سـر پـه ویښتو کښې پیدا کیږي.

**سپږی** : د غلې دانې سپږه. هغه سپږه چې په غله کښې پیدا کیږي.

**سپغول** : وګوری سپیغول.

**سپک** : پـه وزن سپک. د دروند متضـاد. بې عزتـه.

ذلیل، د کچه خوئ خاوند، حقیر.
**سپکاوے** : چاته بدرد وئینه، چاته سپکې خبرې کونه، بې عزتي، سپکتوب.
**سپکتوب** : سپکتیا، سپکاوے، حقارت، سپکوالے.
**سپکول** : وزن کمول. بدرد وئیل، بې عزته کول،
**سپکه** : د سپک مؤنث.
**سپکیدل** : وزن کمیدل، لړیدل. بې عزته کیدل، ذلیل کیدل.
**سپلمی** : یو قسم صحرائے بوټیے چې پاڼې ئ د زخم یا پرهر دپاره پکارولے شي.
**سپما** : په خیال لګښت کونه، پیسه ډیره په خیال لګونه، کفایت شعاري، پس انداز، ذخیره، زیمه، بچت.
**سپمول** : بچت کول، په اندازه خرچ کول، پیسه په خیال لګول.
**سپمیدل** : بچت کیدل، بچ کیدل، پاتې کیدل، پس انداز کیدل.
**سپنخړے** : وسپنخړے، د وسپنې هغه بیکاره برخې چې په اور کښې د سرې کولو نه پس ترې پاتې کیږي.
**سپنسي** : سوتلی، سنډ، د سوتلی تارونه، مزي.
**سپنسین** : د سوتلی نه جوړ، د سنډو نه جوړ، د پومبې نه جوړ.
**سپنګے** : د اور بخرے، د اور بخرکے.
**سپوتکے** : پړونے، ټیکرے. هغه ټوکر چې د دیګ په سر اچولے شي.
**سپور** : بې غوړو، خشک. د سپکې خلې خاوند. هغه څوک چې په خلهٔ کښې ئ خوږه خبره نهٔ وي. سور،
**سپورول** : خشکول، وچول، بې غوړو کول.
**سپوریدل** : خشکیدل، وچیدل، بې غوړو کیدل.

**سپوږې ستغې** : وګورئ سپوږې.

**سپوږمې** : میاشت، مه، مهتاب، قمر، اوږمکی.

**سپه سالار** : سر لښکر، د لښکر مشر، ټول مشر، جرنیل.

**سپیازه** : هغه ښځه یا ماده ځناور چې بچې ضائع کوي.

**سپیتوب** : د سپي غوندې خوئ کونه، د ستر ګو وړے والے، د اروا خوار والے.

**سپیغول** : اسپغول، سپغول، یو مشهور تخم چې په دارو کښې استعمالیږي.

**سپین** : د تور متضاد، پاک، صفا، صادق.

**سپیناوے** : وضاحت، شک لرې کونه.

**سپین دروبے** : سپین روبے، معزز، عزتمند، مخوریز، مشر.

**سپین زر** : سپین رنګ لرونکے یو قیمتي دهات. چاندي.

**سپین ږیرے** : بوډا، مشر، چې د ږیرې ویښته ئې سپین شوے وي.

**سپین ستر ګے** : بې حیا، بې شرمه، کلک ستر ګے.

**سپین سرے** : بوډا، مشر، زوړ.

**سپینول** : پوست لرې کول، پوستکے لرې کول، مسین لوښے پاکول، سپین رنګ ور کول، قلعي ور کول، خبره صفا کول، معامله پاکول.

**سپینه** : د سپین مؤنث. وازده. روپی، خبره صفا کونه. د پښې د کونډې نه ښکته برخه.

**سپینې** : د پوندې نه لږه بره د پښې پسته برخه. د پوندې د پاسه پلې. وازدې، واز ګې.

**سپینیدل** : پوست لرې کیدل، پوستکے لرې کیدل، مسین لوښے پاکیدل، سپین رنګ ور کولے کیدل، قلعي

کیدل، معامله پاکیدل. خبره صفا کیدل.

**سپیځل** : صفا کول، پاکول، بې وته کول، بې عیبه کول.

**سپیځلتوب** : پاکي، صفائي، پاک توب، پاکوالے، سوچه والے.

**سپیدار** : یو لوړ قدې ونه، چنار، چینار.

**سپیدي** : سباوون، د سحر رڼائي، د سبا علامه.

**سپیرکی** : یو قسم بوټے او د هغې دانې چې د ګیډې د درد دپاره ترې د کورنی دوا کار اخستے شي.

**سپیرۀ** : په خاورو ککړ، خړ، خاکي. تباه، وران، خراب. بدمرغه، بدبخته، بدقسمته.

**سپیرۀ توب** : سپیرۀ والے، بدمرغي، بدنصیبي، خړوالے.

**سپیړمه** : سپړمه، د پوزې سوړے.

**سپینته** : هغه نری پرده چې د زړۀ نه تاؤ وي، شپیته، د نس پرده.

**سپیمه** : هغه سپی چې نر سپے غواړي. بدفعله، او بدکرداره ښځه.

**سپی** : د سپي مونث.

**سپے** : یو قسم غوښه خوړونکے ځناور چې خلق ئې په کورونو کښې د څوکی دپاره هم ساتي.

**ست** : بلنه، دعوت. د سپیغولو نه وتے جوهر چې د ګیډې د نرمولو دوا ګڼلے شي.

**ستا** : د تا، د مخاطب ضمیر.

**سِتار** : سیتار، د موسیقی یوه آله.

**سَتار** : پرده پوښ، پرده پوش، پوښونکے، د الله تعالیٰ یو صفتي نوم.

**ستاره** : هیبت، ویره، سام، درونـدوالے، دبدبه، رعب، سهم. قسمت، تقدیر، بخت، طالع، تندے. ستورے.

**ستاسو** : د مخاطب ضمير د تاسو، د تاسي.

**ستاسې** : وګورئ ستاسو.

**ستانه** : آستانه، کور، د چا پير بزرګ ډيره.

**ستانۀ** : ستون شوي، پاتې شوي، ځنډيدلي، معطل شوي.

**ستايل** : تعريف کول، مدح وئيل، صفت کول، په ښه سترګه کتل.

**ستاينه** : ستايل، صفت کونه، مدح کونه، تعريف کونه.

**ستر** : غټ، لوی، مشر، فراخ، پلن، ويړ. تنکي، کولک، ټيک، ځنې.

**سَتر** : حجاب، پرده، پرده.

**سترغلي** : د سترګو ګاټې، د سترګو حلقې، د سترګو چاپيرچل ځاے.

**سترګک** : د سترګو اشاره، د سترګو خبره، سترګه وهنه.

**سترګه** : چشم، هغه اندام چې د کتلو قوت لري. د بوټې سترګه، تيغه، د سبا سترګه، د نمر سترګه.

**سترول** : لويول، غټول، کامیابول، وده ور کول.

**سُتره** : سوتره، پاک، صفا، بې عيبه، سپيځلے.

**ستريدل** : لويدل، غټيدل، وده کول، ترقي کول،

**سترے** : ګيډی، دلی، انبار، د فصل پريکړے شوے ټوپ.

**سترې مشې** : هر کلے، په خير راغلے،

**ستړے** : ستومانه، پريشانه، ذرې ذرې.

**ستغ** : زيږ، تريخ، ناهموار، سخت، کلک. يو قسم غوټه چې په بدن کښې لکه د نکی په شکل پيدا کيږي. د غرۀ سر ته ختلې نيغه لار.

**ستغه** : بده وينا، سپوره وينا، سخته خبره.

**ستمګر** : ظلم کونکے، ظالم، زياتے کونکے.

**ستن :** يو نرے سلائي چې يو سر ئ تيرهٔ وي او بل کښې ئ نرے سورے وي او د ګنډلو دپاره پکارولے شي.
**ستنول :** ګرځول، تمبول، اتـالـول، بـندول، ايسـارول، معطلول، منع کول، ستونول.
**ستنيدل :** په شا تلل، واپس تلل، بيرته تلل، واپس کيدل.
**ستوان :** وچ تـوتـان يا نيني چې ميـده کـړے شـي ځواږهٔ پـکـښــې ولـړلے شـي او بيـا خوړے شي.
**ستوري :** هغه اجرام يا کرې چې په اسمان کښې د شپې په وخت پرِقيدونکې ښکاري.
**ستورے :** وګورئ ستوري. بخت، طالع.
**ستومان :** سترے، خسته، زېلے، پريشانه.
**ستومانول :** سترے کول، زېـل، پـريشـانول، پريشـانـه کول.
**ستومانه :** سترے، پريشانه، زېلے. پښيمانه
**ستوماني :** د سترې والي حالت. سترے والے، د پريشانی حالت.
**ستومانيدل :** سترے کيدل، پريشانه کيدل، پښيمانيدل.
**ستون :** بيـرتـه ګـرځيدلے، واپـس شـوے، معطل، پستنه، واپس.
**ستوني ستغ :** شا په زمکه، د پړمخ متضاد.
**ستونيدل :** ستنيدل، واپس کيدل.
**ستونے :** حلق، مرى، غړى.
**ستوه :** هـغه چاړهٔ چې دواړه مـخـه ئ تيـرهٔ وي، پيشقوزه، پيش کوزه،
**ستوے :** د يـو سره استعمال کيدونکې لاحقه چې د يواځې والـي مـعـنــې ورکوي لکه يوه ستوے.
**ستي :** پـه اور سوے، په اور سوځيدلے، کباب شوے، لمبه شـوے. د هـنـدوانو هغـه رسم

چې ښځه پکښې د مړ خاوند سره اور کښې سیځلې شي.
**ستړ** : تباه، برباد، هلاک.
**سټک** : د لرګي او وسپنې هغه مشتر که اوزار چې میخ وغیره پرې ټک وهلے شي.
**سټکوړے** : نیم سوے لرګے یا روټی. بیخ، ویخ، بنیاد.
**سټل** : مجموعي طور، یک مشت، بیخي، ګرد، په یوه مخه، سټاله، سټله، چټل.
**سټوپ** : د خاورو د تیلو نغرے.
**سټ وټ** : تباه برباد، خوار وزار، هلاک.
**سټوکے** : د سر د ویښتو هغه برخه چې پاس په تندي پرته وي.
**سټول** : تباه کول، بربادول، ورانول، ګډوډول،
**سجاد** : سجده کونکے، خدائے ته سر ښکته کونکے، ډیرې سجدې کونکے.

**سجاده** : د مونځ کولو ځائے، جائ نماز، جانماز، مسله.
**سجاده نشین** : د چا پیر خلیفه یا نائب. هغه سړے چې د پیر په ګدی ناست وي.
**سجده** : په زمکه تندے لګونه، خدائے ته سر ټیټونه. د مانځهٔ یو رکن.
**سجع** : قافیه بند شعر. مقفيٰ کلام، قافیه لرونکې خبرې. بلغاک، چغاړے.
**سجود** : سجده کونه، خدائے ته سر ټیټونه، د سجده جمع.
**سچ** : خالص، اصل، سوچه. بیخي، ټول، ګرد.
**سحاب** : وریځ، اوریځ، لړه،
**سحار** : وګورئ سحر.
**سحر** : سبا، سحار، د ورځې اولنی حصه، د ورځې ابتدا، رڼا.
**سحر** : جادو، کوډې، منتر،

افسون.

**سحربيان** : هغه مقرر يا شاعر چې وينا ئې ډير تاثير لري.

**سخ** : بخت، نصيب، طالع. خوشحالي، خوش نصيبي.

**سخا** : فياضي، بخښنه، د خدای په نوم بې کچه خير خيرات ورکونه.

**سخا** : خسا، ګنده، بدبويه، چټل.

**سخات** : اسقاط، د مړي د جنازې نه پس د هغهٔ نه د پاتې شوو مونځونو او روژو د کفارې ادا کولو په غرض په حاجت مندو نغدې پيسې يا نور څهٔ ځيزونه ويشل.

**سخاتوب** : ګنده والی، چټلتيا، خيرن توب. سخاوالی.

**سخاوت** : وګورئ سخا.

**سخت** : کلک، مضبوط، ټينګ، محکم. ګران، مشکل،

**سختول** : کلکول، ټينګول، محکمول، مشکلول، تيزول.

**سخته** : تکليف، مشکل، بده ورځ، کړاؤ، کړاک،

**سختي** : تکليف، بده ورځ، مشکلات، تنګسه، خواري، کلکوالی، ټينګوالی.

**سختيدل** : کلکيدل، ټينګيدل، محکميدل، مشکليدل، تيزيدل.

**سخر** : خسر، د ښځې پلار، د خاوند پلار.

**سخرګنی** : د سخر کور، د سخر خپل، سخرانه، د سخر خپلوان، خسر ګنی.

**سخکال** : سږکال، روان کال، موجوده کال.

**سخن** : خبرې اترې، خبره. قول، شعر، نظم، غزل.

**سخوندر** : ځوان غوايهٔ، هغه ځوان سخی چې په غاښ دوه يا څلور وي.

**سخوندرکی** : د سخوندر اسم تصغير.

**سخه** : کينه، حسد، رخه.

**سخي** : د خدای په نوم بې

دریغه خیر زکات ور کونکے، سخاوت کونکے، فیاض.
**سخے** : د غوا بچے، خوسے.
**سد** : عقل، هوش، خود.
**سد** : دیوال. د توپک د شپیلی رخی. خنډ.
**سد بد** : عقل فکر، هوش وحواس.
**سَر** : کپری، ککری، کوپړی، د سر کاسه. څوکه، د څهٔ څیز پورتنی حصه. خوا، اړخ، طرف، پلو، د تلې یو طرف. مخکښې، مخه، شروع، اول.
**سِر** : راز، پټ، پناه، د علانیت متضاد.
**سُر** : چرت، طبیعت، د سندرو د علم موضوع، راګ، اواز.
**سراب** : دوکه، دهوکه، د سختی ګرمی له کبله د شګې هغه خلق چې د اوبو ګومان پرې کیږي.
**سراپا** : سر نه تر پښو پورې، بیخي، بالکل، سراسر.
**سراج** : چراغ، ډیوه، څراغ.
**سراسر** : ټول، په جمع، سر ترپایه، د اول نه تر آخره، سراپا.
**سراسري** : وګورئ سراسر.
**سراغ** : نښه، پته، درک، نښه پته.
**سراغ رسان** : پته لګونکے، معلومات کونکے.
**سرانجام** : کونه، پوره کونه، انجامونه، پائ ته رسونه، ختمونه.
**سرایت** : اثر، تاثیر. د یو څیز په بل څیز کښې دننه تلنه.
**سرایه** : سرائ، دنیا.
**سرائ** : کور، ډیره، دیره، د مسافرو د شپې تیرولو ځاے.
**سرباز** : فوځي، سپاهي، عسکر، سر ښندونکے، د ملک او قوم دپاره دشمن

سره جنګ کونکے،

**سربازي :** د سر قرباني ورکول، سربښندنه، له سره تيريدنه.

**سربالا :** د سر دپاسه، کامياب، کامران.

**سربالړه :** سربانړے، سربانړه، هغه پړے چې د کچه ځرمنې يا ميزري نه جوړيږي، هغه رسی چې د يوې ترړلو دپاره پکارولے شي.

**سربراه :** مشر، د تنظيم مشر، منتظم، ناظم، د سر سړے، نامي.

**سربسته :** پټ شوے، تاله شوے، بند شوے، قفل شوے.

**سربلند :** سرفراز، سرلوړے، شمله جګے، د عزت او آفرين خاوند.

**سربلندي :** سرلوړي، سرفرازي، عزتمندي.

**سربند :** هغه بند چې سيند يا خوړ ته اچولے کيږي، سرورخ، وتے. هغه رومال چې سر پرې ترلے شي.

**سربيره :** زياتي، علاوه، دپاسه، پورته، باندي.

**سرپرست :** ساتندويه، څارونکے، ساتونکے، نګهبان، محافظ، د يوې ادارې يا تنظيم مشر.

**سرپرستي :** نګهباني، حفاظت، ساتنه، مشري.

**سر پريکړے :** چې سر ترې پريکړے شوے وي. چې سر ترې قلم کړے شوے وي.

**سرپناه :** د سر پټولو ځاے، کور، ديره.

**سرپوښ :** سرپوش، برغولے، سربند، يو قسم ټوپک چې يوولس کارتوس خوري. رائفل، ترې ناټ ترې ټوپک، ترې ناترې.

**سرپه :** صرفه، دريغ، مخ اړول، اشتها.

**سر په سر :** يو شان، يو برابر، مساوي.

**سرتاج :** خاوند، ميړهٔ. د

مینې تورے.
**سر تر پایه** : سر نه تر پښو پورې، ټول، سراسري،
**سرټمبه** : سرکش، ضدي، ځیل ناک.
**سرتور** : چې سر ئ ځرګند وي. سرلوڅ، سربربنډے. بې عزته، ذلیل، شرمنده.
**سرتوروول** : سر ښکاره کول، سر لوڅول، سر بربنډول، بې عزته کول، شرمول، خوارول، ذلیله کول.
**سرتوره** : د سرتور مؤنث.
**سرتوریدل** : بې عـزتـه کیدل، سپکیدل، شرمیدل، خواریدل، میـړهٔ مـړ کیدل، کنډیدل.
**سرټور** : سر لوڅے، بې عزته.
**سرتیر** : لـه سـره تیر، د سر پروا نهٔ کونکے،
**سرتیزه** : تـنـدخویـه، هغـه څوک چې سر تیزي کوي.
**سرټیټي** : اطاعت، عجز، انکساري، بدنامي بې عزتي.

**سرچینه** : وګورئ سرچشمه.
**سرحد** : بـریـد، پوله، حد، ویش، د دوؤ ملکونو د علاقې مشترکه حد.
**سرحدي** : د سـرحـد سره متعلق.
**سرخاب** : یـو قسم د اوبو مـرغـی چـې ټـوله شپه خپلې مـادې نـه جـدا وي، سـریغ، سرخاوي.
**سرخ باد** : د یـو مرض نوم چې په وجود سره لمبه راشي.
**سرخرو** : کـامیـاب، کامران، فاتح، ګټونکے.
**سرخروئي** : کـامیابي، کامراني، فتح، ګټه.
**سرخط** : د یـو مـضمون یا کتاب نوم، سرخي. غټ خبر، خاص خبر، سرنامه، سرلیک.
**سرخي** : د زنـانؤ د سینګار یـو سـور رنګ چې په شونډو او رخسارونو ئ لګوي.
**سرخیل** : د خاندان یا قبیلې سربراه، مشر، سرلښکر.

**سردار** : مشر، رئیس، اختیارمند. سپه سالار، لښکر مشر.
**سرداري** : مشري، د لښکر مشري، سپه سالاري.
**سرداری** : یو قسم تماچه، ۳۸ بور تماچه، سرداری تماچه.
**سردره** : د درې سر، د درې لوړه برخه.
**سردوباره** : دوباره د سره شروع کونه، په دویم ځل شروع کونه.
**سرده** : د خربوزې د خاندان یوه میوه چې د یخنی په موسم کښې راځي.
**سردي** : یخني، د یخنی موسم، سړزي، ژمے، د ګرمی متضاد.
**سرزد** : ظاهریدنه، ښکاره کیدنه، په ډاګه کیدنه.
**سرزمین** : ولایت، زمکه، وطن، ملک،
**سرزنش** : ملامتیا، ملامت والے، ترټنه، جزا ورکونه.
**سرزوري** : هوډه، سرکش، سرتمبګي. نافرماني.
**سرسام** : یو مرض دے چې د تیزې تبې له کبله پکښې د سړي مازغهٔ کار پرېږدي. ګنګس، بې سده، نیم پاګل، بادساره.
**سرسایه** : د سر صدقه چې د وړوکي اختر په موقع حاجت مندو له ورکولے شي، فطرانه.
**سرسبز** : شین ګوشین، ښیرازه. اباد او خوشحال.
**سرسري** : د سر دپاسه، سطحي، د ابو د سر د پاسه، هغه ځیز چې زمکه کښې ډیر ښخ نهٔ وي. معمولي، لږ.
**سرشار** : ترخلې خلې ډک، ژی په ژی، موړ، مست، خوشحال.
**سرشت** : پیدائشي خوئ خصلت، عادت، فطرت، مزاج.

**سرطان :** کوني کبر، پنجه پاؤ، کونیکړپ، چنګابښ، یو آبي ځناور چې د چیندخې نه وړو کے او د جولاګي په نمونه وي. د اسمان څلورم برج، یو موذي مرض چې د کینسر په نامه مشهور دے.

**سرعت :** تندي، تیزي، تلوار، بیړه، چټکتیا، تادي، جلتي.

**سرفراز :** کامیاب، کامران، سرلوړے، عزت ګټونکے، فتح کونکے.

**سرفرازي :** سرلوړي، فخر، عزت.

**سرقه :** وګورئ سرقت، غلا،

**سرکار :** حکومت، د ملک واک او اختیار. اختیار دار، کارفرما.

**سرکردګي :** مشري، مشرتوب.

**سرکرده :** مشر، سرغنه، سرغندوئ، د سر سړے.

حاکم، آمر.

**سرکس :** په ویړ میدان هغه احاطه شوے ځاے چې تماشې ننداري پکښې معاوضتا ښودلے شي.

**سرکش :** سرکښ، باغي، نهٔ منونکے، نامنونکے، نافرمان.

**سرکشي :** باغي توب، بغاوت.

**سرکلے :** د نوي پیدا شوي ماشوم نه په وړومبي ځل د سر کلولو رسم.

**سرکوزي :** شرمندګي، بې شرمي، بې عزتي، بې غیرتي، دووسي.

**سرکوزے :** شرمنده، بې شرمه، بې عزته، بې غیرته، دووس. خنزیر، بد لیوۀ، بد ځناور.

**سرکوڼډئ :** کانټې، بازیګره، سر ښکته پورته کونه،

**سرکه :** یوه تروه مائع چې د

انګورو یا ګني وغیره د اوبو نه جوړیږي او د اچار په اچولو کښې پکاریږي.

**سرګردان** : ناارامه، ناقلاره، زړۀ سړے، پریشانه، بدحاله، په بده ورځ، هغه تن چې سر پرې ګرځي.

**سرګردانه** : پریشانه، لالهانده، ځلبلانده، سرګردان.

**سرګردانیدل** : بې ارامه کیدل، ناقلاره کیدل، پریشانه کیدل.

**سرګرم** : پیش پیش، په څۀ کار کښې ډیر په شوق برخه اخستونکے.

**سرګزشت** : واقعه بیانونه، سردوباره، تیر شوے حال.

**سرګشته** . حیران و پریشان، اریان دریان، وارخطا، بې خوده، بیهوشه، لیونے، اوتر.

**سرګومه** : بې هوشه، بدحاله، بې سده، په ځان نۀ پوهیدونکے.

**سرلوړي** : سربلندي، سرفرازي، افتخار.

**سرلوړے** : سربلند، سرفراز، کامیاب، کامران، د عزت خاوند، عزت ګټونکے.

**سرمایه** : پنګه، ذخیره، مال دولت، ډیرې جمع شوې پیسې.

**سرمایه دار** : مالدار، صاحب حیثیت، د ډیرو پیسو او مال خاوند، دولتمند.

**سرمائي** : توربخن، تور رنګ ته نزدې رنګ. پیکه تور رنګ، سرمه ئي.

**سرمد** : همیشګي، دائمي، تل.

**سرمست** : هغه څوک چې د څۀ نشې له کبله ډډیږ وي او په ځان نۀ پوهیږي.

**سُرمه** : رانجۀ، کجل، د سترګو تورولو یو قسم تور پوډر.

**سُرنا** : یو قسم د موسیقی آله چې د بیم په شان اواز کوي،

**سُرناک** : خونده ور او خوږ.
**سرنامه** : د خط ابتدائي برخه، مقدمه، عنوان.
**سُرنګ** : هغه سورے چې په غر یا ډیری کښې د لارو ویستو په غرض کولے شي.
**سرنوشت** : تقدیر، قسمت، قضا، نیته، ازل، لیک، مقدر، بخت، طالع.
**سُرنۍ** : سرنا، شپیلۍ، توري.
**سرو** : سروه، یو لوړ قدې ونه چې کالو سر شنه وي.
**سروپ** : بالکل، بیخي، ګرسره.
**سروپا** : تر پښو، ټول بدن، سر نه ترپښو.
**سرود** : د ټنګ ټکور اواز، ساز و اواز، موسیقي.
**سُرور** : خوشحالي، سوکالي، ښادي، خوښي، راحت.
**سرور** : لار ښودونکے، مشر، رهنما، رهبر.
**سرورق** : د کتاب یا رسالې د سر پاڼه.
**سروري** : رهبري، مشري، رهنمائي، سرپرستي.
**سروسامان** : لوښي لرګي، مال حال، د ژوند وسائل.
**سروقد** : دنګ، لوړ، اوږد وګورئ سروقامت
**سروکار** : مناسبت، مطابقت، ارتباط، شغل، مشغولیت، مصروفیت، سریکار.
**سروه** : وګورئ سرو.
**سره** : یوخاے، یو بل سره، په خپلو کښې، څخه، یو تربله.
**سره** : هغه کیمیائي او مصنوعي مواد چې د ښهٔ فصل د پیدا کولو دپاره په پټي کښې اچولے شي.
**سره** : سور رنګ لرونکې، د سور مؤنث.
**سرهٔ** : سرهٔ زر، یو مشهور قیمتي دهات چې کالي پترې ترې جوړولے شي. د مخ

سرهٔ، ښکلي والي، ډير تاودهٔ، بريان.

**سرهٔ باتينگن** : تماټر، سرهٔ بانجن، رومي بانجان.

**سري** : پټ، مخفي، سر.

**سريخ** : يو قسم ونه.

**سرير** : شاهي گدی، شاهي منصب، شاهي تخت، شاهي مسند.

**سريزه** : تمهيد، مقدمه، شروع، ديباچه.

**سرينده** : سارنگي، د موسيقي يوه آله.

**سريه** : هغه جنگ چې حضور صلي الله عليه وسلم پکښې پخپله نهٔ وي شامل شوے.

**سريښ** : سريش، شريش، هغه سليښناکه ماده چې دوه څيزونه پرې خپلو کښې يو ځاے کولے شي.

**سريښناک** : ښليدونکے، سليښناک،

**سرۍ** : د ستنې دپاسه هغه لرگے چې تير پرې ايښودے شوے وي.

**سړزي** : سردي، يخني، د يخنۍ موسم، ساړهٔ، د گرمۍ متضاد. زکام.

**سړک** : هغه لويه هواره او پخه لار چې موټرې او لارۍ وغيره پرې ځي راځي.

**سړوکی** : د ونې سر.

**سړول** : يخول، مړ کول.

**سړه** : د سوړ مؤنث.

**سړه تبه** : سړه لړې، يوه تبه چې يخنې ورسره ډيره زياته وي.

**سړه سينه** : بې غمي، سوړ زړهٔ، لاپرواهي،

**سړه لړې** : هغه تبه چې مريض پکښې د يخنې له کبله کړ گوزې وهي. مليريا.

**سړيتوب** : انسانيت، ښهٔ اخلاق، ښهٔ کردار، تهذيب.

**سړيخور** : د انسان غوښه خوړونکے، آدم خور. حريص، لالچي، ظالم.

**سرېدل** : يخيدل، په غصه قابو کيدل، مړهٔ کيدل.
**سړے** : نر بنيادم، نر انسان. نوکر، خدمتګار. ميړهٔ، خاوند.
**سزا** : جزا، د بدى بدله، بدل، عوض، هداد.
**سزا وار** : د سزا قابل، د سزا لائق، د سزا جوګه. مستحق.
**سزنې** : سيزنې، سيځنې.
**سږ** : سږ کال، سخکال، روان کال، جارې کال.
**سږ کال** : سخکال، روان کال، موجوده کال.
**سږنے** : د دې کال، د موجوده کال، د سخکال سره متعلق.
**سږے** : پرپوس.
**سسپار** : د يوې پاله، د يوې تيشى. سسپاره، کرکى.
**سسپر** : کودالى، کشى، تسکوره، سسپور، سسپوره.
**سست** : ناراسته، کاهل، لټ. د کلک ضد، سست پست.
**سستول** : ناراسته کول، بيکاره کول، نرمول، اسانول، ارتول، شلمول. کونې کول.
**سسته** : ډيل. کمزورې. د سست مؤنث.
**سستي** : ناراستې، کاهلې، کمزورې، لټوالے. مفعوليت، کونې توب، کونې والے.
**سستيا** : ناراستې، سستې، کاهلې.
**سستيدل** : ناراسته کيدل، پرانستے کيدل، شلميدل، کمزورے کيدل، کونې کيدل.
**سسکوره** : کداله، کدالى، سينکوره، د وسپنې او لرګې هغه آله چې زمکه پرې کنستے شې.
**سطح** : سطحه، مخ، استر، د څهٔ څيز برنى حصه. هغه څهٔ چې طول او عرض لرې.
**سطحي** : د سطحې سره متعلق، سرسرې. علاقائې.
**سطر** : ليکه، کيله، کربنه. فقره، د ليک يو کربنه.

**سعادت** : نیک بختي، نیک مرغي، خوش بختي، اقبال مندي، ښادمني، ښاغلتیا.
**سعد** : نیک، مبارک، ښهٔ، پاک، د نجس متضاد.
**سعدین** : دوه مبارکې سیارې چې د یو نوم زهره او د بلې مشتري دے.
**سعي** : جدوجهد، کوشش، خواري، محنت. کار، عمل. د حج دوران کښې د صفا او مروه د غرونو ترمنځه د څهٔ مقرره اصولو لاندې منډه وهنه.
**سعید** : کجیر، برخه من، نیک مرغه، خوش قسمته، نیک بخته، د شقي متضاد.
**سعیر** : دوزخ. دوزخي طبقه.
**سفارت** : د سفیر عمله چې صلحې صفایې او دوستانه تعلقاتو جوړولو په غرض د یو سلطنت نه بل ته ځي.
**سفارش** : شفاعت، سعي، سپارښتنه، سپارښت، سفارښ.
**سفارشي** : سفارش کونکے.
**سفاک** : خون کونکے، وینه تویونکے، خوني، قاتل، خونړے، بې رحمه.
**سفاکي** : خونریزي، بې دردي، بې رحمي، د انسانانو د وینو تویولو عمل.
**سفر** : مسافرت، سیاحت، د یو ځاے نه بل ځاے ته تلنه، یون.
**سفرنامه** : د سفر باره کښې هغه لیک چې د خپل سفر یا د بل چا سفر د سترګو لیدلے حال پکښې قلمبند شي. یون لیک.
**سفله** : کمینه، رذیل.
**سفلي** : د کمې درجې، ناقص، د اعلیٰ متضاد. ډیر ښکته، ډیر ټیټ، د لاندې.
**سفوف** : میده، رش، پوډر.
**سفیر** : ایلچي، هغه سړے چې د صلحې صفایې او

دوستانه تعلقاتو جوړولو په غرض د خپل ملک له خوا سرکاري طور باندي بل ملک کښي ډیره وي.
استاځے.

**سفینه** : کشتی، بیړی.
**سفید** : سپین، د تور متضاد.
**سفیدي** : سپینوالے، اخیر.
**سفیده** : سپیده، سپیدار، سفیدار.
**سقاوه** : هغه ځاے چې پکښي ډیري اوبهٔ وي، غسل خانه، د لمبلو ځاے، چړچوبی.
**سقر** : دوزخ، جهنم،
**سقف** : چت، د کوټي د ابادی برنی حصه.
**سقم** : عیب، نقص، خرابي.
**سقوط** : غورځیدنه، غوزاریدنه، انزال کیدنه، خلاصیدنه.
**سقیم** : ناقص، بیمار، مریض، ناجوړه.
**سک** : بریښ، د ملا درد، په ملا کښي ځړیکه راتلنه، خوږ، ځړیکه. د ژړا سلګی.
**سکارهٔ** : د سکور جمع، د لرګو سوځولو نه پس په اوبو مړې کړې شوې سکروټې چې عام طور سره په انګیټی کښي استعمالولے شي.
**سکاڼ** : سکان، سکن، توربخن.
**سکته** : وقفه، ځنډ، معطلي.
**سُکټ** : سوکټ، بیخي، مکمل، صفا، لکه سُکټ انکار.
**سکروټه** : وګوریٔ سروټکه.
**سکړک** : سوکړک، د جوارو روټی.
**سکړک** : خراب، وران، په بد حال.
**سکښتل** : په قینچی کپړه یا کاغذ پریکول. ګنډل، ګینده کول.
**سکنجه** : ګرفت، پنجه، شکنجه، د کتاب ترلو یا د بل څهٔ څیز د کلک نیولو دپاره استعمالیدونکې آله.

**سکڼ** : تورېخن خو خوش کله، سکاڼ.
**سکنډل** : پـه بیاتي پرېکول، قطع کول. ګنډل، ګېنده کول.
**سکوت** : خاموشي، قلارې، چپه چپیا.
**سکور** : مړه شوې سکروټه، د سکارۀ واحد.
**سکول** : مکتب، مدرسه، د اول جماعت نه تر لسم جماعته پورې د زده کړې ځاے.
**سکون** : ارام، راحت، خوشحالي، نۀ خوځېدنه، د حرکت متضاد.
**سکونډاره** : نوکاره، چونګاره، چکونډاره، چونډې.
**سکونډل** : سکونډارې لګول، نوکارې لګول، زورول.
**سکه** : د دهات نه جوړه یوه سرکاري روپۍ، پیسه چې د یو مخصوص سرکاري نښې په وجه ئې پېژند ګلو کیږي.
**سکیم** : منصوبه، جوال.
**سکینډل** : ساه لوړېدل، اوپره کیدل، په سکینډو سکینډو ساه اخستل.
**سګ** : سپے.
**سګرټ** : د کاغذ نچه چې تماکو نه ډکه وي او خلق ئې د نشې په توګه څښي.
**سګنے** : د سخکال، د سږ کال، د روان کال.
**سګے** : د ځناور او بنیادم دننه یو اندام، اینه، پښتورګے.
**سل** : پنځۀ شلې، لس د پاسه نوي.
**سل** : یو موذي مرض چې پرپوس پکښې زخمي شي او وینه ترې بهیږي. دق، نرے رنځ.
**سلاجیت** : د بعضې غرونو د کانونو نه حاصلیدونکې ماده چې د اعصابو محکمولو دارو ګڼلے شي. د غرونو خوله.

**سلاح** : وسله، د جنگ جګړې اوزار.

**سلاد** : سلات، سلاته، سلته، چکني، چقائے، پودینه، پیاز، تماټر.

**سلاست** : رواني، اساني، نرمي، سادګي، په کلام یا تحریر کښې د ثقیلو الفاظو نه ځان ساتنه.

**سلاطین** : د سلطان جمع، بادشاهان، شاهي خاندان، سلطانان.

**سلام** : سلامتي، تعظیم. عیب نۀ لرنه. د خدائے پاک یو صفتي نوم.

**سلامتي** : روغتیا، صحت مندي، تندرستي، بې عیبي.

**سلائي** : هغه نرے ډکے چې پرې سترګو کښې رانجهٔ اچولے شي.

**سلبول** : په زور اخستل، محرومول، شوکول.

**سلبیدل** : محرومیدل، شوکیدل، جدا کیدل.

**سلخ** : د قمري میاشتې اخري ورځ.

**سلسبیل** : د جنت د یوې ولې نوم چې شات او پۍ پکښې بهیږي.

**سلسله** : لړی، زنځیر، وړدوالے، قطار، پرله پسې والے، کورنی.

**سلطان** : باچا، بادشاه، واکمن، اختیارمند، حکم چلونکے.

**سلطنت** : بادشاهي، حکمراني، حکومت.

**سلف** : تیر شوي، پخواني خلق، اولني خلق، د تیرې زمانې مخلوق.

**سلکی** : اینهکی، نښتې نښتې ژړا.

**سلواغه** : بوکه، د څرمنې هغه لوښے چې د کوهي نه پرې اوبهٔ راویستے شي. د دلوې میاشت.

**سلوتري** : د ډنګرو معالج، د څاروو ډاکټر.

**سلوک** : رویه، کردار، طورطریقه، خوئ خصلت.

**سلويٰ** : هغه طعام چې خدای پاک به بني اسرائيلو ته د مرزو په شکل کښې په کثرت سره ور کولو.

**سليپر** : يو قسم بوټان چې ډير په اسانه په پښو کښې اچولے شي.

**سليس** : اسان، ساده، عام فهم، د ګران يا مشکل متضاد.

**سليقه** : تميز، هنر، لياقت، سنجيدګي.

**سليم** : نرم زړے، ښهٔ زړے، هغه څوک چې د زړهٔ نه ډير ښهٔ وي.

**سليټ** : هر هغه ماده چې د خاورو شګو نه جوړه شوې وي. هغه توره تختی چې په چاک يا سليټي پرې ليکل کيږي.

**سليټي** : هغه سپين چاک چې په سليټ ورباندې ليکل کيږي.

**سليښ** : سليښت، سريښ، سريش، ګوند.

**سليښناک** : د سليښو يا سريشو اثر لرونکے،

**سلے** : د پيتلو يا جستو ګوتمه، بې غمي ګوته.

**سم** : روغ، جوړ، نيغ، درست، برابر. صحيح.

**سُم** : غار، سوړے، د ستنې سوړے، سپم، سروے.

**سما** : اسمان، چت.

**سماج** : تهذيب، معاشره.

**سماجي** : د سماج سره متعلق.

**سماع** : اوريدنه،

**سماعت** : اوريدل.

**سماوات** : د سما جمع، اسمانونه.

**سماوار** : له زيړو نه جوړ د اوبو هغه لوښے چې بمبه پکښې لګيدلے وي.

**سمبال** : جوړ، تيار، برابر، سينګار کړے،

**سمبالښت** : سنبالښت،

تیارے، برابرے، سینګارونه، ډول ډال، حفاظت.
**سمبالول** : جوړول، تیارول، برابرول، سینګارول.
**سمبالیدل** : جوړیدل، تیاریدل، برابریدل، سینګاریدل.
**سمت** : طرف، خوا، لورے. لور، پلو، کافي مقدار، پوره اندازه.
**سمڅ** : سمڅه، غار، ګاره، په غرهٔ کښې قدرتي غار.
**سمدست** : سمدستي، سم د لاسه، فوراً، ناګهانه، ناڅاپه، اتفاقاً.
**سمدستي** : فوراً، د ستر ګو رپ کښې، دستي، زر، ژر، بې له ځنډه.
**سمسره** : سمسیره، سمساره، سوسماره، شلخورکه.
**سمسور** : شګفته، غوړیدلے، رسیدلے فصل.
**سمع** : غوږ، د اوریدو حس، اوریدنه.
**سمعي** : د اوریدو، هغه څهٔ چې اوریدے شي.
**سمک** : مهے، کب، ماهے.
**سمندر** : لوے دریاب، بحر. اورمړک، سیتی، د اور چینجے.
**سموسه** : مخروطي شکل لرونکے د میدې نه جوړ یو قسم خوراک چې منځ کښې ئې قیمه، الوګان، پیاز او دنیا وغیره ګیر وي او غوړو کښې تلیدلے وي.
**سمول** : برابرول، جوړول، تنظیمول، رغول، اصلاح کول، لارې ته ایستل.
**سمون** : سمے، برابرے، روغ والے، تصحیح، جوړښت، موافقت.
**سمه** : درسته خبره، صحیح خبره، هواره، مسطح، د غر متضاد.
**سمیع** : اوریدونکے. د الله تعالې یو صفتي نوم.
**سمیدل** : جوړیدل،

برابریدل، تنظیمیدل، روغیدل، رغیدل، لارې ته برابریدل، اصلاح کیدل.

**سمے :** سمون، برابرے، جوړ، ترون، پیوند، سموالے، کچګر.

**سن :** عمر، کال، د عمر مقدار.

**سنبال :** سمبال، جوړ شوے، تیار، برابر، ډول سینګار کړے.

**سنبل :** یو قسم بوټے او د هغې ګل چې زړۀ راکښونکې خوشبوئي کوي او د نري نري تارونو په شکل لیدے شي. ځنې،

**سنت :** د اسلامي قانون دویم ماخذ. طریقه، روش. د حضرت محمد صلي الله علیه وسلم طور طریقه او عادت و اطوار. سونت، ختنه، هغه طریقه چې د مسلمانانو بچو نه د شرعي احکاماتو مطابق سوخې د سر پسته حصه پریکولے شي.

**سنتري :** سرکاري پهره دار، سپاهي، څوکیدار.

**سنتول :** ختنه کول، په ماشوم والي کښې د ذکر د سر نه اضافي غوښه پریکول، د چا نه په ټګۍ څۀ اخستل یا شوکول.

**سنجول :** تلل، اندازه کول،

**سنجیده :** مهذبه، د عقل او فکر خاوند.

**سند :** ثبوت، سرټیفیکیټ، وثوق، اعتبار. هغه تحریر چې تعلیم یا څۀ اهم څیز ثابتوي. تصدیق نامه، لیکلے حکم.

**سندان :** د وسپنې کوړی چې لوهاران وربانديې وسپنه ږدي او بیا ئې په پلک ټکوي.

**سندرغارے :** سندربول، سندرې ویونکے، د ساز سره اواز ایستونکے، لوبې ویونکے.

**سندره :** لوبه، ترانه، نغمه.

**سنډا :** د میښې نر. مجازاً غټ او څرب سړے.

**سنلاسي** : هغه ملنګ یا فقیر چې په غرونو او صحراګانو د کیمیا په بوټي پسې ګرځي.
**سنزله** : تندے. یوه ونه چې لکه د مرخنی میوه نیسي.
**سنسکرت** : صفا. پاک، پاکیزه. د هندوانو یوه پخوانی ژبه.
**سنکیا** : زرنیخ، یو زهرژن کاڼے. هر مضر څیز.
**سنګ** : کاڼے. وزن، بوج.
**سنګ تراش** : کاڼي توړلو واله، قیمتي کاڼي نه غمي جوړونکے، د کاڼو نه څیزونه جوړونکے.
**سنګتره** : د مالټې په شان یوه اوبهٔ لرونکې میوه،
**سنګدل** : سخت زړے، ظالم، بې رحمه، د کلک زړهٔ خاوند.
**سنګر** : مورچل، مورچه، کچه قلا، پشته.
**سنګریزه** : باجري، چانکر، واړهٔ کاڼي،
**سنګسار** : هغه څوک چې د څهٔ سزا په وجه په کاڼو دې حد لـه وویشتے شي چې مړ شي. ډبروژنه، د کاڼو په ویشتو مړ کونه.
**سنګلاخ** : سسکوره، کداله، کدالی، کاڼیزه زمکه.
**سنګیت** : د موسیقی علم، د موسیقی پوهه.
**سنګین** : د دبدبې او وقار څښتن، درونـد، پـت من. یو قسم پیش قوزه چې په ټوپک کښې لګولے شي. د سنګ سره متعلق.
**سنه** : سن، نیټه، موده، کال، عمر، تاریخ.
**سُني** : اهل السنة والجماعة.
**سنیاسي** : د دنیا نه کناره کش، جوګي، سادو، فقیر.
**سنیچر** : د خالي ورځ، د هفتې ورځ. یوه ډیره سست رفتاره او منحوسه سیاره زحل.
**سوا** : زیاتي، پرته، پورته.

**سوابیره** : د بیرې د خاندان یوه ونه او د هغې میوه.

**سواحل** : د ساحل جمع، غاړې، کنارې.

**سواد** : توربخن، تورواله، تور رنګ ته مائل.

**سوار** : سور، سپور، په اس یا بل ځناور سورلي کونکے.

**سوارهٔ** : د سور جمع.

**سواري** : سورلي، په اس، هاتي، موټر، لاری یا جهاز وغیره سوریدنه.

**سوال** : پوښتنه، پښتنه، تپوس، پرس. خواست، خیرات غوښتنه. عرض، التجا، درخواست.

**سوالګر** : سوالګرے، سوال کونکے، فقیر، ګداګر، خیرات غوښتونکے

**سوالي** : سوال کونکے، فقیر، ګدا. خیرات غوښتونکے سوالګر.

**سوالیه** : پوښتنه، پښتنه، استفهام، تپوس. د سوال

پوښتلو نښه.

**سوان** : د وسپنې مښلو یوه فولادي آله، د چاړې چاقو یا نور داسې ځیزونو تیرهٔ کولو آله.

**سوانح** : د ژوند حالات، د ژوند لیک، د سانحه جمع.

**سوائي** : زیاتي، سر دپاسه،

**سوب** : چاره، علاج.

**سوب ګیر** : چاره ساز، مددګار، کار ویستونکے.

**سوبه** : مراد، مقصد، خواهش، غوښته.

**سوپره** : کونه، مقعد، سومبی، د لویو بولو اندام.

**سوپنه** : پواړه، بدرنګه، ناقابله.

**سوپی** : بیزو، شادو. کشکره، کیشکره.

**سوپے** : د سوپی مذکر، بیز، د بیزو ګانو نر. نر شادو کے.

**سوتره** : پاک، صاف، صفا، ستره.

**سوتلی** : سنی، ځنی، د

سنو منږې یا ډیر نرې پرې.
**سوته** : فضله، سوپه، د ځاروو فضله.
**سوته** : د جوارو هغه تو که چې پخه نهٔ وي. شخوله لرونکې وړې.
**سوتې** : د لرګي غټه ډنډه. چقماق، بکره.
**سوجي** : یو قسم زاړهٔ اوړهٔ چې حلوه ترې پخولې شي.
**سوځول** : سیزل، سوزول، اور وراچول، اور ورته کول.
**سوځیدل** : په څهٔ شیز اور لګیدل، په چا اور لګیدل، لمبه کیدل، اور اخستل، سوزیدل.
**سوچ** : عقل، فکر، پام، پوهه، خیال، تصور.
**سوچه** : خالص، اصلي، صفا، اصلي، د ریښمو نه جوړه کپړه.
**سوخت** : قهر، غصه، درد، خوږ، سوزیدلې
**سوختول** : تاؤ تیرول، غصه کول، په قهر کول.
ذهني عذاب ور کول.
**سوخته** : سوې، سوزیدلې، کباب شوې. هغه سکارهٔ چې د چیلم په سر خانه کښې ایښوې شي.
**سوختیدل** : تاؤ تیریدل، تاؤ خوړل، غصه کیدل، په قهر کیدل
**سوخړه** : د سرې غوښې بوټی، د ښې هډو کي غوښې بوټی.
**سوخی** : ډګه، ذکر، غین، د ماشومانو خوټه.
**سُود** : ګټه، فائده، نفع، د زیان متضاد. هغه اضافي رقم چې قرض خوا ته د قرض واپس کولو سره ور کولې شي.
**سود** : تسکین، دمه، ارام، داد. شعور، عقل، هوش.
**سودا** : خرید و فروخت، اخستنه خرڅونه. غم، فکر، تلوسه.
**سوداګر** : [illegible]

تجارت کوي، تاجر.
**سوداګري :** د سوداګر کار او پیشه.
**سودائي :** دیوانه، لیونی، وسواسي، فکرژن.
**سود سودا :** سودا، خرڅ، سوږ سپیرکی، د بازار ټکه ټوکه.
**سودمن :** فائده من، مفید، ښهٔ.
**سوده :** هغه ځاروی چې د ښو نو کونه ئ سولیدلي وي. بیخي، بالکل، غوند، ټول.
**سوده :** د میزري جوړه ټوکرۍ، شکرۍ.
**سوده :** سود، تسلي، اطمینان، ساده بوله.
**سوډا :** یو کیمیائي مواد چې په شربتونو وغیره کښې استعمالولی شي. دوه مختلف قسمه سپین پوډر چې یو د جامو وینځلو او بل د اوړو وغیره د پستولو دپاره پکارولی شي.
**سوډر :** خنزیر، سر کوزی، سور. مجازاً لټ غوئی. بې ادبه سړی.
**سوډر :** په اوړو کښې استعمالیدونکې سوډا.
**سور :** سور رنګ. په وینو سور.
**سور :** سوار، په اس، هاتي یا بل د سورلی په څیز سور، سپور.
**سُور :** تلیدلی، وریت شوی، په غوړو کښې تلیدلی.
**سور :** د ګیدړ نه لږ غټ خړ رنګی ځناور چې ناپاکه او مردار وي سر کوزی، خنزیر، بد ځناور.
**سوراړ :** دشت، صحرا، بې آب و ګیا بیابان، سخته ګرمي، د ګرمی د موسم ډیره ګرمه میاشت.
**سوراړا :** سپیرهٔ ډاګه، دشته، صحرا، سوراړ.
**سوران :** ګرم باد، ګرمه هوا. یو مرض چې د ګرمی له

کبله پیدا کیږي او مریض پکښې ډیر زیات تږی کیږي. چغې سورې، های کو کار، ویر، ژړا انګولا.
حرص، لالچ.

**سورانه** : کوکاره.

**سور باتینګن** : ټماټر، رومي.

**سور بوټی** : سوربخن، هغه سړی چې رنګ ئې سور وي.

**سورپتکنی** : سره خاوری، سره خاوره، سره پتکړی،

**سورت** : د قرآن مجید د یو سل څوارلسو حصو نه یوه حصه. سورة،

**سورسات** : د خوراک هغه سامان یا ذخیره چې د حکومت له طرفه د فوج دپاره په زور اخستلی کیږي.

**سورلنډی** : شغال، ګیدړ.

**سورلي** : هر هغه څیز چې سورلي پرې کیدې شي.

**سوروول** : سپرول، د سورلی په څیز کښینول، په اس، هاتي، یا بله سورلی کښینول.

**سوره** : هغه جینی چې د دوؤ دشمن ډلو منځ کښې د روغې راوستو په غرض د ظالمې ډلې له خوا مظلومې ډلې ته ور کړې شي.

**سوره** : چغه، نعره، کریکه، کړیکه.

**سوریته** : هغه وینځه چې د خپل مالک نه ئ اولاد وشي.

**سورې** : چغې، نارې، کریکې، کړیکې،

**سوریدل** : د سورلی په څیز کښیناستل،

**سوړی** : سوړه، غار، سوری، مجازاً کوني، مفعول.

**سوړ** : د تود یا ګرم متضاد. مجازا لټ او ناراسته سړی.

**سوړه** : سوړی، مقعد، د لویو بولو ځای، کونه.

**سوز** : سوزیدنه، سوی درد، تکلیف، غم، پریشاني، د غم یا الم سندره.

**سوزاک :** یو قسم ناروغي چې د ورو بولو اندام پکښې زخمي کيږي او بيا د هغې زخم له کبله سوځي.

**سوزان :** سوزونکے، سوزناک.

**سوزش :** سوخت، سوز، سوزيدنه، تاؤ، درد، تکليف.

**سوزن :** ستن. د تيرې ثوکې څيز لکه توره وغيره.

**سوزول :** په اور کښې لمبه کول، بلول، اور لګول، اور اچول، سيځل.

**سوزيدل :** په اور لمبه کيدل، بليدل، اور لګيدل، اور اچولے کيدل.

**سوسن :** اوږد، لوړ قدے، په ونه وچت، زمبک.

**سوسني :** د سوسن رنګ په شان. تت تور رنګ، بانجاني رنګ.

**سوغات :** تحفه، ډالی، پيرزوئينه،

**سوغړ :** لغړ، بربنډ، لغړ سوغړ، داسې بربنډ چې په وجود رنجه پاتې نۀ وي.

**سُوک :** موتے، د لاس د پنجې راغونډيدو حالت. موکه.

**سوکا :** په ارام. په تسلی، په جمع زړۀ، په اطمينان.

**سوکاله :** خوشحاله، هغه ثوک چې خوشحال او مطمئن وي. ناراسته، لټ،

**سوکالي :** خوشحالي، خوښي،

**سُوک څپيړه :** جنګ جګړه، معمولي جګړه.

**سُوکړ :** چې ږيره ئې ډيره رنګی وي. د وچتې او نری ونې خاوند.

**سوکړه :** وچ کالي، خشک سالي. هغه زمکه چې اوبۀ ئې نۀ وي. للمه.

**سوکه :** ورو، په قلار، په قرار، په دمه، په مزه، په ساه.

**سوکی :** څوانکه، هغه دانه چې د بلوغ په وخت د نوي

خوان په مخ راخیژي.

**سوګ** : پرخه، شبنم، غم، پریشاني، د چا په غم غمرازي کونه، ویر، ماتم.

**سوګمار** : لاپو، تبوقمار، دوزن، دوزې ویشتونکې.

**سوګړه** : دوزه، لاپه، لافه، عبث خبره.

**سوګند** : قسم، د خبرې تصدیق او ربنتنولی دپاره د مذهبي مقدساتو ذکر کونه، لوړه، لو.

**سوګندي** : قسمي، چې قسم یا سوګند ورکړې شوې وي.

**سوګوار** : غم زده، غم زپلې، ویر ژړلې،

**سول** : سوزول، سوځل.

**سولول** : میړل، مبنل، زدویل، زدوول، لرې کول، ایسته کول، حرابول، له کاره ایستل.

**سولیدل** : مبنلې کیدل، میړلې کیدل، زدوول کیدل

**سولی** : دار، تخته، پانسي، غرغره، تند باد، تیزه هوا.

**سولې** : لالچي، طامع، هغه ستیک چې ژرنده پرې تیره کولې شي.

**سوم** : سم، سورې، د ستني سورې.

**سومبه** : هغه آله چې په وسپنه کښې پرې سورې کولې شي.

**سومبی** : کونه، مقعد، دوبره، توبره.

**سونډ** : سن، سوڼ، کنف، کتان، یو قسم بوټې چې رسی او کونی ترې جوړولې شي. شنډ، سنډ، جنجر، زنجبیل.

**سونول** : په پوزه هوا ایستل، د پوزې نه ګړینګ غورځول،

**سونیدل** : په پوزه هوا راښکل او ایستل.

**سوونه** : سلګونه، سلونه. د [illegible] جمع

**سوه** : سویه، حرکونی

**سوهان** : چوسار، سوان، وسپن توږے، سوهن،
**سویل** : سهیل،
**سویلی** : ملګرې، د جینی د سیل ملګرې.
**سوے** : سوزش، سوخت، د زړهٔ سوے.
**سوے** : سوزیدلے، ستي شوے، سوخته.
**سهار** : د سحر بل قرأت.
**سهل** : زغمل، تیرول، هضم کول.
**سهو** : غلطي، خطا کونه،
**سهوا** : په هیره، په غلطی.
**سهوه** : غلطي، تیروتنه، ساوه، خطا، لغزش، هیر، غلط.
**سهیل** : دیو ستوري نامه، ځلند ستورے.
**سهیلی** : سویلی، د جینی دوسته، ملګرې، همخولي.
**سیاح** : سیلانے، سیاحت کونکے، په سیل تلونکے، سیل کونکے، سیلګر.

**سیاحت** : سیل، د سیلاني کار او عمل.
**سیادت** : مشري، سرداري، بزرګي، شرف، لوئي.
**سیادلي** : سر ګرځیدنه، سر چورلندے، زړهٔ زړیدنه، سیاه دلي.
**سیاره** : ګرځنده ستورے، متحرک ستورے، اسماني جرم چې د نمر نه ګیر چاپیره ګردش کوي.
**سیاست** : په خلقو حکم چلونه، حکومت کونه، تدبیر جوړول او وړاندې وروستو فکر کول.
**سیاق** : رسم، طرز، طریقه، اسلوب، سلیقه، انځور، دود.
**سیال** : برابر، په هر څهٔ یو شان، سارے، سیارے. مائع، بهیدونکے څیز.
**سیالي** : برابري، همسري، یو شان والے.
**سیانه** : هوښیار، عاقل، پوه، چالاک.

**سیــــاه** : تــور، تــور رنګ لرونکې څیز.
**سیــاهي** : هغــه تور رنګ لــرونکــې مــائع چې په کاغذ وغیــره پــرې لیک کیږي، تور کې، روښنائي.
**سیب** : زیـم، نم، لوندوالې، رطوبت.
**سیپاره** : د قـرآن شـریف د دیرشو برخو نه یوه برخه.
**سیپــی** : صـــدف، سیپ. کاشک، قاشوغه.
**سیخ** : تیغ، سیدها، سم، د وسپنې نرې تار.
**سیخچه** : یو قسم برمه چې دیوالونه پرې سوري کولې شي.
**سیخ کباب** : سیـخکې، سیـخکـې، هغه کباب چې په سیخ کښې ورکولې او بیا په اور پخولې شي.
**سیخل** : پــه کښیـمنـدېلو باندې د کول.
**سیرت** : کـردار، عـمـل، خصلت، خوئ، مذهب.
**سیری** : هغـه زمکـه چې جومات له د مدد دپاره ور کولې شي.
**سیزني** : د کپړې نه جوړه شوې نرۍ پټۍ چې ماشومان پرې پــه اوږنـې کښې تړلې شي.
**سیسی** : یو خړ رنګې حلاله مرغۍ.
**سیکه** : د وسپنې یو قسم چې ډیر درونډ وي.
**سیلی** : تیزه هـوا، تیز باد، طوفان. تباهي.
**سیم** : فلزي مزې. جست. ستوم، د ستنې سپم.
**سیماب** : پاره.
**سیمه** : طرف، لوړې، خوا، اړخ، علاقه، منطقه.
**سین** : سیند، دریاب.
**سیند** : سین، دریاب، رود.
**سینګار** : د ځـان سـمبالې، سـرخې سـفیدي، جوړښت، ډول، سنبالښت، ارائش، ځان

جوړونه.
**سینګارول** : سرخي سفیدي کول، ارائش کول، ځان جوړول، ښائسته کول.
**سینګاریدل** : سرخي سفیدي کیدل، ډولي کیدل، جوړیدل، ارائش کیدل.
**سینګاوڼ** : د کشتی وروستی برخه کښې هغه لویه چپه چې د کشتی د رخ بدلولو دپاره استعمالولے شي.
**سینه** : ټټر، د بدن برنی مخامخ حصه، د غاړې او ګیډې منځنی حصه. تے . پئ.
**سیو** :سیب، سیب، منه.
**سید** : باچا، مشر، پیشوا. د سیدانو یا ساداتو له کورنی نه یو نارینه . اهل بیت.
**سیر** : څلور پاوه، شپاړس چیټاکی، د وزن یو کانړے.
**سیراب** : په اوبو موړ، خړوب، ډک.
**سیکره** : سینکره، سل، صد، سل دانې. د شمیر یوه اندازه او د هغې نامه.
**سیکن** : موړ، ډک، د ډیر خوراک کولو په وجه د زړهٔ خرابوالے.
**سیل** : تماشه، چکر، ننداره، نظاره، د مرغو وغیره ټولے.
**سیلاب** : په دریاب کښې د اوبو زیاتوالے، نیز.
**سیلانے** : سیاح، سیل کونکے، سیلګر.
**سیلمه** : مخامخ، اوپره، خاندان، محلتي، ګاونډي، تمام.
**سیله** : مرسته، پره، طرفداري، حمایت. د وریژو یو قسم.
**سین** : صلاح، مصلحت، مشوره.
**سین** : د حرف "س" تلفظ.
**سیوائي** : اضافي، زیاتي، طفیلي،
**سیورے** : سورے، سایه، پناه.

**ش** : (شین) د پښتو د حروف تهجي دوه ویشتم حرف چې د ابجدو په حساب ئې شمیر درې سوه (۳۰۰) دے.

**شا** : دمبال، پشت، د مخ متضاد.

**شابا** : هله کړه، زر کړه، د جلتې اواز.

**شاباس** : د آفرین کلمه، د شاباش مخفف.

**شاباش** : وګورے شاباس. شاباسے.

**شا په شا** : پټ په پټه، غیر موجودګی کښې، پسې شا، پشې شا، شا سره لګیدلې.

**شات** : شهد، ګبین، هغه خوږه تینګه ماده چې تورې مچې ئې په خپل ګبین کښې جمع کوي.

**شاتوت** : شهتوت، د توت د ذات یوه ونه او د هغې میوه.

**شالیر** : غټ تیر، هغه تیر چې د کوټې په منځ کښې لګیدلے وي.

**شاتینګه** : د مارغۀ سنګ دانه، د مارغۀ معده چې کاڼي یا بل داسې کلک څیز ورته منتقل کیږي.

**شاخ** : حصه، څانګه، ښکر، د اوبو ناله. د ترخونو درې ګوټه کپړه.

**شاخیل** : یو نسل چې په درمن کښې د دانو سپ وهلو کار کوي.

**شاد** : خوشحال، مراد مند.

**شاداب** : تروتازه، سیراب.

**شادان**: خوشحال، خوشحاله.

**شادو** : بیزو، یو څناور.

**شاډوله** : شاډوله، د ګډا یو قسم، اتن.

**شاذ** : نایاب، قیمتي، کمیاب.

**شاربل** : شوملې کول. یوه خبره زنګول، خبرې ته ټال ورکول، خبره وړدول، د بچو راویستو په غرض د چرګې په اګو سینه مړل.

**شارع** : لاربنونے، لاربنود،

د شریعت راوړونکے. لویه لار، باچائي لار.
**شاړ** : د اباد متضاد، غیر اباد. لتړ، ناراسته، سست، کاهل.
**شاړول** : بنجرول، غیر ابادول، بې حاصله کول، په یو ځاے کښې استوګه پریښودل.
**شاړه** : غیر اباد زمکه، بنجر زمکه، بنجره، میره، سخته، خیګه، شډله.
**شاړیدل** : غیرابادیدل، د نۀ کرلو په وجه عبث کیدل، بنجریدل، له استوګې وتل.
**شاړے** : کلي وال، غرڅنے، شډل بډل. سست، ناراسته، کاهل.
**شاعر** : شعر ویونکے، شعر لیکونکے،
**شاعرانه** : د شاعرۍ سره متعلق.
**شاعري** : د شعر ګویی فن.
**شاغوت** : ګوته، ګوته ور کونه، اتړه.
**شافع** : شفاعت کونکے.
**شاکر** : شکر کونکے، شکر ایستونکے، ښۀ منونکے.
**شاکي** : شکایت کونکے، شکایتي.
**شاګرد** : زده کونکے، علم حاصلونکے. مرید، چېلے.
**شاګردي** : د شاګرد کار.
**شال** : د وړې څادر، اوني څادر.
**شالګے** : وړوکے شال، د شال اسم تصغیر.
**شالیزار** : هغه زمکه چې شولې په کښې کرلے شي. شولګره.
**شامت** : بدنصیبي، بده ورځ، بدمرغي، بدبختي، اسکیرنه، اجل، پوره، مقرره.
**شامدام** : تل، همیشه، هر وخت.
**شامل** : یو ځاے، په څۀ کار کښې شریک.
**شاملات** : د شریکې زمکه، هغه زمکه چې د څو کورنو،

کلو یا خلقو شریکه وي.
**شاملول** : شریکول، داخلول، ننه ایستل، گډول، یو ځای کول.
**شاملیدل** : شریکیدل، یو ځای کیدل، گډیدل، خلط ملط کیدل.
**شامه** : د بویولو قوت، د پنځو حواسو نه یو حس. د شامې حس.
**شامیانه** : لویه خیمه چې د ځلورو ستنو په ذریعه لکه د چت ودرولې شي. تمبو،
**شامي کباب** : د کبابو یو قسم.
**شان** : ځیر، لکه، غوندې، لکه څهٔ شان، څهٔ رنگ. لوې والې، بزرگي، د ډول یا ډولکي یو قسم.
**شاندانه** : خوشحاله، منتخبه.
**شان و شوکت** : جاه و جلال، پرق پروق، رعب، دبدبه، قدر عزت، درزدروز.
**شانه** : ږمنځ، گومنز، منگز.
اوږه، ولې، د جولاگانو یو اوزار چې د کلې تارونه پرې اودي.
**شاني** : شان ته، په شان.
**شاوخوا** : اخوا دیخوا، گیر چاپیره، مرسته، حمایت، عموما دې معنو کښې افغانستان کښې استعمالیږي.
**شاه** : باچا، بادشاه، خودمختار، اختیارمند. محافظ، دا لفظ د معشوقې دپاره هم استعمالیږي.
**شاه باز** : سپین باز. مضراب، هغه ډکې چې رباب پرې غږولې شي.
**شاه ځلمې** : ښائسته ځوان، د ملازو هلک، د وادهٔ ځلمې،
**شاه رگ** : شریان، هغه غټ رگ چې د هغهٔ په برکت نورو رگونو ته وینه رسي. د مرۍ رگ، ستر رگ.
**شاهد** : گواه، گواهي ورکونکې،

**شاهده** : معشوقه، محبوبه، شها.
**شاهدي** : شهادت، ګواهي.
**شاهکار** : بهترین تخلیق، غوره لیک یا تصویر وغیره.
**شاهنشاه** : بادشاه، د بادشاهانو بادشاه،
**شاهي** : د بادشاه سره متعلق. د بادشاه په شان خوئ بوئ لرونکے. باچائي.
**شاهین** : یو قسم تور سترګې ښکاري مارغۀ.
**شائع** : خور شوے، خپور شوے.
**شائق** : ارزومند، خواهش مند، مشتاق.
**شاید** : باید، ممکن، ښائي.
**شب** : شپه.
**شباب** : ځلمیتوب، د ځوانی زمانه، ځواني.
**شباهت** : یکسانیت، یو شان والے، یووالے.
**شبپرک** : ښاپیرک، کتپیز، چمبیرک، شکالے.
**شبخون** : د شپې د دشمن په کور حمله کول، داړه، د شپې مرګو. د شپې چپاؤ، یرغل.
**شبستان** : د شپې د استوګې ځاے، د اودۀ کیدو ځاے.
**شبقدر** : شوقدر، هغه مبارکه او بزرګه شپه چې پکښې د عامې عقیدې مطابق د مخلوق رزق او برخې لیکلے کیږي.
**شبګیر** : شوګیر، شپه رونونه.
**شبنم** : پرخه،
**شبه** : شیبه، لحظه، لمحه. د باران شیبه. شک، ګومان، شکه شبه، احتمال. نقلي جوهر، پوت. په شان، مشابه.
**شبهه** : شک، وهم، په زړۀ کښې چاته خیرې پیدا کونه.
**شبیه** : تصویر، نظر.
**شپاړس** : شپږ او لس.
**شپږ** : هغه سړے چې پنجه کښې ئې شپږ ګوتې وي. شپږ ګوتے.
**شپږ** : د پنځو او اوو ترمنځ

عدد.

**شپنغود** : د یو مارغهٔ نوم چې د شپې گرځي.

**شپنه** : د شپون مؤنث.

**شپول** : حلقه، هاله. ویړه، باړ، احاطه، د گډو بزو د ساتنې له ځایه نه تاؤ شوے د غنو کیږ.

**شپون** : د گډو بزو ساتونکے، گډبه،

**شپونکے** : وړوکے شپون، د شپون اسم تصغیر.

**شپه** : د نمر پریوتو نه تر سحره پورې وخت.

**شپیته** : د لرگي معمولي ټکړه چې په چوڼ کښې د ټینگولو دپاره ورکولے شي.

شپیشتے، پانه.

**شپیشتړے** : یو قسم ساگ، پیشتر، شپیشتے.

**شپیلکے** : وړوکے شپیلے.

**شپیلل** : د خوراک څیز په خلې راښکل، له هډو کي نلے په خلهٔ راښکل، د خوراک څیز د ساه په زور خلې ته راښکل.

**شپیلی** : توری، د ټوپک یا تماچې نلی.

**شپیلے** : له خلې وتلے د شپیلی د اواز په رنگ اواز.

**شت** : شتکه، تیزرفتار، تیزه منډه،

**شتاب** : تلوار، جلتي، سرعت، بیړه، بې قرارې.

**شتر** : اوښ. وړدې پښې لرونکے لوړ سړے.

**شتهٔ** : دولت، جائداد، مال، موجودگي.

**شتهٔ من** : دولت مند، مالدار، د شتو خاوند.

**شتی** : د جوارو توکه، د تالاؤ د اوبو دپاسه د شین رنگ خگ.

**شتی** : غشے، شیتی، الوتونکے غشے، د آتش بازی یو لمبکه.

**شجاع** : زړهٔ ور، بهادر، دلاور، شجاعت مند،

**شجاعت** : زړورتیا، تورزني، بهادري.
**شجر** : ونه، درخته.
**شجره** : اصلي معنیٰ ونه. نسب نامه، د یو خاندان د نومونو سلسله وار فهرست.
**شخار** : د مالش دپاره پکاریدونکي دارو، بت، بتي، استخار، اشقار.
**شخوه** : جنجال، نښته، فساد. کنه کوږه، عبث.
**شخص** : کس، تن، نفر، فرد.
**شخصي** : د یو فرد لاندې نظام حکومت، ذاتي،
**شخصیت**: سرپتوب، وقار، عزت.
**شخوند** : د خوراک څیز په غاښونو میده کونه.
**شد** : هغه علامت چې د هغې په وجه یو حرف دوه ځله ادا کیږي، لکه تردد، مکرر.
**شدبد** : عقل، هوش، فکر، پوهه.
**شدت** : سختي، تیزي، تندي.
**شدیاره** : هغه زمکه چې د کرلو دپاره تیاره شوې وي. شدیاره، سادین شوې.
**شدید** : سخت، مضبوط، مشکل.
**شلهل** : ناراسته، کاهل. بې ډبه، ناړامه، ناوینځلې، خړخړتوکې. بې دانو وږې شاړ، شاړ شپاړ. د نرم او مهین متضاد. ناتراشلې، ځیګ، کلک، ستغ.
**شر** : شرارت، جنګ، جګړه.
**شراب** : بوزه، بدهال، نشه، مې، یو نشئیز شربت، د انګورو نه ایستلې شوې اوبهٔ چې د نشې دپاره استعمالیږي.
**شرابي** : شراب څښونکې، د شرابو عادي. د شرابو خوند یا رنګ لرونکې.
**شرارت** : بدي، شیطانې

شر، ورانے، پیلات، فتنه.
**شرارتي** : شرارت کونکے، پیلاتي.
**شرافت** : اصالت. عزت. ښهٔ سریتوب، شائسته، ښهٔ اخلاق.
**شراکت** : شریک کیدنه، ګډون، یو والے.
**شراکتي** : په کاروبار کښې شریک. شریکوال، برخه خور، حصه دار، ملګرے، انډیوال.
**شربت** : خوږې اوبهٔ. رشوت، بډې.
**شرح** : بیان، ښوونه، معنيٰ، تفسیر.
**شرر** : بڅرکے، سپنکے، شراره، سپرغی.
**شرشائي** : د پخوانی زمانې د وزن پیمانه. لږ څیز.
**شرط** : بازي، قول او اقرار، وعده، د یو کار په مقابله کښې د بل کار کولو وعده. قاعده، دستور.
**شرع** : شرعه. هغه نیغه لار چې الله تعالیٰ پرې د تلو حکم ورکړے دے. اسلامي قانون، رښتونې لار.
**شرعي** : د شریعت په حقله، د شرعې سره متعلق.
**شرغشے** : یو قسم بوټے چې خوږوور او تیرهٔ تیرهٔ غشي لري. د شکونړ غشے، شلغشے.
**شرف** : عظمت، لوئي، لوے والے، بزرګي، خوبي، ښیګړه، عزت.
**شرق** : نمرخاتهٔ، مشرق.
**شرک** : د الله تعالیٰ سره شریک منل، شریکونه.
**شرکت** : شراکت، ملګرتیا، په څهٔ کار کښې برخه خوري، ګډون.
**شرم** : الزام، تهمت. خون بها، سپکاوے، ناموس.
**شرمسار** : شرمنده، پښیمان، نادم، خړ، پیکه، شرمیدلے.
**شرمښ** : لیوهٔ، ګرګ.

**شرمګاه :** د تشو متيازو ځاى.
**شرمناک :** شرميدونکى، حيادار، حياناک.
**شرمنده :** پښيمان، ملامته، شرميدلى، خيرجه، پيکه، خړ.
**شرمول :** شرمنده کول. خفه کول، غول.
**شرميدل :** نادمه کيدل، شرمنده کيدل، بدناميدل.
**شرنګ :** د پانزيب يا د توپک د ګولى اواز.
**شرنګا :** وګورئ شرنګهار.
**شرنګول :** د پانزيبو وغيره نه اواز ايستل، د تورو يا نورو داسې شيزونو د جنګيدو اواز چې د وسپنې يا د دې په شان شيز نه جوړ وي.
**شرنګهار :** د ګونګرو ګانو اواز، د جرس اواز، شرنګا، شرنګا.
**شرنګيدل :** شرنګيدل، د جرس يا پانزيبو اواز راوتل.
**شروع :** آغاز، ابتدا، اول،
**شري :** ورانکارى، چې هر وخت جنګ ته تيار وي. شرپسند.
**شريان :** هغه رګ چې له زړۀ نه د بدن نورو حصو ته وينه رسوي.
**شرير :** شرارت کونکى، شر خوښونکى.
**شريعت :** شرع، د قرآن او سنت اسلامي دستور او قانون.
**شريف :** شرافت لرونکى، ايماندار، نيک، ساهو.
**شريفه :** بلى. سرماتى، سربى، چتى، يوه ميوه چې دننه سره وي. د شريف مؤنث.
**شريک :** په څۀ کار کښې ملګرى، کرونده ګر، حصه دار. برخه خور چې زمکه خوک خوري. ګډ، يو ځاى. شريکوال، انډيوال.
**شريکه :** په ګډه، په خوکسي. د شراکت. چې د خو کسانو پکښې برخه وي. د ويشل شوي متضاد.

**شړے** : یو قسم ناروغي، د ماشومانو هغه مرض چې په ټول وجود ئ نرۍ نرۍ سرې دانې راوخيژي. خسره.
**شړ** : شاړ، شاړه، غير اباد، بنجر. بې حاصله، بې فائدي، بې توښې، یو قسم نل چې منځ ئ ډک وي.
**شړپ** : د اوبو توپولو اواز، شړپا، شړپار.
**شړپول** : اوبو ته حرکت ورکول.
**شړپهار** : شړار، د شړپ شړپ مسلسل اواز.
**شړپيدل** : د اوبو د حرکت اواز وتل، په اوبو کښې چپې راتلل.
**شړت** : مړاوے، سست.
**شړشم** : یو قسم تخم چې تيل ترې وځي او پاڼې ئ د ساګ په طور پخولے شي.
**شړق** : د څـه څيز د راغورځيدو يا د ماتيدو اواز. په چابک يا کروړه د وهلو اواز، د ګوزار اواز، شړک، د باران چړق، ناګهاني آفت.
**شړق شيبه** : تيز باران.
**شړل** : لـه کـوره يا لـه ځانه لرې کول، اخوا کول، رټل.
**شړنګول** : شړنګول، د څه څيز نه د شړنګ اواز وښکل.
**شړنګيدل** : شړنګيدل، د شړنګ شړنګ اواز ايستلے کيدل.
**شړيور** : شړی په سرونکے، ساده.
**شړی** : د وړی يا بزو د ويښتو نه جوړ شوے څادر، کمبل.
**شست** : پـه ګوتـه کښې لګيدلې آئينه.
**شش و پنج** : حيراني.
**شعار** : عادت، طور، طريقه، چال، لاره.
**شعاع** : د نمر ځړيکه.
**شعبان** : د قمري کال اتمه مياشت، د شوقدر مياشت،
**شعبده** : دوکه بازي، جادو،

تماشه، مکر، چال، فن.
**شعبه** : شاخ، حصه ټوکړه، محکمه، څانګه.
**شعر** : هغه موزون کلام چې په اراده ووئيلے شي او قافيه لري. بيت.
**شعله** : شغله، د اور لمبه.
**شعور** : عقل، پوهه، فهم، تميز، سوچ.
**شغال** : ګيدړ، چغال.
**شغالي** : بې عزتي، بې غيرتي.
**شغرب** : مشرق، شرق، نمرخاته، ختيځ، لرې ځاے.
**شغف** : محبت، شوق، اشتياق.
**شغل** : مصروفيت، کار.
**شفا** : رغيدنه، روغيدنه، صحت، تندرستي.
**شفاخانه** : د علاج ځاے، هسپتال، روغتون.
**شفاعت** : سفارش، د ګناهونو د معافي سفارش چې د رسول کريم صلي الله عليه وسلم سره مخصوص دے.
**شفاف** : ډير زيات سپين، ډير صفا، روڼ، ځليدونکے، هغه څيز چې رڼا ترې پورې راپورې وځي.
**شفتالو** : يوه ونه او د هغې ميوه، شلتالو.
**شفتل** : شوتل، يو قسم واښه چې څاروو ته ورکولے شي.
**شفق** : د سحر او ماښام په وخت کښې په افق ښکاره کيدونکې سرخې.
**شفقت** : مينه، محبت، مهرباني، رحم.
**شفه** : شفعه، د اسلامي قانون مطابق هغه حق چې د کور يا زمکې په خرڅولو د ګاونډ يا شرکت په وجه حاصليږي.
**شفيع** : شفاعت کونکے،
**شفيق** : مهربانه، شفقت کونکے، همدرد، رحمدل،
**شقي** : بدبخت، بد نصيب، د سعيد متضاد.
**شک** : ګومان، شبه.
**شکاڼ** : شکوڼ، يو څناور

چې په بدن ئ تیرهٔ تیرهٔ غشي وي.
**شکایت** : ګیله، شکوه،
**شُکر** : د څهٔ نیکی په بدل کښې د خپل محسن د احسان یادونه. شکریه، مهرباني.
**شکر** : چیني، خوارهٔ،
**شکرانه** : شکر ګزاري. منښته ورکونه، نذرانه، خیرات، د یو کار مزدوري.
**شکرګوزار** : نیکي منونکے، احسان منونکے، احسان من.
**شکرلب** : د خوږو شونډو خاوند، محبوب، معشوق.
**شکره** : د ګوړې چوره، میده ګوړه، تري، خړ رنګې چیني، یو خیرونکے مارغهٔ، اشکره،
**شکریه** : شکر، تشکر، مهرباني، د چا د مهرباني او احسان شکر ادا کونه.
**شکری** : له میزري جوړه ټوکری.

**شکرے** : له میزري جوړ شکور.
**شکست** : ماتے، تښتیدنه، میدان پریښودنه، بیلاټ.
**شکسته** : شلیدلے، مات، کمزورے.
**شکل** : مخ، صورت، څهره. وندر، پلواکه، غړوندے.
**شکلی** : شمله. د دستار څونډے.
**شکم** : ګیډه، خیټه، نس، تار.
**شکمن** : ګومان کونکے، ګوماني، شکي، شک کونکے.
**شکن** : ماتونکے، تباه کونکے، په مرکباتو کښې د لاحقې په توګه استعمالیږي لکه بت شکن، دندان شکن.
**شکنجه** : سکنجه، پانه، لومه، پنجره.
**شکور** : د روټو کیښودو شکرے.
**شکول** : شوکول، شلول، څیرې کول، بڅه کول،

لوخول، د چا نه مال، کالي وغیره اخستل، راجدا کول، بیلول.
**شکونړ :** یو ځناور چې په بدن ئ تیرۀ تیرۀ غشي وي او د خطرې په وخت ترې کار اخلي، خارپشت، خارپښت.
**شکوه :** ګیله، ګله، شکایت.
**شکوه :** رعب، دبدبه، شان، دبدب، پرتم.
**شکي :** ګومان کونکے، شک کونکے،
**شکیه :** د شک، شک څرګندونکے، د ګومان.
**شکیدل :** شلیدل، شوکیدل، پریکړے کیدل، څیرې کیدل، تار تار کیدل.
**شګاف :** چوَد، چاود، درز.
**شګفته :** غوړیدلے.
**شګلن :** شګن، د شګو جوړ، شګه لرونکے، شګلوړې.
**شګن :** وګورئ شګلن.
**شګوفه :** د ګل کلی، د ګل غوټی.
**شګون :** فال، پیش خبري، نیک فال، پال.
**شګه :** د کاڼي انتهائي وړو وړو ذرو مجموعه. ریګ، ډبه.
**شل :** د نولسو او یو ویشتو تر منځ عدد.
**شل :** هغه انسان چې لاسونه پښې ئ بیکاره وي، ګوزني. بنجر، لـلمه، چې زرغونه نۀ کوي.
**شل :** نیزه، برچی، هغه توره شان چې سر ئ تیرۀ او غونډ وتلے وي. خنجر، شلګے مغروره،
**شلانتـهـه :** سمسره، د کربورې پـه شکل یو ځناور چې تیل ئ د مالش پـه دارو کښې پکارولے شي.
**شلانډه :** خادمی، خدامه، سمسره، سلانډه، شلانته. چیندخ.
**شلتالو :** شفتالو، یوه ونه او د هغې میوه.
**شلتې :** هغه اوربشې چې لا

د پوستکي نه راوتې نهٔ وي. نا سپيني کړې اوربشې.

**شلخې** : ديسي توپک، بناوټي څيز، ديسي، نقلي څيز.

**شلخې** : چلخې، يو بوټې چې د غوا د ژبې په شان وړدې وړدې پاڼې نيسي څاروي ئې هم خوري او ساګ ترې هم پخولې شي. ګاؤ زبان.

**شلغم** : ټيپر، بنګړي، منګرېټې، يو قسم سبزي.

**شل ګوډ** : په لاس پښو معذور.

**شلګې** : بلم، د شل نه وړه وسله چې تيزه او نرۍ څوکه ئې وي. وړوکې تبر چې ملنګان ئې ځان سره ګرځوي.

**شلم** : د نولسم او يوويشم ترمنځ عددي صفت

**شلنډ** : غټ، تازه، څرب، غټ پټ، تيار،

**شلول** : يړه کول، څيرې کول.

**شلوم** : د کچو د ويلې کولو نه پاتې خيرې.

**شله** : د څاروي د يو خاص قسم وازدې يا د ګډ د لم نه ايستلې شوې غوړي.

**شليدل** : د څهٔ ناروغی په وجه د لاس يا پښې ناکاره کيدل، شل کيدل. پرې کيدل، کټ کيدل، څيرې کيدل.

**شلې** : هغه څوک چې پښې يا لاس ئې بيکاره وي.

**شمار** : شمير، ګنتي، تعداد، ګڼنه. نوکري.

**شمارل** : شميرل، حسابول، ګڼل.

**شمال** : د قطب طرف، د قبلې په طرف د مخ لرونکي د ښي لاس طرف.

**شمال** : نرې باد، نرۍ هوا

**شمائل** : خدوخال، شکل و صورت، رغونه. عادتونه، خصلتونه.

**شمس** : نمر، آفتاب، نور

**شمسي** : شمس سره منسوب. لمریز، نمریز.
**شمشاد** : یو ونه چې ډیره وچته وي.
**شمشتی** : شکرتانے، شخنتی، د اوبو یو ځناور.
**شمشیر** : توره، تیغ.
**شمع** : د مومو باتی، شمه، شم.
**شمکلے** : د پټکي یا څادر څوکو ته شوے څونډے. هغه تیګړے چې د ژرندې د پل نه پرې د اوړو دوړه راپاکولے شي. آسیاپاک، پاتې شوے څیز، پاتې شونې.
**شمکور** : هغه څوک چې د شپې ئ نظر نهٔ لګي.
**شمګے** : یو تریخ بوټے چې په دارو کښې پکارولے شي.
**شمله** : د پټکي جغه، طره، کتهوه، شکلی، شلکے، د پټکي هغه برخه چې وچته ولاړه وي.
**شموخه** : هغه ګیاه چې په شولو او مکیو کښې عام طور سره کیږي، شمخه، شماخه.
**شمول** : شمولیت، شاملیدنه، شریکیدنه، شرکت.
**شمولیت** : وګورئ شمول.
**شمیم** : خوشبوداره هوا.
**شمیر** : شماره، تعداد، حساب، حسابه.
**شمیرل** : شمیر کول، شمارل، تعداد لګول، حساب کول، ګڼل.
**شناخت** : پیژندګلو، تعارف.
**شناخته** : بناځه، هغه تخته چې د قبر په سر لګیدلې وي او د مړي نوم او تاریخ وفات پرې لیکلے وي.
**شناز** : د لامبو دپاره پکاریدونکے مشک چې د هوا نه ډک وي.
**شناس** : یوه لاحقه چې د پیژندګلو معنیٰ ورکوي.
**شناسا** : پیژندونکے، بلد.
**شنده** : فضول خبره.

مسخره. زيات خرچ، اسراف.
کانه، ظلم، جبر، زور.
**شنډ :** بې حاصله، بې فائدې، بې اولاده، ميوه نه لرونکې ونه، بې نتيجې.
**شنډېدل :** بې حاصله کېدل، بې فائدې کېدل، بې اولاده کېدل، له اولاده پاتې کېدل، د ونې ميوه نهٔ نيول.
**شنقار :** شنقر، يو ښکاري مارغهٔ، باز.
**شنل :** لټول، پلټل، تالاشي کول. تار تار کول، شنول، شيندل، کينل، کينودل.
**شنوبې :** شوملې، شړومبې، تروې.
**شنه :** د شين مؤنث.
**شنه ګوشنه :** تکه شنه.
**شنه زرغنه :** د بوډۍ ټال،
**شنهول :** بوټ خوزول، ځنډل، اس هينهول.
**شنهېدل :** خوزېدل، د اس ځرړېدل.
**شواخون :** تکليف، مصيبت، ځيګرخون.
**شواروز :** شپه او ورځ، شب او روز. د اوبهٔ خور يوه پيمانه چې په وقفه وقفه کښې ځليرشت ګنټو دپاره د زمکې د اوبهٔ کولو دپاره مقرر شوې وي.
**شواشو :** شپه په شپه، بغير له ايسارتيا، متواتر.
**شوال :** د وارهٔ اختر مياشت، د هجري قمري کال په رمضان پسې مياشت.
**شوبله :** هغه لښتے چې د زيمنداکې زمکې د وچولو دپاره ايستے شوے وي. د اوبو وله. هغه اوبهٔ چې په سيند کښې چرې چرې او لښتي لښتي بهيږي.
**شوپړ :** بې ډوله، شاړشبړ، جاهل، ناسنته.
**شوتل :** شفتل، يو قسم ګياه چې د څاروو د خوراک دپاره کرلے شي.
**شوتے :** هغه يوه ليشت

لرګے چې د نهٔ نینګاړو په لوبه کښې پکارولے شي. هغه یوه لیشت لرګے چې د شوتي ډنډۍ په لوبه کښې استعمالیږي.
**شوتي ډنډۍ** : د ماشومانو هلکانو یوه لوبه.
**شوخ** : بیباک، شریر، بې حیا، کلک ستر ګے، د رنګ د صفت په طور ئ معنې کښې شدت پیدا کوي.
**شوخول** : په عذابول، چیړل، خرابول.
**شوخي** : شرارت، سرتیزي، بې ادبي، چالاکي، د رنګ سره د استعمال په معنو کښې د هغه رنګ شدت.
**شودهٔ** : پې، د ځناورو له غلانځو نه وتونکې سپینه مائع چې د دغو ځناورو بچي پرې پرورش مومي. د ځنو بوټو نه وتونکے رس.
**شوده** : کم عقل، بې وقوف، ساده. لوچه، بدمعاش.
**شـور** : پـه زوره اواز، زوږ، جنګ جګړه، خبرې اړونه.
**شورپکړ** : شورشار، توربیخ، شورشغرب، هئ سوران، ګړبړ، شـورغـوغـا، شـورمـاشور، الـه ګوله، شورزوږ، غال مغال، درز غوبل.
**شورغوغا** : وګورئ شور پکړ.
**شورو** : د چارشنبې ورځ، ابتدا، شروع، اغاز.
**شوروَل** : حرکت ورکول، کرځول، خوځول، ګډول، په نخا کول.
**شورۍ** : جرګه، غونډه.
**شوړه** : د لوښو د پاکولو دپاره د وښو یا کپړې بوږ، د تنګې خلې د لوښې د بندولو دپاره پکاریدونکے د وښو یا کپړې بوجه.
**شـوک شـوک** : پـاره پاره، ټکړه ټکړه، بڅه بڅه.
**شوشه** : د دروغو خبره.
**شوق** : ارزو، تـمـنـا، هڅه، اشتیـاق، شـغـل، مشـغولیت،

اشتها، نفساني خواهش.
**شوقدر** : شب قدر. د شعبان د میاشتې پنځلسمه شپه. د روژې نه مخکښې میاشت، د هجري قمري کال اتمه میاشت.
**شوقمن** : شوقي، شوقین، شوق لرونکے، خواهشمند،
**شوقین** : شوق لرونکے، شوقي.
**شوکاره** : نوکاره، سکونډاره، ټونګاره، ټونګه.
**شوکمار** : هغه خوک چې لارې وهي، لوټمار، په زور د چا نه څۀ اخستونکے.
**شوکول** : له ونې، بوټي یا بل داسې څیز نه میوه، ګل یا پاڼې راتروړل، جدا کول، لاره وهل، شکول.
**شوکه** : لار وهنه، تروړنه، جدا کونه.
**شوکیدل** : په لاره کښې لوټ کیدل، تروړلے کیدل، پریکیدل، جدا کیدل.
**شوګیر** : شپه په ویښه تیرونه، شوګیره.
**شوګیره** : وګورئ شوګیر.
**شولک** : بشره، شولخ، خور، پوټ، پوټکے، شولګ، څرمن.
**شولګره** : د شولو کرلو زمکه، هغه زمکه چې شولې پکښې کرلے شي. شالیزاره.
**شولې** : د وریژو فصل، هغه وریژې چې سپینې کړے شوې نۀ وي.
**شوم** : کنجوس، بخیل، د سخي متضاد.
**شوم شغال** : بخیل، کنجوس.
**شومل** : ښل، ګوټ کول.
**شومله** : تروه، شومړه، شومړې، تروې، شوملې.
**شوملې** : شرومبې، تروې،
**شومه** : په مړي پسې د وړومبۍ شپې خیرات. ارګانه، نفقه، خوړه. د نیمې شپې خاموشي،

**شومه دم :** نیمه شپه، خاموشه شپه.
**شونتي :** د ښیترو د لرګي ټوټه چې د رڼا دپاره پکارولے شي.
**شونډ :** سونډ، جنجن، یو قسم کورنـي دارو. خرتم، سونډ.
**شونډان :** عام طور سره غټو غټو شونډو ته وئیلے شي.
**شونډه :** د خلې بهر پاسنی او لاندینی حصه.
**شونے :** ممکن، کیدونکے.
**شوه :** یو قسم سخته او کلکه ونه چې لرګے ئې عام طور سره په فرنیچر کښې پکارولے شي.
**شها :** دلبر، معشوقه، محبوبه.
**شهاب :** یوه زر فنا کیدونکې شعله چې د شپې په فضا کښې ښکارېږي، مات ستورے.
**شهادت :** د الله پـه لاره کښې قربانیدنه، ګواهي.
**شهباز :** یو ښکاري مارغۀ، باز. د رباب مخصوص د لرګي یا پلاستیک پترے چې رباب پرې غږولے شي.
**شهتوت :** شاتوت، د توت یو قسم چې میوه ئې وړه او د توت په نسبت زیاته خوږه وي.
**شهتیر :** شاتیر، غټ تیر.
**شهد :** شات، ګبین، ګبینۀ.
**شهرت :** مشهوریدنه، نوم کیدنه، څرګندیدنه، ښکاره کیدنه، پیژندنه، سوانح.
**شهریار :** د ښار فرمان روا، ټولواک، بادشاه.
**شهزادګی :** د بادشاه لور، د شاه لور.
**شهزاده :** د بادشاه ځوے.
**شهکار :** وګورئ شاهکار.
**شهلا :** محبوبا، ښائسته سترګې لرونکې.
**شهنائي :** سرنا، سورنا، د موسیقی یوه لرګینه آله.
**شهند :** شاهین، یو ښکاري مارغۀ.

**شهسوار** : د اس د سورلی ماهر. د شاه د سورلی اس.
**شهوت** : منې، د ملا اوبهٔ. جماع ته زړهٔ کیدنه، کوروالي ته زړهٔ کیدنه، زیات شوق، د لذت د درک میل.
**شهوتناک** : ډیر زیات شهوت لرونکے، له شهوته ډک، شهوتي.
**شهید** : د الله تعالي په لاره کښې په غزا کښې وژلے شوے، برناحقه وژلے شوے. حاضر، شاهد، خبردار.
**شهی** : شها، معشوقه، محبوبه.
**شیر خوار** : پئ رودونکے ماشوم.
**شیروالي** : یو خاص قسم وړده چوغه.
**شیره** : لیتهی، اتوب. د میوؤ نه ایستلے شوې اوبهٔ. جوس، کبوړے، عصاره. ګډوډې شوملې او پئ، خریړے. د کوټلو دانو او غلو مغز چې په اوبو کښې وویستلے شي.
**شیرین** : خوږ، ډیر خوږ.
**شیریني** : خوارهٔ، خوارهٔ څیزونه، متهائي.
**شیش** : ګوزار، نښه، ګل جړی، دار، څیله، زړے.
**شیشکه** : بوت، یو هیبت ناک شے. سړي خوره، جادوګره، پیریانی، بلا، بلاشیشکه، پواړه ښځه. بدشکله.
**شیشم** : وګورئ شوه. یوه ونه.
**شیشه** : وګورئ ښیښه.
**شیعه** : اهل تشیع.
**شیګره** : باران. د باران تیزه شیبه.
**شیګړه** : شیګاړه، متیزه، تبنتیدلې جینی یا ښځه.
**شین** : تهوکیدلے، زرغون، تازه. بې وریځو اسمان. د بدن د یو اندام په ګوزار تغمه کیدنه. د ډیرې خندا په وجه د مخ رنګ بدلیدنه. شین

خـال، د اسـمـان رنگ، د يو خط نوم.
**شين** : د پښتو د حرف "ش" تلفظ.
**شينيبې** : شوملې شړومبې، تروې.
**شين تـغ** : يو قسم شين مـارغـهٔ، چې د تـغ تـغ اواز کوي. شين تاغے، شين تاغ.
**شيندل** : نوستل، خوروڵ، شندل.
**شين زمرے** : زړور سړے، بهادر، دلاور. هغه زمرے چې په وجود ئ کرښې نهٔ وي.
**شيـنـکے** : د شيـن اسـم تـصغير. سبزه زار، چمن، شنهٔ وابنهٔ، شين رنګ،
**شين زرغن** : د بوډۍ تال.
**شينولے** : بلورے، مړدکے.
**شيوا** : فـصيح، بليغ، روان، فصاحت لرونکے.
**شي** : د چرګو شړلو اواز.
**شيبـره** : مسـلسـل تبـه، يو مخيزه تبه، لويه تبه، سره تبه.
**شيبـه** : لـږ وخـت، لـحظـه، مسلسل باران، ترله، تړه.
**شيـخ** : سپيـن ږيـرے، بـوډا، زوړ. پـوه سـړے، سـردار، پير، مـرشـد. پـه شـرعي علومو، طريقت او حقيقت کښې کمال تـه رسيدلے، مسـلمان شوے هندو.
**شيدا** : مئين، عاشق.
**شيرازه** : د قـلعه د ديوال نه ګيـرچاپيـره تـاؤ بـل ديوال يا احاطه. د کتاب مضبوطولو او ښکلا دپـاره پـه رنګينـه او ريښمين تار ګنډنه.
**شيـرازه** : د مستو چـکـه، چکه.
**شيـطان** : ابـلـيـس، عزازيل، دوکـه ورکـونـکـے، سرکښه، حـکـم نهٔ منونکے، مضر انسان، بد او قبيح سړے.
**شيوه** : طرز، دستور، رواج، خـوبي، هنر، ناز، مکيز، د اس اواز. د اس هنيدنه. ښيوه.
**شـے** : څيز، توکے.

**ښ** : (ښین) د پښتو ژبې د حروف تهجي خپل مخصوص درویشتم حرف، د ابجدو په حساب ئ شمیر د "ش" برابر یعنې درې سوه دے.

**ښاپیرک** : ښاپیرکے، چمګادړ، پوپے، اسمان څکالے، شوپرک، شب پرک.

**ښاپیرۍ** : ښاپیرے، یو فرضي مخلوق چې ډیر ښائسته ګڼلے کیږي. ښائسته، ښکلے.

**ښاپیرے** : د ښاپیرۍ مذکر.

**ښاخ** : څانګه، شاخ، نسل، سلسله.

**ښاخه** : د پیاده خلقو لاره، پوله، د دوؤ پټو ترمنځه نرۍ لار.

**ښاخي** : ښانګي، شاخي، درې ښاخي.

**ښاد** : کامران، کامیاب، بامراده، آباد.

**ښاد اباد** : مور پټ، خوشحاله، ودان، په مزو کښې،

**ښادمن** : کامیابه، خوشحاله، بامراده، مرادمن، بختور.

**ښادي** : وادهٔ، ابادي، خوشحالي، خوښي.

**ښادے** : د پښتنو په څنو قبیلو کښې یوه مخصوصه سندره چې د خوشحالۍ په موقع وئیلے شي.

**ښار** : ګڼه ابادي او بازار، ښهر، شهر، ښاریه.

**ښارک** : د لړکي وړه ټوټه چې د میچنې تیر پکښې ګرځي. د لرګي ټوټه چې د شوملو په چاټي پرته وي او منداڼو پکښې ګرځي.

**ښارګے** : وارخطا، بې هوشه، د ښار اسم تصغیر.

**ښارو** : تور رنګ لرونکې یوه مرغۍ، شارو، مینا، زرګره، مینکه، ښارونی. د چرک په ښېنه کښې یو

نوک چې د جنګ په وخت پرې بل چرګ زخمي کوي.
**ښارونې** : وګورئ ښارو.
**ښاغلے** : معزز، محترم، عزتمند، ښائسته، قدرمن، ستائيلے شوے، د ستائنې وړ، ښاګلے، شاغلے.
**ښامار** : غټ مار، اژدها، اجګر.
**ښانک** : د خاورې يا لرګي لوے پرات چې اوړو اغږلو او جامو وينځلو دپاره پکارولے شي.
**ښانکے** : د ښانک اسم تصغير.
**ښانګه** : وررون، پتون، پښه، لينګے، مغانه، د پتون او د ګيډې جوړ.
**ښانګې وانګې** : ويړ واړ، وران ويجاړ، تتربتر، خوروور، انګې انګې، ليتاړې ليتاړې، بې ترتيبه، سست پست.
**ښانګې** : شانګې، شاخې، درې ښاخې، سکو.
**ښائست** : حسن، زيبائي، شائست، ښکلے والے.
**ښائسته** : ښکلے، زيبا، حسين، پيمخے.
**ښائي** : پکار دي، بايد، جائز، بويه، خامخا.
**ښپه** : د مغانې نه تر پنجې پورې د وجود اندام، پښه، خپه.
**ښپې** : د کندو د لاندې واړهٔ واړهٔ تاخونه چې چرګې پکښې اګې اچوي يا پکښې سامان ايښودے شي.
**ښپې ابله** : چې پيزار ئې په پښو نهٔ وي، يله پښې، لوڅې پښې.
**ښپې ارته** : پښې ارته، د کوژدن نه پس د جينۍ د کور د خلقو د هلک کره سره د جامو تحفو تلنه،
**ښځرنګے** : د ښځو په شان، د ښځو په شير. جينوټارے، جينۍ ډولے، جينۍ خولے، ښځونک، ښځوکے،

**ښځوتاړے** : وګوره ښځرنګے
**ښځولک** : د ښځو په شان عادتونه لرونکے، ښځرنګے، ښځونک، ښځوتاړے، د ښځو غوندې، بې خونده، بې غیرته
**ښځونک** : وګوره ښځرنګے.
**ښځه** : د سړي ماده، د سړي مؤنث زنانه، ارتینه، عورته.
**ښځینه** : د ښځو متعلق، د ښځو.
**ښخ** : زمکه کښې پټ کړے، بوخت، انښتے، نښتے.
**ښخول** : په زمکه کښې پټول، دفن کول، ډوبول،
**ښخه** : د ښخ مؤنث، خزانه.
**ښکار** : د مرغانو یا ځناورو نیونه یا ویشتنه.
**ښکارزن** : ښکاري.
**ښکاره** : ظاهر، څرګند، په ډاګه، واضح.
**ښکاریدل** : په نښه کیدل، څرګندیدل، معلومیدل، ښکاره کیدل، په نظر راتلل، بربنډیدل.
**ښکالو** : د پښو اواز، کش کرپ، ګنګوسے، پس پسے، سرګوشي، علامه، اثر، نښه.
**ښکانځه** : زیړه، کنځل، بکواس، سپکه وینا، بده وینا، شکانځه، بدرد.
**ښکتنے** : د ښکته، ښکته، لاندینے.
**ښکته** : لاندې، ښکتنے، زیرین، مغلوب.
**ښکر** : د غوئي، سنډا، چیلی وغیره په سر کښې راختلے د هډوکي سخت ښاخ. د نائي د یو کالي نامه چې د وهلي رګ نه پرې وینه وباسي.
**ښکرور** : ښکري، چې ښکرونه لري، د ښکرونو خاوند، طاقتور، ښاخور.
**ښکل** : کښل، لیکل، تحریرول، ایستل، ختمول، د

څۀ کار نه ایستل. پپه اخستل، کوکې اخستل، مچي کول،
**ښکلا :** حسن، زیبائي، ښائست.
**ښکلول :** چپ کول، چومل، پپې اخستل، کوکې اخستل، ښائسته کول.
**ښکلے :** ښائسته، حسین، پیمخې.
**ښکنځا:** کنځل، بدرد، ښکنځل، زیړې، دشنام، سپورې ستغې.
**ښکنځل :** زیړې کول، کنځلې کول، سپکول.
**ښکیه :** لاندې، کوز، لر.
**ښکیل :** تړلے، ګیر، بندیوان، راایسار، بې وسه، مجبور.
**ښنځه :** یو قسم دانه، ننکی، ښنجکی.
**ښنګړے :** سم، ګیتې، پړکے، شنګړے، ښونګړے،
**ښودل :** په ګوته کول، څرګندول، ښکاره کول، ښئیل.
**ښودنه :** ښئیل کول، ښکاره کول.
**ښوروا :** شوروا، شوربا،
**ښوروول :** خوځول، حرکت ورکول، رپول، شیندل، خپرول.
**ښوره :** هغه زمکه چې فصل نۀ کوي، زیمناکه، مالګینه زمکه، هغه سره چې د خاورې سره ګډه شوې وي.
**ښوول :** ښئیل، تعلیم ورکول.
**ښوینده :** ښوینده ځاے، ښوے، ښویه، صاف، لشم، ښویندے. په ښوئیدو تلنه.
**ښویندے :** مهین، چې سړے پرې ښوئیږي.
**ښویول :** لغزول، یو څیز یا بنیادم له په زمکه یا بل څیز پورې په لګیدلې حالت کښې حرکت ورکول، په لوند یا روغني ځاے د چا پښې بې قابو کول، بې حوصلې کول،

وارخطا کول، گمراه کول، بې لارې کول.

**ښویه** : په هواره سره وئینه، روانی سره وئیل، مهین، اوار، هوار.

**ښویدل** : لغزیدل، د پښې له خپله ځایه په اسانی سره حرکت کول او د هغې په نتیجه کښې راپریوتل خاص طور سره په حادثاتي طور سره. گمراه کیدل، بې لارې کیدل.

**ښوی** : چاپلوس، دوه رنگے، دوه مخے، راشپیل، راشبیل، دړکے.

**ښه** : د ښهٔ مؤنث، قول، لوظ، وعده، تړیک.

**ښهٔ** : نیکي خوښونکے، نیکي پسند، نیک، ښیگړه، نیکي کونه.

**ښهٔ بد** : نیکي بدي، مال اسباب، مال متاع،

**ښهٔ چارے** : ستړي مشي، پخیر راغلے، د خیر خواهی اظهار.

**ښهر** : شهر، ښار،

**ښیښه** : شیشه، یو قسم واښهٔ چې په واورینو علاقو کښې کیږي.

**ښیل** : ښول، ښایل، په گوته کول.

**ښیم** : د زنگ یا خیري له کبله نښتے، جام، نښتے، جامد.

**ښینه** : د ښځې خور،

**ښیرا** : ازار، بد دعا، سپیرهٔ خلهٔ خوځول.

**ښیراز** : تازه، شاداب، سرسبز، څورب، صحت مند، خوشحال، اباد.

**ښیراز توب** : تازه والے، تازگي، ښیرازي، شادابي، څوربوالے، مستي، ترقي، خوشحالي

**ښیرازه** : وگورئ ښیراز.

**ښیرازي** : تازگي، شادابي، سرسبزي، خوشحالي، ترقي، ابادي.

**بنیره :** بددعا، ازار، بنیرا.
**بنیره پبش:** بنیرې کونکے، هغـه خوک چې هر وخت بنیرې کوي. بنیره پخ.
**بنیګړه :** نیـکي، ښهٔ، فائده، نفع ور کونه، احسان.
**بنیګنه :** وګورئ بنیګړه.
**بنیل :** بنودل، تعلیم ور کول.
**بنے :** د کین او ګس متضاد،
**بنے لاس :** د ګـــس لاس متـضـاد. سـم لاس، مددګار، ملګرے، معاون.

**ص** : (صاد) د حروف تهجي د پښتو څلیریشتم حرف چې د ابجدو په حساب نوي (۹۰) دی.

**صابر** : صبرناک، صبر کوونکی، د حارص متضاد، د صبر څښتن.

**صابون** : د وازدې یا د تیلو او نورو کیمیائي مرکباتو په یو ځای کولو یو مرکب چې د بدن او جامو دوارړو د صفایي دپاره پکارولی شي.

**صابون دانه** : د صابون د ایښودو لوښی.

**صابوني** : هغه توده او نرمه ګوره چې کړې نه اترې ته د راغورځولو په وخت ښه وټکولی شي او بیا د یو خاص شکل ور کولو نه پس او د وچې میوې د ګډولو نه پس د خوند دپاره خوړلی شي.

**صاحب** : ملګری، اشنا، دوست، صیب، مشر، سردار، حاکم، د تعظیم کلمه چې د خطاب په وخت د نوم سره لګولی شي. لرونکی، خاوند، قابض، لکه صاحب اخلاق.

**صادر** : جاري، جاري کړی شوی، نافذ کړی شوی، لیږلی شوی.

**صادق** : رښتونی، راستباز، رشتونی،

**صاعقه** : تندر، اسماني بجلي، تکه، خړسه.

**صاف** : صفا، سوتره.

**صافي** : د صفایی کپړه، هغه کپړه چې صفائي پرې کولی شي.

**صالح** : نیک، پرهیزګار، ښهٔ سړی، د یو پیغمبر نوم.

**صامت** : خاموش، چپ چاپ، غلی.

**صانع** : کاریګر، جوړونکی، صنع کوونکی.

**صائب** : محکم، نیغ، رښتونی، نیغ تلونکی، رسیدونکی.

**صائم** : روژه ساتونکی،

روژه دار، روژه په خلهٔ، هغه ثوک چې روژه ئ وي.
**صبا** : راتلونکې ورځ، سبا، سحر، باد سبا، نسیم.
**صبا بیګا** : سبا بیګا، سحر ماښام، شپه او ورځ، هر وخت.
**صباح** : صبا، سبا، سحر، ښکلے، ښائسته.
**صباحت** : ښائست، حسن، ښکلے والے.
**صباون** : سباون، د سبا علامه، د سحر هغه رڼا چې د سحر پیغام راوړي.
**صبح** : سحر، سبا.
**صبحدم** : د نمر د راختو نه مخکښې، سباوون، د سحر وخت.
**صبر** : زغم، برداشت، سکته، ودریدنه.
**صبرناک** : صابر، صبر کونکے، بردبار، حلیم طبع، دروند خوږ.
**صبرول** : منع کول، ودرول، ایسارول، تسلي ورکول، دلاسه ورکول.
**صبریدل** : تسلي کیدل، صبر کیدل، برداشت کیدل، ودریدل، منع کیدل.
**صبوري** : صبر، برداشت، تحمل.
**صحابه** : د حضرت محمد صلي الله علیه وسلم ملګري، د صحابي جمع.
**صحابي** : د صحابه واحد.
**صحاف**: کتاب ګنډونکے، جلد ساز، بائنډر،
**صحافت** : د اخبار یا رسالې سره متعلق کار، د صحافي کار.
**صحافي** : د صحافت کار کونکے.
**صحبت** : مجلس، میلس، ګپ شپ، خبرې اترې، ملګرتیا، دوستي، کوروالے، هم بستري، په شریکه پینډه جوړونه، د ډیرو کسانو سره یو ځاے روټۍ خوړنه.
**صحت** : روغوالے، جوړ

والے، ساز، تېک، روغه ستېه، روغ صورت.
**صحتمند** : روغ، جوړ، ساز، تېک، تندرست.
**صحرا** : بيديا، دشت، بيابان، شاړه، ډاګه.
**صحرائي** : د صحرا وسيدونکے. د صحرا سره نسبت لرونکے.
**صحن** : غولے، انګن، جوس.
**صحيح** : تېک، سم دم، بې غلطۍ، سالم، درست.
**صحيفه** : د کتاب ليکلې شوې صفحه، اخبار، خط.
**صدا** : اواز، نعره، غږ، ږغ.
**صدارت** : مشري، بزرګي، لوې والے.
**صدارتي** : د صدارت سره منسوب.
**صداقت** : اخلاص، رښتيا، رښتنولي. رښتينتوب، صادقي.
**صدبرګ** : سل پاڼې، يو قسم ګل چې سل پاڼې لري.
**صدر** : سينه، سردار، بزرګ، مشر، د ملک آئيني مشر، وچتوالے، دارالخلافه، د فوج د وسيدو ځاے.
**صدف** : سيپي، سيپ، کنجکه، يو وچت ځاے، د ديوال يا د غرهٔ څوکه يا د تولو نه وچت ځاے، وړه پياله چې شراب پکښې څښلے شي.
**صدق** : رښتيا، رشتيا، خلوص.
**صدقه** : خيرات، د راتلونکې بلا د مخ نيوې دپاره خيرات کونه.
**صدمه** : حادثه، دوک، واقعه، چاته غم رسيدنه،
**صديق** : رښتونے، ريښتونے، ډير رښتونے.
**صدي** : سل کاله، پيړۍ،
**صراحت** : ظاهرونه، وضاحت کونه، ښکاره کونه، څرګندتيا.
**صراحتاً** : په تفصيل سره، په ازاده طريقې سره.

**صراحي** : يو قسم كوزه چې غاړه ئې وړوکې ده او خلهٔ ئې تنګه وي او ويخ ئې غونډ او پلن وي خو څخځوړے ئې نۀ وي. وړد او ښائسته.
**صراط** : لار، ليـاره، ليار، د دوزخ د پاسه پُل.
**صراف** : فضول خرڅه، فضول خرچه، ډير خرڅ کونکے، د زرو سوداګر، د سرو زرو کاروبار کونکے، د کرنسي کاروبار کونکے.
**صرصر** : تيزه او ګرمه هوا. سيلي.
**صِرف** : خالي، فقط، ايله، خالص، مخلص، بس، محض، تش، يوائې.
**صَرف** : خرڅ کونه، خرچ کونه، بدلونه، التـه کونه، حادثه. د نحوې او صَرف علم، ګرامري علم، د ګرامر علم، د حروفو د حرکاتو د ادل بدل او اړونې رااړونې معلولومولو علم، ګرامري ګردان.
**صرفه** : کفايت، ايله، احتياط، دريغ، کم خرڅ کونه.
**صريح** : ظاهر، ښکاره، واضح، څرګند، روښانه.
**صريحا** : پـه ښکاره، پـه ظاهره.
**صرير** : د قلم د ليکلو اواز، د پښـو اواز، د دروازې د بندولو لرې کولو اواز.
**صعوبت** : سختي، مصيبت، سختته.
**صعود** : پورتـه ختنـه، د حساب د علم د يوې قاعدې نوم.
**صغرا** : وړه، د ټولو نه وړوکے څيز، د اهل منطق په اصطلاح کښې د شکل وړومبی قضيه.
**صغير** : وړوکے، وړوکے هلک،
**صف** : قطار، ترتيب، پره.
**صفا** : پاک، سوتره، پاک، سپيځلے، هوار
**صفا سوتره** : پاک ساک،

پاک صاف، سپین صفا، بیخي پاک، صاف سوتره.

**صفا صفا** : پاک پاک، بیخي صفا، سپین صفا، بالکل صفا، پاک ساک.

**صفائي** : پاکوالے، پاکي، پاکیزګي، سپیځلتوب. دلیل پیش کونه.

**صف بندي** : ترتیب، قطار جوړونه، صفونو له ترتیب ورکونه.

**صفت** : تعریف، خوبي، ستائینه، خاصیت، خصوصیت.

**صفتي** : د تعریف قابل، د صفت لائق، د ستائینې وړ.

**صفحه** : د کتاب د پاڼې یو مخ، یو طرف،

**صِفر** : نیشت، خالي، هیڅ، د حساب په علم کښې ئ علامت (٠) دے.

**صَفر** : د قمري کال دویمه میاشت، د چوری میاشت، د محرم نه وروستو میاشت، صفره، سپره.

**صفرا** : د زوړ طب مطابق د څلورو ګډوډ شویو توکو کښې د یو توکي نوم چې رنګ ئې زیړ وي. د یو رنځ نامه چې تروې تروې او شین رنګې باقی پکښې جاري وي.

**صلاح** : مشوره، مصلحت، نیکي، تجویز، اصلاح، اراده.

**صلاحیت** : قابلیت، اهلیت، موافقت، موزونیت.

**صلح** : راضي نامه، روغه جوړه.

**صلح صفائي** : روغه، صفائي کونه، د جګړې خاتمه، خبره سپینونه، لانجه هوارونه.

**صله** : بخښنه، انعام، ورکړه، بدل، بدله، عوض، بخشش، پیرزوئینه.

**صله رحمي** : ښهٔ سلوک.

**صلیب** : دار، پانسي، سولي،

**صلیبي** : د صلیب سره

متعلق.

**صمد** : بزرگ، مشر، بې نیازه، لوړ، وچت، بلند، د الله تعالیٰ صفتي نوم.

**صمصام** : توره، تیرهٔ توره.

**صمیم** : مخلص، رښتینے، د زړهٔ ملګرے.

**صناع** : کاریګر، جوړونکے، معمار، هنرمند.

**صناعت** : معماري، پیشه، کاریګري، کسب، هنرمندي.

**صنائع** : د صنعت جمع.

**صندل** : یو بوټے چې لرګے ئې ډیر خوشبو دار وي. چندڼ.

**صندوق** : بکسه، بکس، لاسي بکسه،

**صندوقچه** : وړوکے صندوق.

**صنعت** : کسب، پیشه، کاریګري.

**صنعتي** : د کار کسب، د هنر، د صنعت سره متعلق.

**صنف** : جنس، قسم، نوع.

**صنم** : بت، معشوق، محبوب.

**صنوبر** : دیار، نښتر، د چلغوزي بوټے.

**صواب** : سمے، درستي، روغوالے، درست، روغ.

**صوابدید** : رائ، مشوره، صلاح.

**صوبه** : د ملک لویه حصه، د ضلعو او ډویژنونو مجموعه.

**صوبه دار** : د صوبې اختیار من، د فوځ یا ملیشې عهدیدار.

**صوت** : اواز، نعره، چغه، غږ.

**صور** : شپیلی.

**صورت** : شکل، موشاده، مُشاده، تصویر، مثل، غوندې، وضع، ډول، شان، تدبیر، تجویز، موقع، انداز، قرینه، جامه، لباس، کړهٔ وړهٔ.

**صورتګر** : نقاش، تصویر جوړونکے، مصور.

**صوري** : مادي، ظاهري، معنوي.

**صوف** : وړی، یو قسم نرمه

کپړه.
**صوفي** : وړين لباس اغوستونکے، نيک، او پرهيز گاره، عابد، زاهد، د تصوف د لارې لاروے.
**صوفيانه** : روح سره متعلق، د مادې ضد، روحاني.
**صولت** : رعب، دبدبه، حمله، چپاؤ.
**صوم** : روژه.
**صومعه** : عبادت خانه، د عيسايانو د عبادت ځاے. لويه ټوپى.
**صهبا** : سرهٔ شراب، د سپينو انگورو شراب.
**صياد** : ښكاري، ښكار كونكے، معشوق.

**صيام** : د صوم جمع، روژې.
**صيانت** : نگراني، نگهباني، حفاظت.
**صيد** : ښکار، شکار.
**صيغه** : د فعل مختلف شکلونه چې د فاعل د جنس، شمير او حالت په وجه بدليږي رابدليږي. د شعيه گانو د نکاح رسم، ايجاب و قبول.
**صيف** : اوړے، د گرمى موسم.
**صيقل** : رڼونه، ځلکونه، ځلا ورکونه، زنگ لرې کونه، سپينونه، پالش ورکونه.
**صيقل گر** : روڼونكے، ځلونكے، پرقونكے، صيقل كونكے.

**ض :** (ضاد) د پښتو د حروف تهجـي د پټـې پـنځـويشتم حـرف. د ابجدو په حساب ئ شمير ۸۰۰ دے.

**ضابط :** حالات قابو کونکے، سـاتـنـلـوے، منتظم، ضبـط کونکے، کوتوال، د پوليس سپائي.

**ضال :** بې لارې، گمراه، خوئيدلے.

**ضامن :** هغه څوک چې د بـل چـا ذمـه واري واخلـي، ضمانت کونکے، ضمانتي.

**ضامني :** ضمانت، ذمه واري.

**ضائع :** بيکاره، بې فائدې، فضول، عبث. خراب.

**ضبط :** انتظام، قابو، پابندي، تړونه، اخستنه.

**ضخامت :** مضبوطوالے، مضبوطي، پيړوالے، جسامت، غټ والے.

**ضخيم :** غټ، پيړ، پـه جسامت کښې ډير.

**ضدي :** ضد کونکے، پـه خپلـه خبره ټينګ ولاړ، سر کش، اړي مار.

**ضدين :** پـه خلاف، مد مقابل، بالمقابل.

**ضرب :** وار، گوزار، زخم، خوږ، د حساب د علـم يوه قاعده.

**ضرب المثل :** د مثال په شان.

**ضربه :** گوزار، گزار، حمله، وار،

**ضرر :** نقصان، تاوان، تکليف، زيان، اذيت.

**ضرري :** نقصاني، ضرر رسونکے.

**ضرور :** خامخا، ارو مرو، په يقين سره.

**ضرورت :** حاجت، احتياج،

**ضروري :** خامخا، اهم،

**ضرير :** نابينا، ړوند.

**ضريع :** تريخ، زقوم، تريخ او بدبويه يو قسم گيا چې د سيند په غاړه ټوکيږي.

**ضعف** : کمزوري، ناتواني، بوډاتوب، کم علمي، جاهليت.
**ضعيف**: کمزورے، ناتوان، بوډا، کم علمه، جاهل.
**ضلالت** : گمراهي، بې لاروي.
**ضلع** : د صوبې يوه حصه.
**ضلع دار** : د تهرونو د محکمې منتظم، انتظام کونکے.
**ضم** : يو ځاے شوے، نښلولے شوے، ورتپلے شوے.
**ضمان** : ضمانت، ذمه واري اخستل، لاس ورکونه.
**ضمانت** : ذمه واري، ضامني، ذمه اخستل.
**ضمن** : لړ، بابت، سلسله، حقله، سره کيدنه، شموليت، شامليدنه، شرکت.
**ضمنا** : په حقله، په بابله، په لړ کښې، په سلسله کښې.
**ضمني** : د ضمن سره منسوب.
**ضمه** : پيش، پيښ د پيښ حرکت ( ُ ).
**ضمير** : د انسان دننه پټ صحيح فيصله کونکے يو روحاني قوت، هغه لفظ چې د اسم په ځاے استعماليږي.
**ضميمه** : زياتي لګولے شوے څيز، سيوا کړے شوے شے. هغه حصه چې د اصل څيز د پوره کيدو نه پس زياته کړې شي. هغه اشاعت چې د مقرره اشاعت نه علاوه د خاص ضرورت په وجه وکړې شي.
**ضوابط** : قواعد، دستور، طريقې، د ضابطې جمع.
**ضوطول** : يادول، شميرل، د خيالاتو احاطه کول، په ياد کښې راوستل، مشق کول.
**ضياء** : رڼا، د نمر رڼا.
**ضيافت** : ميلمستيا، ډوډۍ، بلنه، دعوت.
**ضيف** : ميلمه،
**ضيق** : تنګسيا، تکليف.

**ط** : (طوې) د پښتو حروف تهجي د پتهی شپږویشتم حرف د ابجدو په حساب ئ قیمت نهٔ (۹) دے.

**طاعت** : بندګي، د خدائے فرمان برداري.

**طاعون** : طاخون، تاوون، یوه متعدي ناروغي.

**طاق** : تاخ، محراب، د جفت متضاد، هوښیار، چالاک، ماهر، لاثاني، بې جوړې.

**طاقت** : زور، توان، وس، دم، قوت.

**طاقتور** : طاقت لرونکے، وس لرونکے، زوراور، طاقتمن.

**طاقچه** : تاخوړے، وړوکے طاق، درے،

**طالب** : غوښتونکے، طلب کونکے، طلبګار.

**طالح** : بدکرداره، بې لارې، بدنامه.

**طالع** : راختونکے، حصه، نصیب، قسمت.

**طالع من** : قسمتي، خوش قسمته، نصیب خور، قسمت خور.

**طامع** : لالچي، طمع کونکے، طمع لرونکے.

**طاؤس** : یو قسم ښائسته مارغهٔ، مور.

**طاهر** : پاک، صفا، پاکیزه، سپیځلے.

**طائر** : مارغهٔ.

**طائفه** : جماعت، ډله، ټولګے، ګروه، پره، جنبه، طبقه، د سندرغاړو او رقص کونکو ډله.

**طب** : د دوایانو او علاج علم، طبابت، علاج.

**طبابت** : طبیبي، حکمت، علاج.

**طباخ** : لنګري، اشپز، پخلے کونکے، باورچي.

**طباشیر** : یو قسم مشهوره دوائي.

**طباعت** : چپائي، چاپ کول، د چاپ عمل.

**طبع :** سرشت، طبیعت، خصلت، خوئ، چاپ، مهر لګول.
**طبعاً :** د خوئ خصلت متعلق، د مزاج متعلق، فطرتي، په طبع سره.
**طبق :** تالے، پیالی، تال، د ښناورو یوه بیماري، تخته، پلن څیز، درجه، منزل.
**طبقات :** د طبقې جمع، درجې، منزلونه، رتبې، پردې.
**طبقاتي :** د طبقات سره منسوب.
**طبقه :** ډله، پره، جماعت، درجه، رتبه، منزل.
**طبل :** نغاره، ډول، ډمامه.
**طبله :** د ساز غږولو آله، دو کړی، دوپړی.
**طبلی :** وړه طبله.
**طبي :** د طب په حقله، د طب متعلق.
**طبیب :** حکیم، د یوناني دوایانو په علم پوهه د طب ماهر.
**طبیبي :** طبابت، د حکمت کار، د طب متعلق.
**طبیعت :** خوئ خصلت، مزاج، طبع.
**طبیعتاً :** په طبع، په طبیعت سره، فطرتاً.
**طبیعي :** وګوری طبعي.
**طبیله :** اصطبل، طویله، د اسونو د تړلو ځاے، خیلخانه، د کور ټول افراد.
**طرار :** چالاک، تیرهٔ ژبے، ګنکپ، ګن کپ، ګنډ کپ.
**طراره :** مسته، چالاکه. د طرار مؤنث
**طراري :** تیزي، چالاکي، ګن کپي.
**طراز :** نقش و نګار، په کپړه بوټي او ګلونه، په مرکباتو کښې د کونکي په معنيٰ.
**طراوت :** تازګي، ښیرازي، لوندوالے.
**طرب :** سرور، خوشحالي، خوشالي، مستي، ښادي، خوښي.

**طربناکه** : مسته، خوشحاله، خوشاله.
**طرحه** : بنیاد، طریقه، اندازه، هغه مصرعه چې د هغې په وزن، ردیف، قافیه مختلف شاعران ارادتاً لیکل وکړي.
**طرز** : انداز، طریقه، طور.
**طرف** : لور، غاړه، ژی، مخه، ډډه، پلو، رو، اړخ، خوا.
**طرفدار** : معاون، حمایت کونکے، جانبدار، مرسته کونکے، ډډه کونکے،
**طرفداري** : جانبداري، حمایت، مرسته، تعاون، ډډه.
**طرفین** : دواړه طرفه، دواړه اړخه، دواړه فریقه،
**طره** : شمله، زلفې، کاکل، پیچکے، عجیبه خبره، یو قسم کالے.
**طریق** : لارې، قاعده، دستور، رواج، روش، مذهب.
**طریقت** : لار، مذهب، علم تصوف، د باطن تزکیه.
**طریقه**: چل، رو، لار، قاعده، ترکیب، .
**طشت** : تال، لوړے ښانک.
**طعام** : ډوډی، خوراک، اتام.
**طعن** : عیب راویستل، پیغور، طنز، طعنه.
**طعنه** : وکوریٔ طعن.
**طغیان** : سرکشي، زور زیاتے، ظلم.
**طغیاني** : د سیند راختل، چله، سیلاب، بغاوت، سرکشي. نافرماني.
**طفیل** : ذریعه، وسیله، باعث.
**طفیلي** : خوشامدګر، د بل په ډوډی لوړے شوے، تالي څټ،
**طلا** : سرهٔ زر، یو خاص قسم تیل چې په وجود مښلے کیږي. د سرو زرو نه جوړه یوه خاص سکه.
**طلاق** : ښځه پریښودنه،

ښځه د نکاح نه ازادونه.
**طلاقول** : طلاق ورکول، بیلول، جدا کول.
**طلاقي** : هغه سړے چې ښځې لـه ئ طلاق ورکړے وي. بې غیرته، دله، دوّس، دیوث.
**طلاقیدل** : طلاق کیدل، طلاق ورکړے کیدل، ښځه د خاوندہ ازادیدل.
**طلاوت** : تازګي، ښائست، زیبائي.
**طلائي** : د طلا سره منسوب، د سرو زرو سره منسوب.
**طلب** : غوښتنه، خواهش، تنخواه، ضرورت، په مرکباتو کښې د غوښتونکي په معنیٰ، دعوت.
**طلسم** : جادو، سحر، نظر بندي، تماشه، نا اشنا کار.
**طلوع** : ختنه، نمر ختل، نمر خریکه، د نمر سترګه ختل،
**طمطراق** : دبدبه، شان، شوکت.
**طمع** : اسره، لالچ، حرص، طمعه.
**طناب** : رسی، د خیمې پړے، هغه زمکه چې په کال کښې پکښې یو فصل کیږي. تناؤ.
**طناز** : ناز و ادا کونکے، ناز او نخرې کونکے،
**طنبور** : سیتار، د یو مشهور ساز نوم.
**طواف** : څـۀ نـه چاپیره تاویدل، د خانه کعبې نه تاویدنه.
**طوالت** : وږدوالے، زیاتوالے.
**طوائف** : ډمه، ګډیدونکې.
**طوبیٰ** : پاک، ډیر پاک، خیر، سعادت، خوښي، په جنت کښې د یوې ونې نوم.
**طور** : ډول، طرز، حالت، کیفیت، دود، دستور، رسم و رواج، روش.
**طُور** : د هغه غر نامه چې الله تعالي به پرې موسيٰ علیه

السلام سره راز کولو.
**طوطي** : یو وړده لکی لرونکې شین مارغهٔ چې د انسان په شان د خبرو زده کولو صلاحیت لري.
**طوطي موتي** : د ګرولے شوے واوړې رنګینه غونډان، چې ماشومان ئ خوري.
طوطي مرغي.
**طوفان** : سیلاب، نیز، خول، تیزه سیلی، واویلا، غوغا، الزام، تهمت، تباه، برباد.
**طوفان جال** : د کبانو نیولو لوے جال.
**طوفاني** : د طوفان سره منسوب.

**طوق** : غاړکی، له مری نه تاؤ پړے یا پټی، د غلامی پټی،
**طول** : وږدوالے، درازي، د وږدوالي فاصله.
**طولاني** : وږد، دراز.
**طومار** : نغښتے، سرګزشت، وږده قصه، وږد تحرير.
**طويل** : لوے، وږد، دراز.
**طهارت** : پاکي، صفائي، پاکیزګي.
**طهر** : د ښځې د پاکی ورځې، د حیض نه پاکیدنه.
**طیاره** : جهاز، جاز، الوتکه.
**طیب** : پاک، حلال، لذیذ.
**طینت** : طبیعت، طبع، خصلت، مزاج، خوئ بوئ.

**ظ** : (ظوې) د پښتو د پتې اوويشتم حرف دے. د ابجدو په حساب ئې شمير ۹۰۰ نهٔ سوه دے.

**ظالم** : بې رحمه، ظلم کونکے، زياتے کونکے.

**ظاهر** : ښکاره، واضح، په نظر راتلونکے، څرګند.

**ظاهراً** : په ظاهره، په ډاګه، په ښکاره، ظاهر سره متعلق.

**ظاهري** : ښکاره، څرګند، په ډاګه، د باطني متضاد.

**ظاهرداري** : ځان ښودنه، رياکاري، نمود،

**ظاهرول** : ښکاره کول، واضحه کول، څرګندول،

**ظاهريدل** : ښکاره کيدل، واضحه کيدل، ښکاره کيدل، څرګنديدل، په ډاګه کيدل.

**ظرافت** : خوش طبعي، ټوقې ټقالې، مسخرې، نخرې پيښنې.

**ظرف** : لوښے، حوصله، ګنجائش، ځاے کيدنه، استعداد، قابليت، چالاکي، زيرکي، هغه اسم چې د ځاے يا وخت معنيٰ ور کوي.

**ظرفيت** : حوصله، اهليت، استطاعت، طاقت.

**ظريف** : خوش طبعه، خوش مزاجه، ټوقمار، ټوقي، ګپي، د خندا خبرې او نخرې پيښنې کونکے.

**ظفر** : فتح، کاميابي، غلبه، ګټه.

**ظل** : سيورے، سايه.

**ظلال** : هغه څيز چې سيورے کوي.

**ظلم** : زياتے، زور، بې رحمي، زبردستي.

**ظلمات** : د ظلمت جمع، تيارې، تاريکي.

**ظلماني** : د ظلمت سره منسوب.

**ظلمت** : تيارهٔ، توره تيارهٔ،

**ظلوم** : لوے ظالم، ډير زيات، له حد نه وتونکے.

**ظن** : ګومان، خيال، شک،

اندازه، رایځ.

**ظهار** : د خاوند خپلې ښځې ته مور وئیل، یعنې ته په ما لکه د مور په شان حرامه یځ.

**ظهر** : شا، ملا،

**ظُهــر** : د زوال وخـــت، د ماسپښین وخت.

**ظهور** : ظـاهـریـدنه، ښکاره کیدنه.

**ظهیر** : مـعـاون، حـامـي، ملګرے، دوست.

**ع** : (عین) د پښتو د حروف تهجي اتویشتم حرف، د ابجدو په حساب ئ قیمت (۷۰) اویا دے.

**عابد** : عبادت کونکے، پارسا، نیک.

**عاجز** : بې وسه، ناچار، غریب.

**عاجزي** : بي وسي، غربت، ناچاري، کمزوري،

**عاجل** : تادي کونکے، جلدباز، حاضر، موجود.

**عاد** : هغه عدد چې یو معلوم عدد پوره تقسیم کړي.

**عادات** : د عادت جمع، خصلتونه، خویونه، عادتونه.

**عاد اعظم** : هغه لوے نه لوے عدد چې دوه یا دوؤ نه زیات عددونه پوره پوره تقسیم کړي.

**عادت** : خصلت، خوی، خوئ بوئ، طبیعت.

**عادتا** : په عادت سره، په طبیعت سره، د عادت مطابق.

**عادل** : عدل کونکے،

**عادي** : عادت، اموخته، بلد، معمولي.

**عار** : شرم، حیا، غیرت.

**عارض** : مخ، رخسار، اننګے، مخې ته راتلونکے، لاحق کیدونکے.

**عارضه** : ناجوړتیا، بیماري، رنځ، مرض.

**عارضي** : سرسري، د لږ وخت، اتفاقیه،

**عارف** : پوهیدونکے، خبردار، نیک انسان، خدا شناس.

**عاري** : بربنډ، خالي، تش، معذور، مجبور، عاجز، تنګ، بیوسه، هغه نثر چې نۀ مسجع وي او نۀ رنګین، ساده نثر.

**عاریت** : قرض، پور، غوښتنه.

**عاریتا** : د قرض په توګه، د څۀ وخت دپاره په پور.

**عاریتي** : عارضي، د لږ وخت دپاره قرض غوښتلے

شوي.
**عازم** : اراده لرونکی، قصد کونکی.
**عاشق** : مئین، شیدا، مشتاق، غوښتونکی، په مینه کښې غرق.
**عاشقانه** : عاشق سره منسوب.
**عاشقي** : مینه، محبت، مئینتوب،
**عاشوره** : د محرم د میاشتې ورومبی لس ورځې، د امامانو میاشت، د محرم میاشت، د حسنیانو میاشت،
**عاصم** : بچ کونکی، محافظ.
**عاصي** : گناه گار، نامنونکی، نافرمانه.
**عاطف** : مهرباني کونکی،
**عاطفت** : مهرباني، شفقت، پیرزوینه، ورکړه، عنایت.
**عافیت** : خیریت، سلامتیا، سلامتي.
**عاق** : د مور او پلار نه ویزاره، نافرمانه، د مور پلار نامنونکی.
**عاقبت** : انجام، نتیجه، اخرت، اخر، د نتیجې په ډول،
**عاقل** : هوښیار، عقل مند، دانا،
**عالَم** : دنیا، جهان، زمانه، ډیر خلق.
**عالِم** : علم لرونکی، د علم خاوند، دانا، پوهیدونکی.
**عالم الغیب** : د الله پاک صفاتي نوم، د غیب علم لرونکی.
**عالمگیر** : په ټول جهان خور، په ټول عالم خور.
**عالمي** : د عالم سره منسوب.
**عالي** : وچت، لوی، د لویې مرتبې خاوند.
**عام** : د خاص متضاد، مشهور، هر ځای خور، رواجي، رسمي، معمولي، ادنيٰ.
**عامر** : اباد، پوره، ډک، ابادونکی، تعمیرونکی، جوړونکی.

**عامل** : عمل کونکے، د کوډو تعویذونو وغیره کونکے، هغه سړے چې د مال باقاعده زکوٰة ور کوي، کار کونکے، ګورنر، حاکم.
**عامله** : عام خلق، عامیان، هغه خلق چې خاص نهٔ وي. د معاشرې زیاته طبقه.
**عامه** : عام خلق، عامیان، هغه خلق چې زیات وي، د معاشرې زیاته طبقه.
**عامي** : ړوند، ناخوانده، جاهل.
**عاید** : لګولے، مقرر شوے، واپس راتلونکے،
**عائله** : خاندان، ښځه او ماشومان، ټبر، ښځه او بال بچ.
**عباد** : د عبد جمع، بندګان.
**عبادت** : الله یادونه، بندګي، نمونځ.
**عبارت** : تحریر، لیک، مضمون، خبره، جمله، مقصد، مراد.
**عباس** : بوټ تندے لرونکے، غصه ناک، زمرے، منزرے،
**عبث** : فضول، بیکاره، بې فائدې، ضائع، ناحق، بې وجې.
**عبد** : بنده، غلام.
**عبدیت** : بندګي، غلامي.
**عبراني** : د بني اسرائیلو زړه ژبه چې پکښې تورات نازل شوے وهٔ. د یهودیانو مذهبي ژبه.
**عبرت** : فکر کونه، نصیحت اخستنه، نصیحت حاصلونه، ویره، خوف.
**عبرتناک** : د عبرت نه ډک، د نصیحت نه ډک، عبرت لرونکے.
**عبودیت** : بزرګي، غلامي، اطاعت، عبادت.
**عتاب** : غصه، ملامتیا، بدمزاجي، بد خوئي.
**عتیق** : اصیل، ساهو، محترم، پخوانے، زوړ.

**عجائب** : د عجیب جمع، د تعجب نه ډک څیزونه، نا اشنا څیزونه.
**عجائب خانه** : عجائب ګر، هغه ځاے چرته چې نا اشنا څیزونه پراتهٔ وي.
**عجائب ګر** : وګورئ عجائب خانه.
**عجب** : عجیبه، نااشنا، حیرانونکے،
**عجز** : عاجزي، کمزورتیا، نااهلیت، ناچاري، انکسار.
**عجلت** : تیزي، جلدي، تادي، تندي، تلوار، بیړه.
**عجم** : د عربستان نه بغیر نور ملکونه.
**عجمي** : د عجم سره منسوب.
**عجیب** : نااشنا، نادر، د تعجب او حیرانتیا نه ډک.
**عدالت** : انصاف، عدل، کچهري، د انصاف ځاے، له یوې نه زیاتو ښځو ترمنځه د حقوقو د مساوات سلوک،
**عدالتي** : د عدالت سره منسوب.
**عداوت** : دشمني، بدي، عناد، مخالفت، نفرت، کینه.
**عدت**: شمیره، شمار، هغه موده چې طلاقه شوې ښځه یا کونډه ښځه پکښې د بل چا سره نکاح نهٔ شي کولے. د طلاقې شوې ښځې دپاره درې میاشتې د کونډې دپاره څلور میاشتې د حاملې دپاره د ماشوم تر پیدا کیدو پورې مقرره وخت.
**عدد** : شمار، شمیره، هندسه.
**عددي** : د عدد سره منسوب.
**عدسه** : هغه شفافه شیشه چې پلوشې په یو مرکز راټولوي یا ئې خوروي.
**عدل** : انصاف، برابرونه، انصاف کونه،
**عدلیه** : د حکومت د دریو څانګو نه هغه یوه څانګه چې د انصاف کار کوي.
**عدم** : د وجود ضد،

نیشتوالے، نیشت، نیستي،
**عدم پته** : بې درکه، ورک، ترے تم، ټنډوغپ.
**عدو** : دشمن، دښمن، رقیب، حریف.
**عدول** : انکار، نافرماني کونه، مخ ګرځونه.
**عدیل** : برابر، همسر، هم مرتبه، یو شان، د ډولی یا کجاوې د یو اړخ سورلی.
**عدیم** : ورک، ناپید، نایاب، پټ، جاهل، نادان.
**عذاب** : تکلیف، درد، د ګناه سزا.
**عذابول** : تکلیف ور رسول، درد رسول، سزا ورکول، کړول.
**عذابیدل** : تکلیفیدل، دردیدل، سزا کیدل، کړیدل.
**عُذر** : بهانه، حیله، معذرت، تعزیت، دلیل، اعتراض، انکار.
**عرس** : د پیرانو او ولیانو د کلیزې په موقع د فاتحې رسم، د فاتحې او سماع جلسه.
**عرش** : تخت، د بادشاه د ناستې ځاے. مرتبه، عزت، چت، تمبو، خیمه، د مادیاتو او فلکیاتو د حدونو نه بالاتر مقام چرته چې د مقربو فرشتو نه علاوه صرف حضور صلي الله علیه وسلم د معراج په شپه رسیدلے وۀ. د الله تعالیٰ تخت.
**عرصات** : قیامت، د محشر ورځ، د حساب کتاب ورځ.
**عرصه** : وخت، موده، وقفه، زمانه، فاصله،
**عرض** : درخواست، خواست، پلن والے، خور والے، ارت والے، بر، سور، د کور سامان، اسباب.
**عرض بلد** : هغه فرضي کربنې چې د زمکې په پلنوالي کښې د تقسیم په غرض رابنکلے شوې دي.
**عرضي** : خواست،

درخواست، عریضه، هغه لیک چې پکښې حال عرض کړے شوے وي.
**عرف** : تعارف، پیژندګلو، فائده، دستور، رواج، د اصل نوم نه علاوه دویمه نامه چې بنده پرې مشهور وي.
**عرفات** : هغه میدان چرته چې حاجیان د حج په ورځ راجمع کیږي او لبیک لبیک وائي.
**عرفان** : پیژندګلو، پیژندګلي، اشنائي، شناخت، د الله تعالیٰ معرفت،
**عرفه** : د لوئ اختر نه یوه ورځ وړاندې ورځ، د ذي الحجه نهمه نیټه.
**عرفي** : رسمي، معمولي، د رسم مطابق.
**عرق** : خوله، رس، اوبهٔ، جوهر.
**عروج** : وچتوالے، لوړوالے، بلندي، مرتبه.
**عروض** : هغه علم چې پکښې د شعرونو د صحیح وزن د معلومولو قاعدې بیان شوې وي.
**عریان** : بربنډ، لغړ، لوڅ.
**عریاني** : بربنډوالے، لغړتوب، لغړوالے، لوڅوالے.
**عریض** : ویړ، پلن، خورووړ.
**عریضه** : چیټهی، خط، درخواست، خواست، هغه درخواست چې مخصوصه دعا پرې ولوستې شي او د الله تعالیٰ یا د امام مهدي په نامه په سیند کښې وبیولے شي.
**عزازیل** : شیطان، ابلیس.
**عزائم** : د عزم جمع، ارادې.
**عزت** : بزرګي، حرمت، ابرو، احترام.
**عزتمن** : د عزت خاوند، عزتمند، د عزّت څښتن، محترم، عزت دار، عزتناک.
**عزتمند** : وګورئ عزتمن.
**عزتناک** : وګورئ عزتمن.

**عزرائیل** : د مرګ فرښته، هغه فرښته چې په روحونو قبض کولو مقرر کړې شوې ده.
**عزم** : نیت، اراده، قصد، فیصله، مدعا.
**عزوجل** : غالب او د جلال خاوند، د الله پاک صفتي نوم.
**عزیز** : خپل، رشته دار، همسر، برابر، مرغوب، خوښ، خوږ،
**عزیزولي** : خپلولي، رشته داري، برابري.
**عزیمت** : اراده، نیت، دم، منتر، افسون.
**عُسر** : سختي، تنګسیا، تنګوالی، حادثه.
**عسکر** : لښکر، فوځ، سپائي، لښکري، فوځي.
**عسل** : شات، ګبین، انګبین، شهد.
**عشا** : د نماښام نه پس تر سبا راختو پورې وخت، نمازخفتن، ماسخوتن.
**عشرت** : ښهٔ ژوند، ارام، سوکالي.
**عشق** : مینه، محبت، د لیونتوب تر حده رسیدلې مینه.
**عشوه** : نازوادا، غمزه، نخره، فریب.
**عصا** : کونټی، امسا، چوکه.
**عصبیت** : بغض، کینه، حسد، تربګني، تعصب، دشمني.
**عصر** : روزګار، وخت، زمانه، د مازیګر وخت، مازیګر، د مازیګر مونځ.
**عصرانه** : د مازیګر ډوډی، د ماښام ډوډی،
**عصري** : نوے، جدید، د موجوده زمانې سره تعلق لرونکے، د دې وخت، د دې زمانې، د عصر سره منسوب.
**عصمت** : ناموس او عزت، پاکي، پاکدامني، هغه پاکي چې د پیدائش نه تر مرګه

پورې څۀ ګناه ونۀ کړې شي.
**عصيان** : ګناه، نافرماني.
**عضو** : اندام، د بدن حصه،
**عضو تناسل** : غين، ذکر، غين، عضو مخصوص.
**عطا** : بخشش، بخښنه، انعام.
**عطار** : عطري، عطر فروش، عطر خرڅونکے.
**عطارد** : يوه سياره چې د نمر سره نژدې ده او په ۸۸ ورځو کښې يو چکر وهي.
**عطر** : د ګلونو عرق چې خوشبو کوي.
**عطف** : توجه راګرځونه، رغبت، هغه لفظ چې په دوؤ فقرو کښې د دوؤ خبرو تړون راولي.
**عطيه** : بخشش، سخاوت، انعام کړے شوے څيز، بخښلے شوے څيز.
**عظمت** : لويي، بزرګي، لوے والے.
**عظيم** : ډير لوے، بزرګ،
**عظيم الشان** : د ډيرې لويې مرتبې خاوند، د لوې شان خاوند، لوے شان لرونکے.
**عفت** : پاکوالے، پاک دامني، پرهيزګاري.
**عفريت** : ديو، غټ سړے، تيار او څورب سړے.
**عفو** : معافي، بخښنه، خطا معاف کونه.
**عقاب** : يو قسم مشهور مارغۀ چې ډير تيز او وچت الوځي، د کيمياګرو په اصطلاح کښې نوشادر.
**عقائد** : د عقيدې جمع، پوخ يقين، په حق پوهيدنه او هغه په زړۀ کښې اچونه.
**عقبیٰ** : اخرت، دويم جهان.
**عقد** : تړنه، وعده، نکاح.
**عقده** : غوټه، ول، بنديز، مخ نيوے، ګرانه خبره، پيچيده خبره.
**عقرب** : لړم، د اسمان د يو برج نوم، د شمسي کال اتمه مياشت.

**عقل** : هوښيارتيا، پوهه، دانائي، فهم، ادراک.
**عقلمند** : هوښيار، عقل لرونکے، د عقل خاوند، پوهه، دانا.
**عقوبت** : عذاب، سزا، تکليف، درد.
**عقيدت** : اعتقاد، د زړهٔ يقين، ارادت، ايمان.
**عقيده** : مذهبي يقين، پوخ اعتماد، پوخ يقين، ايمان، اعتقاد.
**عقيق** : د سور رنګ يو قيمتي کانړے چې غمي ترې جوړولے شي.
**عقيقه** : هغه بلنه چې د ماشوم د پيدائش په اوومه ورځ د هغهٔ د سر خرئيلو او نوم ايښولو د تقريب په موقع ورکولے شي.
**عقيمه** : هغه ښځه چې بال بچ ئې نهٔ کيږي، شنډه، وچه.
**عکاس** : تصوير جوړونکے، تصوير ايستونکے، عکاسي کونکے.
**عکس** : سيورے، اپوټه شوے لفظ، عداوت، دشمني، بغض، ضد.
**علاج** : چاره، تدبير، دارو، د رنځ دارو، سزا.
**علاقه** : تعلق، دوستي، تړون، تخت، حکومت، حدود، سرحد، ځاے، حلقه، جاګير، ملکيت.
**علالت** : بيماري، ناروغتيا، ناروغي، د طبيعت ناسازي.
**علامات** : د علامت جمع، نښې،
**علامت** : نشان، نښه، نښان، نشانه، نښانه، درک، پيژندګلي،
**علامه** : لوے عالم، غير معمولي قابليت لرونکے.
**علاوه** : سوا، پرې دپاسه، بغير، سوا.
**علت** : سبب، وجه، ايلت، ناروغي، بيماري، کمزوري، ناسازي، شر، شرارت،

شیطاني.

**علتي** : پساتي، تنته باز، جګړه مار، شري.

**علم** : پوهه، خبریدنه، واقفیت، هوښیارتیا، دانائي، هنر، جوهر، جادو، منتر.

**عَلم** : نشان، جنډه، نښه، د اسم معرفه یو قسم.

**علمیت** : علم لرنه، علم کیدنه، قابلیت،

**عُلیا** : ډیر وچت، شان و شوکت لرونکے، ځان له نۀ استعمالیږي.

**علیل** : ناروغه، هغه څوک چې بیمار وي، رنځور، ناجوړه.

**علیم** : ډیر پوهیدونکے، ډیر علم لرونکے، لوے عالم، د الله پاک صفتي نوم،

**علیون** : د جنت وسیدونکے، جنتي.

**علیین** : جنت.

**علیٰحده** : جدا، ځان له، بیل.

**علیک سلیک** : د لارې د سر اشنائي، معمولي پیژندګلو، لږ شان واقفیت، سلام کلام، سلام دعا، سرسري ملاقات، معمولي تعلق.

**عمارت** : ابادي، کور، مکان.

**عمداً** : ارادتاً، په اراده سره، په قصد سره. قصداً.

**عمده** : غوره، ښۀ، خوښ، منتخب،

**عمره** : د حج د ورځو نه علاوه د بیت الله شریف زیارت او سعي کونه.

**عمري** : د عمر، د ټول عمر، ابدي، ټول عمري، همیشه همیشه، تمام عمر، کلهم عمر، هر وخت، مدام، تر قیامته، تل تر تله.

**عمل** : کار، کړۀ، اختیار، جادو، اثر، انتظام، د څۀ نشه آور څیز استعمالونه، عادت.

**عملاً** : په عمل سره، د عمل

له اعتباره.
**عملداري** : علاقه داري، صوبه داري، د لاس لاندې احاطه، صوبه، رياست.
**عملنامه** : هغه رجستړ يا كاغذ چې پكښې د بنده ښۀ يا بد عمل درج كړے شوے وي. د انسان د اعمالو هغه ياداشت چې په انسان دوه مقررې فرشتې ئې ليكي او د قيامت په ورځ به انسان ته پيش كولے شي.
**عملي** : د عمل سره منسوب، نشيي، اموخته، عادت.
**عمود** : ارم، ستن، هغه خط مستقيم چې په بل خط مستقيم باندې قائميدو سره برابرې زاويې جوړوي.
**عمودي** : د عمود سره متعلق.
**عموم** : عام كيدنه، بغير د شرطه دِ هر چا دپاره كيدنه.
**عموما** : په عمومي توگه، په عمومي ډول، عام طور سره، اكثر.
**عموميت** : عام والے، عام كيدنه.
**عميق** : ژور، تان، تانه.
**عناب** : يو قسم ميوه چې د وينې د صفايي دپاره د دارو په توگه استعمالولے شي.
**عناد** : دشمني، دښمني، تربگني، كينه، عداوت، ضد، اړې.
**عنادي** : دشمن، مخالف، عناد كونكے، عناد لرونكے،
**عنان** : واگې، واړې، لگام، اختيار، واک.
**عنايات** : د عنايت جمع. مهرباني.
**عنايت** : مهرباني، احسان، شفقت، پيرزوينه، بخښنه،
**عنبر** : يو خوشبو دار څيز چې د سمندر په غاړه موندے شي.
**عنبرين** : د عنبرو نه ډک، د عنبرو په شان.
**عند** : نژدې جوخت،

جخت، ورته، په مرکباتو کښې مستعمل دے.

**عندلیب :** بلبل، یو مشهور مارغهٔ چې په کلونو مئین دے.

**عنصر :** ماده، اصلي جزو، اصل او بنیاد،

**عنقا :** د فرضي مارغهٔ نوم. هغه څیز چې نایاب وي.

**عنقریب :** سمدستي، فوراً، څهٔ وخت، نژدې.

**عنکبوت :** جولا، غنه، خرمګس، د قرآن شریف د نهویشتم سورت نوم.

**عنوان :** سرخط، سرلیک، سرنامه، د مضمون سرخي.

**عواقب :** د عاقبت جمع.

**عوام :** د عامه جمع خلق، رعایا، اولس.

**عوامل :** د عامله او عامل جمع.

**عود :** یو خوشبودار لرګے، د یوې باجې نوم.

**عورت :** د انسان د بدن هغه حصه چې د هغې بربنډول د شریعت له رویه ناجائز وي. ښځه، زنانه، ارتینه، عورته.

**عورتینه :** عورته، ښځه، ارتینه.

**عوض :** معاوضه، بدله، اجر، تاوان، سزا، عذاب.

**عهد :** وعده، ژبه، اقرار، وخت موده، زمانه.

**عهد شکن :** وعده ماتونکے، وعده خلاف، بې ژبې کیدونکے.

**عهدنامه :** د وعدې لیک، د وعدې تحریر، یوه وړه مذهبي کتابچه.

**عهده :** منصب، درجه، مرتبه، رتبه، حیثیت.

**عهده دار :** د عهدې څښتن، د رتبې مالک، عهده لرونکے.

**عیادت :** د ناروغه تپوس، د رنځور پوښتنه.

**عیار :** دوکه باز، چالاک، مکار، مکرژن، ټګ،

**عیاري :** چالاکي، دوکه،

فریب، مکر، تګی.
**عیاش** : عیش کونکے، د مزو ژوند تیرونکے، اوباش.
**عیاشي** : فضول خرچي، فضول خرڅي، عیش کونه.
**عیال** : واړهٔ زاړهٔ، بال بچ، اقربا، زوزاد.
**عیان** : ښکاره، څرګند، نمایان، ظاهر، ډاګیز.
**عیب** : نقص، کمزوري، نقصان، خرابي، خرابوالے، داغ.
**عیب ژن** : عیب لرونکے، نقصاني، داغي.
**عیبي** : عیب لرونکے، عیب ژن.
**عید** : د مسلمانانو مذهبي جشن، اختر، د خوشحالی جشن، ډیره خوشحالي.
**عید الاضحیٰ** : لوے اختر، د قرباني اختر.
**عید الفطر** : وړوکے اختر، کمکے اختر، په رمضان پسې اختر.
**عید میلاد** : د حضور صلي الله علیه وسلم د پیدائش د خوشحالی ورځ.
**عیسائي**: د عیسیٰ علیه السلام اُمت ته ځان منسوبونکے، مسیحي.
**عیسوي** : د عیسیٰ علیه السلام سره منسوب،
**عیوب** : د عیب جمع، عیبونه، نقصونه.
**عیش** : د مزو ژوند تیرونه، ارام، نفس پرستي.
**عیش عشرت** : مزې چرچې، خوندونه، نفس پرستي.
**عین** : بالکل، دغه شان، هوبهو. سترګه، چشم.
**عین غین** : ډیر لږ فرق، څومره چې په عین او غین کښې وي.
**عینک** :چشمې، عینکې.
**عینکې** : وګورئ عینک.
**عیني** : په خپلو سترګو لیدونکے.

**غ** : (غین) د پښتو حروف تهجي د پتې یو کم دیرشم حرف چې د ابجدو په حساب ئ قیمت زر (۱۰۰۰) دی.

**غاب** : ځنګل. تال، قاب، تالی.

**غاتول** : غاتول، ګل لاله، غاتولی.

**غار** : وړه لویه سوړه، ډوغل، سمڅه، سمڅ، ګاره.

**غارت** : لوټمار، تالان، هغه حمله چې په دشمن باندې د لوټمار دپاره وکړې شي. مال غنیمت، تباه، برباد.

**غارتګر** : لوټمار، لوټ مار کونکی لوټونکی.

**غار غار** : سوړې سوړې، ګارې ګارې، چې ډیر غارونه پکښې وي.

**غارمه** : د نمر ګرمي، د نمر تودوالی، تکنه غرمه، نیزه وال نمر.

**غارندوني** : یو قسم لویه او غټه سمسره.

**غاړکی** : پټه، هار، د غاړې پټی، د سپي یا بل ساتلي ځناور د غاړې پټه. ګردنی، د کارتوسو ایښولو پټی چې خلق ئ په غاړه ګرځوي. یو قسم کالی.

**غاړه** : څټ، مری، کناره، حاشیه، ټوقه، مسخره، زکام، خوش اوازي، سر، د ژړا ستائینه، د وښو یا ګیا دومره مقدار چې څنګ ته واچولی شي.

**غاړه بسته** : ملاتړلی، تیار، وفادار، لاس په نامه، غاړه تړلی،

**غاړه غټی** : هغه چې په خپلو کښې ئ غاړه ور کړې وي. غاړه غړی، سینه په سینه، غاړه په غاړه.

**غاړې** : سندرې. ناشونې.

**غازه** : د ملا د هډوکي پورته حصه. پوډر، سرخي.

**غازي** : غزا کونکی، د کافرانو سره جنګیدونکی،

زړهٔ ور، بهادر، توررزن.
**غابښ** : په خلهٔ کښې د خوراک خوړلو یا چیچلو اندام.
**غابښور** : یوه آله چې غابښې لري او زمکه پرې هوارولے شي، مانج.
**غابښی** : درې غابښی، درې خابښی، ښاخی.
**غابښے** : د غرهٔ څوکه. لوړ غر چې ختل پرې ګران وي. د غرهٔ د پاسه لار.
**غاصب** : د چا په حق په زور قبضه کونکے، غصب کونکے.
**غافل** : بې پروا، ناپوهه، ناخبره، سست، پست، ناراسته.
**غال** : دوکه، په لوبو کښې تګي، غولتي، کاجي، قالي.
**غالب** : طاقتور، کامیاب، غلبه لرونکے،
**غالباً** : زیات تر، تقریباً، اغلباً.
**غالبوزه** : ډمبره، بمبره، ډنډاره، ډنډاره مچی.
**غالمغال** : شور او شر، های های، غال بول.
**غالیچه** : قالینچه، یو قسم ګلدار قالین.
**غاؤ** : شور او فریاد، غوغا، الغو تلغو، شور او غوغا.
**غاور** : غرور کونکے، مغرور، متکبر. ډاډه، زړهٔ ور.
**غاوره** : مغروره، متکبره، غرور کونکے.
**غائب** : غیر موجود، په نظر نهٔ راتلونکے، غیب، پناه،
**غائبانه** : پشې شا، د غائبیدو حالت، غیبي.
**غائبول** : پټول، پناه کول.
**غائبیدل** : پټیدل، غیر موجود کیدل، پناه کیدل.
**غایت** : غرض، مطلب، مقصد، انجام، انتها.
**غبار** : دوړه، ګرد. زړهٔ بداوے، دشمني.
**غبرګ** : برغ، جوړه، دوه سره یو ځاے، بغرګ،

جخت، نژدې.
**غبرګول** : يو په دوه کول، دوه ځيزونه يو کول، رانغښتل.
**غبرګولې** : ځينور، د اسمان د دريم برج نوم، جوزا. د شمسي کال دريمه مياشت چې د ۲۱ مۍ نه تر ۳۰ جون پورې وي.
**غبرګونې** : غبرګ، د غبرګ کيدو په حالت کښې. برغونې، غبرګوالې، غبرګون.
**غبرګه** : هغه ښځه چې جوړه بچي ئ شوې وي. لپه. د دوؤ غونډو په منځ کښې خوړ، د دوؤ غرونو ترمنځه د اوبو لاړ.
**غبرګيدل** : برغيدل، واپس راتلل،
**غبغب** : د زنې لاندې غوښه، د زنې لاندې ځوړنده غوښه چې د حسن نښه ګڼلې شي. چاه زنخ.
**غبن** : خيانت، دوکه، په فريب مال وهنه، غبن.
**غبي** : هغه بنيادم چې ذهن ئ تيز کار نۀ کوي، نالائق، کندذهن.
**غپ** : د سپي اواز، د غپيدو اواز.
**غپا** : د غپ غپ مسلسل اواز. غپار، غپارې.
**غپل** : د سپي له خلې د غپ غپ اواز وتل.
**غپيدل** : غپل. د سپي له خلې د غپ غپ اواز وتل، غپا کول، غپ غپ کول، بې فائدې خبرې کول، بکواس کول.
**غټ** : لوې، ځورب، مشر، پير.
**غټ** : عن، ان، بيخې، قطعي، صاف، ټول، صفا. مخامخ.
**غټ پټ** : غټ کټ، ځورب، تکړه، تيار، غټ، چاق، ټنډ، لوې، ډير زيات غټ.
**غټ جوار** : يوه غله او د

هغې بوټي. مکئ.
**غټ غټ** : لوړې لوړې، د سر سر، ښکاره ښکاره، ګران ګران، اهم اهم.
**غټ کټ** : غټ پټ، ثورب، تکړه، تیار، په وجود ښهٔ روغ.
**غټکې** : څربوالي ته مائل، غټېدو ته نزدې.
**غټول** : سترول، لویول، لوئـي ورکول، مضبوطول، زیاتول.
**غټېدل** : غوښه اخستل، لوئیدل، په وجود پړسیدل، عزت موندل.
**غټې ننکی** : حقې ننکی، چیچک، کوړے.
**غځول** : وړدول. خورول، څملول، پرځول.
**غځیدل** : وړدیدل، خوریدل، څملاستل، پرځیدل.
**غچ** : بغض، انتقام، عناد، دشمني، خوابدي، غځ، دښمني.

**غچه** : بدل، انتقام.
**غځ** : انتقام، بغض، کینه، دشمني، غچ.
**غځکے** : وړوکے غوئے، د غوا بچے چې خوانی ته نزدې وي. سخوندر. د اسمان دویم برج، د شمسي کال دویمه میاشت چې د ۲۰ اپریل نه تر ۲۰ مئ پورې وي، ثور.
**غځول** : پریکول، فیصله کول.
**غځیدل** : پریکیدل، فیصله کیدل.
**غدار** : فریبي، بې ایمانه، دوکه باز، بې وفا، غدارې کونکے.
**غدر** : بې وفائي، دوکه، فریب، سازش.
**غدو** : غل، داړې مار.
**غدود** : د غده جمع، د مری غوټې، بګوټې، بغوټې، د بدن غوټې، ستغان.
**غدی** : داړه، چپاؤ، ډاکه، حمله کونکې ډله چې تعداد

ئ تر سلو پورې وي. ځله ګوله، شور شغرب، درز غوبل.
**غذا** : خوراک، خوراکه.
**غر** : د کانو یو قدرتي او لوړ ډیرے، د زمکې هغه حصه چې د جغرافیائي عمل په نتیجه کښې جګه شوې او کلکه شوې وي. مشکل کار، ګران کار.
**غر** : د مرۍ رسولۍ، د مرۍ دړ کښې یو پړسوب چې د تهائي رائیډ د پړسیدو په نتیجه کښې پیدا کیږي.
**غرا** : دومبال، دومباله، کونه، مقعد، کناټي.
**غراره** : د خر بوره. ډیر زور، ځیز. د ارتو پینځو پرتوګ. غرغره، په حلق کښې اوبهٔ اچونه او خلهٔ کنګالونه.
**غرب** : مغرب، نمرپریواتهٔ، قبله.
**غربا** : غریبانان، غریبان.
**غربال** : غلبیل، چاڼ.
**غربت** : غریبي، ناداري، مفلسي، عاجزي، مسافري.
**غربول** : ډبول، وهل ټکول.
**غربیدل** : ډبیدل، وهلے کیدل.
**غربین** : د پخوانۍ زمانې یو ټوپک چې خلهٔ ګئ ارته وي، غرابین.
**غرځنګ** : جوش، مستي، ټوپونه وهنه.
**غرځول** : ګوزارول، په زور له یو ځایه بل ځاے ته اچول، غورزول.
**غرځي** : کوشش، ټوپ، مستي.
**غرځیدل** : ګوزاریدل، غورزیدل، پریوتل.
**غرچیدل** : غاښونه کرچول، د غصې خبرې کول، غاښونه چیچل، غرچ غرچ کول.
**غرځهٔ** : غرئیز چیلے،
**غرځنے** : غرخه، غرځنے، غیر مهذب، کوهستانے، د غرونو ځناور، غرئیزه چیلۍ.

**غــرزيــدل :** ګــوزاريــدل، پريوتل.
**غرزې پرزې :** لاس پښې وهـنـه يـا ټکونه، د لاسو پښو بې ترتيبه حرکات.
**غرض :** مـطـلـب، مـقـصـد، حاجت.
**غرضي :** غرضمند، مطلبي، غرض نه ډک.
**غـرغـره :** لـمـبـه ژن اور، غـرغـنډه. سولي، دار، د نمر ډوبيدنـه، د نـمـر د پـريوتو حالت،
**غړغړه :** غـړغـړې، په خلهٔ کښې اوبهٔ اچونه او غورځونه، د نـمـر پـريـوتـنـه، غـرغـره، سولي.
**غرغنډه :** د اور شغله، د اور لمبه، سوځيدلے.
**غـرق :** ډوب شـوے، ژور، تباه او برباد.
**غرقاب :** ډوب شوے.
**غرقول :** ډوبول، تباه کول، ژورول.
**غـرقيدل :** ډوبيـدل، تباه کيدل، ژوريدل.
**غـر کمانه :** يو قسم ليندهٔ. غليل.
**غر کيدل :** غـرکا کول، په ډکه يا مړه خيټه ډرکې کول، د ښـاروې غـر کيـدل چـې د مړښت اندازه ترې لګي.
**غـرمشـکـه :** غــرمشتـه، مستي.
**غرمنی :** ظهـرانه، د غرمې ميلمستيا.
**غرمنے :** د غرمې سره تعلق لرونکے.
**غرمه :** نيـمه ورځ، د ورځې نيـمـه، د مـاسپښين او ښابښت تر منځه وخت.
**غرندے :** د مـرى غـوټه او تـرې ګيـر چـاپير ځاے چې د خط جوړولو په وخت خريلے شي.
**غـر نيکهٔ :** د نيـکهٔ پلار. د نيـکـهٔ نيـکهٔ، جد امجد، مشر نيکهٔ.

**غرلے** : وړوکے غر، غرئيز، کوهستاني، روهي.

**غروب** : ډوبيدنه، د نمر ډوبيدنه.

**غرور** : کبر، تکبر، فخر.

**غرول** : د سپي يا پيشو نه غر غر ايستل.

**غرول** : کنځل کول، بې مقصده او بې فائدې خبرې کول، بکواس کول.

**غر وهل** : منډه کول، فراريدل، تښتيدل.

**غروي** : د غلو د قافلې ملګري.

**غروے** : د غم په وخت ستونے راډکيدنه، د مرې پړسيدنه، غريو، د غمه سلګۍ وهنه، غريب.

**غوه** : شاه، کونه، مقعد، دبر. د اتن غاؤ، ټوقې مسخرې، ټوقې ټقالې.

**غوه ټپه** : ناڅاپه، سمدستي، غري ټپ.

**غريب** : بې وسه، مسکين، محتاج، مفلس، کمزورے.

**غريبانه** : د غريب په شان، د غريب په طريقه، د غريب سره منسوب.

**غريبي** : محتاجي، عاجزي، مفلسي، بيوسي، موتازي، لاچاري. مزدوري.

**غريبيدل** : مالي طور سره کمزورے کيدل، مفلس کيدل.

**غريدل** : غر غر کول د سپي يا پيشو غرغر کول. په غصه کښې خبرې کول.

**غريز** : صبر، زغم، تحمل، برداشت.

**غريزه** : جبلت، پيدائشي خاصيت، سرشت.

**غريو** : د ناکامۍ ژړا، زړۀ ډک ډک کيدنه، ژړيدو ته نزدې کيدنه، خفګان، مايوسي، ژړا، سوګند، د بيوسی ژړا، بوګن، غريب، غريوے.

**غرى** : مجمع، مجمه، لويه

ر کيبي.

**غړانګه** : اوږد ښت، وږده مرى، غړى، تېره اواز، اوږده چغه.

**غړپول** : څه مائع شيز تيرول، ګوټل، شومل.

**غړپيدل** : څه مائع شيز تيريدل، ګوټلے کيدل،

**غړچول** : په يو ځل تيرول، لوارړ تيرول، کرچول، د قينچى يا ټوپک نه د کرچ کرچ اواز ايستل.

**غړچيدل** : په يو ځل تيريدل، لوارړ تيريدل.

**غړدانګه** : مستي، ټوپ، د اس، هوسى يا سويې په وږدو ټوپونو دانګه.

**غړدل** : نغښتل، غښتل، تاو ور کول، غړل.

**غړمبا** : د توپې چليدو اواز، د ځناورو د غړمبيدو اواز.

**غړمبول** : غړمبار ايستل، له څۀ شيز نه د غړم غړم اواز ويستل، غړمبا ايستل.

**غړمبيدل** : د اسمان درزيدل، غرړيدل، د وريځې ګرړيدل، د ځنګلي ځناور غړمب کول.

**غړن** : غړند، مړاوے، سست، کمزورے، بې پروا.

**غړوسکه** : لوګے، غړوسکے، خړوسکه، د وريځ ټوټه، تالاؤ، د اوبو ډنډ.

**غړول** : تاوول، چورلول، ستر ګې پرانستل، خوځول، اړول، څۀ په ډډه کول، ژغورل، د څۀ شيز بيا بيا ذکر کول، ګردان کول.

**غړوندے** : کولنډ، د ځناورو د غارې ترلو پړے، د بوتل غړى، د بوتل وغيره غاړه. د جزم يا سکون علامت.

**غړي** : د اوربشو پتيره ډوډى چې خوږ شربت سره او يا چې په دالو کښې غوړي واچولے شي خوړے شي.

**غړي** : د جسم اعضاء، اندامونه، زور، طاقت، ممبران، ارکان، سپينې،

لینګي، پتې، هغه پتې چې سپینې پرې تړلې شي.
**غړیدل :** پرانستې کیدل، برخیره کیدل، ډډې ته کیدل، ژغوریدل، محسوسیدل، موجود کیدل.
**غړی :** ستونې، مرۍ، غاړه، غړانګه، څټ.
**غړے :** یو قسم روغنی روتې، د بدن څۀ اندام، ممبر، رکن، کس، سپینه، لینګې، د اوربشو یو قسم روتې.
**غز :** یوه ونه او د هغې میوه چې چکی لري، چارمغز. اکوړ.
**غزا :** صرف هغه جنګ چې د کافرانو سره د اسلام په حمایت کښې وشي. مذهبي جنګ، جهاد.
**غزار :** ګوزار، ګزار، وار،
**غزارول :** ګوزارول، په زمکه راخلاصول.
**غزاریدل :** ګوزاریدل، پریوتل، په زمکه راخلاصیدل.
**غزال :** د هوسې بچے، د هوسۍ کبلے. آهو.
**غزا وشوه :** افسوس.
**غزل :** د شعر یو خاص قسم چې پکښې د عشق خبرې شوې وي. مطلع او مقطع لري او بیتونه ئې له اوو کم او له پنځلسو زیات نۀ وي. اصل معنئ ښځو سره خبرې کول دي.
**غزول :** وړدول، په څۀ ځیز کښې د اصلي حالت نه وړدوالے راوستل، خوځول، قتلول، وژل.
**غزولي :** ستوماني ایستنه، کهالي لرې کونه، له خوبه د راپاسیدو په وخت د دواړو لاسونو د یو بل سره د نیولو په ذریعه ستوماني ایستنه.
**غزوه :** غزا، هغه جنګ چې حضور صلي الله علیه وسلم پکښې پخپله موجود وۀ.
**غزیدل :** وړدیدل، خوځیدل، قتلیدل، وژلے

کیدل.

**غږ** : ژغ، ږغ، اواز، ناره.

**غږول** : د موسیقۍ د آلې یا مشین نه اواز ایستل، چاته خبرې ویستل.

**غږېدل** : د موسیقۍ د آلې نه په یو مخ اواز وښکلې کیدل، مسلسل خبرې کول، ګړیدل.

**غس** : د لومبړې یو قسم چې د قبرونو نه مړي راوباسي، ګورکټی، غسه، ګورکښه،

**غسل** : لمبا، لمبل، لامبل، په شرعي طریقه لامبل، ناپاکي، جنابت، پلیتي لرې کونه.

**غسل خانه** : د لامبلو ځای.

**غش** : بیهوشي، مذهوشي. کمزوري، ناتواني، عیب، فریب، دوکه، خیانت، په څیزونو کښې ناجائزه ګډون.

**غشی** : په لیندۍ ویشتلې کیدونکې وسله چې څوکه ئ تیرۀ وي. د شکوڼ تیرۀ څوکه لرونکې بهه. د یوې د سر هغه لرګے چې د یوې کولو په وخت د جغ د پاسه ایښودلے شي. په ارتې کښې هغه لرګے چې د لټې په دولسو سورو کښې لګیدلے وي.

**غښتل** : تاوول، تاؤ ورکول، غړل.

**غصب** : زور سره اخستنه، تروړنه، خیانت، غبن، د چا حق وهنه.

**غصبول** : تروړل، په زور اخستل، د چا حق قبضه کول.

**غصبیدل** : تروړلے کیدل، په زور اخستلے کیدل، د چا حق لاندې کیدل.

**غصه** : قهر، غضب، سوځت، خفګان، ناراضتیا، قهریدل، په قهر.

**غصه ناک** : غصه کونکے، تریخ، بدمزاجه.

**غضب** : ناګهاني آفت.

**غضبناک** : غصه، غضب رسونکے، له غضبه ډک، غضبي.
**غضنفر** : زمرے، بهادر، دلاور، تکړه، تورزن.
**غفلت** : بې پروائي، لاپروائي، ناخبرتيا، خوب.
**غفور** : معاف کونکے، د الله تعاليٰ يو صفتي نوم. بخښونکے، غفار.
**غل** : غلا کونکے، چور، د هر مجرم دپاره استعماليدونکے تورے. پوچ کارتوس، غلے، يټ.
**غُل** : د انسان يا ځناور ګندګي، فضله، د بې شرمۍ يا شرمندګۍ خبره يا کار.
**غلا** : څۀ څيز پټونه، د مالک د مرضۍ خلاف د پټولو په نيت څۀ څيز وړنه، خيانت کونه.
**غلاظت** : ګندګي، ګند، پليتي، نجاست.
**غلاغلتي** : ټکي ټوري، ټکړني، پردے مال وهنه.
**غلاف** : ستر، پوش، پرده، تيکے، نيام، کڅوړه.
**غلاکاسيري** : لوچه توب، حراميتوب، بدفعلي،
**غلاګرے** : غلاګر، غلا کونکے، غلچکے، غلاکرګے.
**غلام** : نوکر، مريے، بنده، هلک، ځوان.
**غلامي** : بندګي، مريتوب، د ازادۍ متضاد.
**غلانځور** : هغه حيوان چې غلانځه لري او تيونه ئې ډير غټ وي. لويه غلانځه لرونکې ښاروے.
**غلاون** : غلن، ډير غل کونکے، بزدل، ويريدونکے.
**غلبله** : شورزوږ، چغې نعرې، شور او فرياد.
**غلبوزه** : د شاتو مچۍ.
**غلبه** : فتح، کاميابي، برے، طاقت، غالب کيدنه، ګټه.
**غلبيل** : پروېزے، پروېځے،

غربال، چاڼ.
**غلبیل غلبیل** : سوري سوري، زخمي زخمي، پرهار پرهار.
**غلبیلول** : سوري کول، ډیر زخمي کول، چاڼول، چڼول.
**غلبیلیدل** : چڼیدل، سوري سوري کیدل، زخمي کیدل.
**غلتي** : کاجي، غولتي، تڼکي، غلتیا.
**غلچک** : غلچکی، غل، وړوکی غل.
**غلچکی** : وکوری غلچک،
**غلخور** : غل خوړونکی، دروغژن، بکواسي.
**غلط** : ناسم، هغه چې صحیح نهٔ وي، وران، نادرست، وران کار کونکی، وران کاری.
**غلط العام** : هغه عامه غلطي چې تعلیم یافته خلق ئ استعمالوي او صحیح ئ ګڼي. او شاعري ادب وغیره کښې ئ هم استعمالوي.
**غلطان** : بازیګره اړونکی، فکر کښې ډوب.
**غلط سلط** : غلط ملط، بدل رابدل، برخلاف، د اصل نه بدل.
**غلطول** : غلط جوړول، بل خطا کول، په بل غلطي کول.
**غلطي** : خطا، څهٔ غلط یا وران کار کونه، سهوه.
**غلطیدل** : خطا کیدل، غلطي کول، وران کار کول،
**غل غدو** : ډاکه مار، غلاګر، شوکمار.
**غلغله** : شورزوږ، شورغوغا، هنګامه، غلبله،
**غلمان** : د غلام جمع، ځوانان هلکان، د جنت ځوانان، د جنت ځلمي.
**غلن** : غلمار، غلاوڼ، غلاتي، ډیر غل کونکی، بزدل، ډرن، ویریدونکی، خیرن، خچن.
**غلنکه** : سرخه، د سترګې وړه ننکی، غلنکي، غولونکی.
**غلنی** : هغه څوک چې د

کـار نـه پـتهيږي. هغه حيوان چې کېږې خوري.
**غلول** : دوکه ورکول، خطا کول، تير ايستل، تېگل،
**غـله** : هـغـه دانې چې روټۍ تـرې پـخولـے شي لکـه غنم جوار وغيـره. وريژې، پوخ خوراک.
**غله دانه** : غلې، د خوراک دانې،
**غـليـځ** : طـاقتـور، قـوي، مضبوط، تکړه.
**غـليـظ** : ټيـنـګ، سـخـا، ګنده، ناولے.
**غليم** : دښمن، غنيم.
**غليمي** : دښمني، غليمتوب. مخالفت.
**غليب** : دوکه، فريب، ټګي برګي.
**غـليدل** : فـريـب خـوړل، دوکه خوړل، دوکه کيدل.
**غلے** : چپ، خاموش. ورو.
**غم** : الـم، مـصيبـت، رنج. علاج، فکر، انتظام، فيصله.
**غـماز** : چـغـلـخـور، چغلي کـونـکـے، پـه سترګو اشارې کونکے.
**غمازي** : چغلي، شيطانے، د يو خبره بل ته رسونه.
**غمبسه** : مچۍ.
**غـم خوار** : غـمـخـور، غم شريکے، همدرد.
**غم خواري** : غم خورګي، غم شريکي، همدردي.
**غـمـخور** : هـمـدرد، غمخوار، خواخوږے.
**غمزه** : د سترګو په ګوټ اشاره، قينچ، مکيز.
**غمژن** : غـمګين، غم زپلے، خفه، غم لرونکے، غمجن.
**غـمژنول** : غـمګين کول، خفه کول.
**غـمژنيدل** : خـفـه کيدل، غمګين کيدل، غمژن کيدل.
**غـمګين** : غـمـژن، دلګير، خفه، پريشان.
**غـمور** : غـمـژن، مـلال، غمګين.

**غمول** : خبره وږدول، تکليف رسول، خفه کول، ستړے کول، پريشانه کول، لاندې کول، تېټول.
**غميدل** : خبره وږديدل، تکليف رسيدل، خفه کيدل، ستړے کيدل، پريشانه کيدل، لاندې کيدل، تېټيدل.
**غمے** : نګينه، ډير ښائسته،
**غنا** : دولت مندي، شتهٔ منتيا.
**غنج** : قينج، نازوادا، غمزه، مکيز، نخره.
**غنځابښے** : يو قسم متهائي چې د اوړو او چينو نه پخولے شي. غنداښے، غونزاښے.
**غنځيدل** : بې قاعدې حرکت کول، لکه د چينجو خپلو کښې د يو بل سره انګتې بنګتې کيدل.
**غنچکه** : وړه غنچه.
**غنچه** : زومبق، غمچه، دسته، غنچک.
**غندل** : ترټل، مذمت کول.
**غندل** : په بوټي کښې توې څانګه، کچه ډنډر، د سپيږمو ترمنځ د غوښې ديوال، تپندوړے.
**غندي ستن** : غوندې ستن، هغه لويه ستن چې بوجى وغيره پرې ګنډلے شي.
**غنډ** : ګرد، ګول. ټول، د ځيلمې. د ونې غنډ چې تختې ترې ويستے شي.
**غنډان** : د غنډ جمع، ګرد يا غنډ لرګي چې تختې ترې ايستے شي،
**غنډل** : د لړم يو قسم، يو قسم زهريله غمے.
**غنډ منډ** : غونډ مونډ، بيخي غونډے، ګول.
**غنډول** : جمع کول، راټولول.
**غنډه** : غونډه، لوټه، چم، جرګه، جلسه، اجلاس، مرکه.
**غنډيدل** : جمع کيدل، راټوليدل، يو ځاے کيدل.

**غنلړی** : غونډی، وړوکے غر، ډیری، ډېکه.
**غنم** : یوه مشهوره غله، سره غله، د ار فصل.
**غنم رنګ** : د غنمو په شان رنګ لرونکے، داسې رنګ چې نهٔ تور وي او نهٔ سپین، سکاڼ، سکن، غنم غونے.
**غنم رنګے** : وګوره غنم رنګ.
**غنمینه** : د غنمو روټی.
**غنودګي** : پریشاني، پر کالي.
**غنیم** : دشمن، غلیم.
**غنیمت** : بیاموندے یا ګټلے څیز، هغه مال یا څیز چې د غزا په دوران کښې د وهلې شوې ډلې نه پاتې شي.
**غڼ** : د نر د وړو متیازو آله، صورت، ډګه، ذکر، غین،
**غِڼه** : غڼے، جولا، عنکبوت،
**غُو** : جماع، مجامعت، کوروالے.
**غَو** : شور، هنګامه، غوغا، شوروشر.
**غوا** : د غوني مؤنث، یو څاروے چې له میښې په وجود وړوکے او د پیو دپاره ساتلے کیږي.
**غواګی** : د غوا اسم تصغیر، وړه غوا.
**غوایهٔ** : غوئے، غوائے، کم عقل، شوده.
**غوبارے** : یو قسم مچ چې د ګرمی په موسم کښې په څارو کښیني او وینه ترې څښي، مردار مچ. یو قسم مچی چې د سپرلي په موسم کښې پیدا کیږي. وران کارے، شیطان.
**غوبل** : په درمن کښې د غلې دانې په ریلې شوې فصل باندې غوان ګرځونه چې غله د بوسو نه پاکه کړي. شور زوږ، ګنه ګونه، ګډوډے،
**غوبلول** : غوبل کول، څهٔ څیز میده کول، څوک ښهٔ وهل ټکول.

**غوبليدل** : غوبل کيدل، ميده کيدل، وهلے کيدل، ټکولے کيدل،

**غوبنه** : د غوبه او غوبنے مؤنث.

**غوبنے** : غوبه، پادوان، غوبون، هغه سړے چې غوا ميښې څروي.

**غوپه** : په اوبو کښې ډوبيدنه، غوټه، ډوب، په اوبو کښې غرق.

**غوټ** : چوټ، بالکل، پريکړے، صفا، چورلټ، قطعي.

**غوټکے** : د څلورو پنځو کالو ماشوم. غوټ سيرے، د غوټ اسم تصغير، په لوئيدو راغلے،

**غوټه** : ول، ترون، کنډون، تعلق، پنګه، موړي، سرمايه، ترلے، انښتے.

**غوټه** : د پيريانو يا ميرکو دوره، چپه،

**غوټي** : د ګل ابتدائي شکل چې لا خلۀ ئ نۀ وي پرانستے کلي. بوربوکی، بربو کی، حباب،

**غوث** : فرياد ته رسيدونکے، د روحانيت د مرتبو نه يوه مرتبه. د ولايت درجه.

**غوجل** : هغه مخصوص ځاے چې څاروي پکښې ترلے شي.

**غوجله** : وګورئ غوجل.

**غوځارول** : ګوزارول، غزارول، غرځول،

**غوځاريدل** : ګوزاريدل، غزاريدل، غرځيدل، اړتاويدل، ارتاويدل، په مټ ويشتلے کيدل،

**غوچول** : ژورول، کنده کول، تانول.

**غوچه** : کنده، هغه کنده چې د بوټي نال کولو دپاره وکنستلے شي.

**غوچيدل** : ژوريدل، کنده کيدل، تانيدل.

**غوځ** : پرې، پرې شوے،

زخمي شوے،

**غوځکے** : سخوندر، ځوانیدو ته نـزدې سخے، خسے، د غوا بچے.

**غوځول** : غڅول، پریکول، د خبرې فیصله کول.

**غوځیدل** : پریکیدل، زخمي کیدل، خبره فیصله کیدل.

**غور** : خیال، فکر، توجه. علاج، تدبیر، خسمانه.

**غور** : انتخاب، برخه، قسمت، نصیب، میراث.

**غور** : پینډه، په وادهٔ خیرات وغیره کښې یوې مجمې ته د ناستو کسانو ډله چې عموماً څلور وي.

**غورځنګ** : غرځنګ، جوش و خروش، د اوبو مستي، د اوبو چپې، چپاؤ، حمله، ګوابش.

**غورځنګول** : غوټه کول، برید کول، حمله کول.

**غورځول** : غرځول، اړتاوول، ګوزارول، لـړه کول.

**غورځیدل** : اړتاویدل، پریوتل، غرځیدل.

**غورځې پرځې** : کوشش، زیار، هسه.

**غورچیدل** : غـرمیدل، غـړمبیدل، غـړم غـړم کول، دروند اواز ایستل.

**غورزول** : وګورئ غورځول.

**غورزیدل** : وګورئ غورځیدل.

**غور مشتې** : غرمشتې، غورمشکې، پرزونې، انګتې، انـډی، مستـې، خرمستې، غویمې، غویمنډ.

**غورمکه** : ګرمکه، په اوړي کښې په بدن راختونکې وړې او نرۍ دانې. ګرمکې.

**غور نیکهٔ** : قر نیکهٔ، د نیکهٔ پلار یا نیکهٔ.

**غورول** : منتخب کول، ټاکل.

**غوره** : خوښ، ښـهٔ، بهتر،

منتخب، تاکلے.
**غوره تپه** : ناګهانه، ناڅاپه، په بې خبرۍ کښې. غره تپه.
**غوریالے** : د مرۍ د غر مریض.
**غورۍ** : مجمه، غرۍ.
**غوړ** : روغن لرونکے، مالدار، دولتمند.
**غوړ** : لـه کـچو، وازدې یا داسې نورو شیانو نه حاصل شوے روغن.
**غوړاڅکے** : یو غرئیز بوټے چې د خشاک دپاره پکارولے شي.
**غوړګه** : د ونې یا د بوټي د ځانګې پـه سر کښې نوې ټوکیدلې پاڼې چې لا پوره خورې شوې نهٔ وي. پنډۍ، سپینه، پرکے.
**غوړمال** : خوشامدګر، چاپلوس، بوس بادو، چاپړوس. ښائسته جینۍ یا هلک.
**غوړول** : پـه څهٔ څیز غوړي یا تیل لګول، د روغني څیز، غوړو یا تیلو مالش ورکول. خوړول، ویړول.
**غوړه** : نرمه خبره، پسته وینا. د غوړ مؤنث.
**غوړي** : غـوړ، لـه وازدې، کچو یا نباتاتو نه حاصلیدونکې روغن.
**غوړیدل** : پـه روغني څیز باندې مالش کیدل، څربیدل، خوریدل، ویریدل، سپړدے کیدل، غوټۍ ګل کیدل.
**غوز** : هغه پرده یا وازده چې د کولمو نه تاؤ راتاؤ وي.
**غوز** : اکوړ، یوه ونـه او د هغې میوه، غُز.
**غوزارول** : ګوزارول، ارتاوول، غرځول.
**غوزاریدل** : ګوزاریدل، ارتاویدل، غرځیدل.
**غوزه** : د پـومبې خول، ډوډه، د پومبې غوټه.
**غوزے** : ترخ، تخرګ. د څهٔ څیز دومره مقدار چې په

ترخ کښې راشي.
**غوړے** : لوړے مشک.
**غوړ ایستل** : غوړباسل، د چا خبرې په پته اوریدل.
**غوړ باسل** : غوړ ایستنه کول، غوږ وړ په کول. د چا پټو خبرو ته په پټه غوږ نیول
**غوړن** : د غوړونو خاوند. په څۀ خبره اګاه، خبردار.
**غوړین** : یولس ډزے ټوپک، سرپوښ ټوپک.
**غوړیدل** : خبریدل، واقف کیدل.
**غوشائ** : غشوے، غوشان، وچه سوټه، غوشو، غوشیه، د غوا، میښې او نورو څاروو هغه فضله چې وچه شي.
**غوشوے** : وګورئ غوشائ.
**غوښت** : ږدن، د شموخې په شان د نرو نرو دانو یوه غله چې زیات تر د مرزانو خوراک ګنڅلے شي، د باجرې نه ئ دانه وړه وي.
**غوښه** : د حیواناتو د هډوکو نه چاپیره پسته ماده. مال متاع.
**غوغا** : شور فریاد سوړ زوړ، ژړا انګولا
**غوغو** : جماع، بدفعلي.
**غول** : جماعت، ګڼه، ډله، غونډه، د سړو جورمه، جمعیت، لښکر.
**غول** : چا سره بدفعلي کول، جماع کول، غو کول، غوول.
**غولانځ** : د غوا میښې وغیره د پیو ورکولو اندام، د حیوان تیونه.
**غولانځه** : وګورئ غلانځ.
**غولتي** : فریب، ټګي، غلا سره یو ځاے استعمالیږي. لکه غلا غولتي.
**غولن** : ډیر غل کونکے، ویریدونکے، بزدل، غلاتے ډرن، ټرن.
**غولنکې** : یو قسم ننکی چې په ستر ګه راخیژي، غولوڼے، غولنه، غولنګه.

**غولول** : دوکه کول، دوکه ورکول، ټګي کول.
**غلوونکي** : غلنکي، غولنکي، غولنګ.
**غوله** : شاتير. ګوله، ګرګه، برغنډے، غنډ منډ لرګے، د پنير اندازه کولو پيمانه.
**غوليدل** : دوکه کيدل، فريب کښي ګيريدل.
**غولی** : لويه وله، غټ لښتے، ګرداب، ځرځاؤ، غړومبی.
**غولی غولی** : چپې چپې، چپې د پاسه چپې، ډلې ډلې.
**غولے** : انګن، د کور دننه د کوټو مخې ته ميدان، صحن، ميدان، حويلی.
**غولے** : نامرد، نامړد، بې غيرته سړے، د ښاغلے متضاد.
**غولے** : مفعول، چې غوولے شوے وي.
**غومبرے** : بارخو، باړخو، رخسار، مخ، اننګے، اننګي.
**غومبسه** : زنبور، بامبره، بمبره، ډمبرګی، ډمبره، ډنډاره، غومبسکه، ډنډاره مچی.
**غونجا** : کم عقل، بيکاره، بې فائدې.
**غونچه** : غنچه، غنچک.
**غونډي ستن** : هغه غټه ستن چې غونډي، کټې او د بوجو خلې پرې ګنډلے شي.
**غونډے** : دوه برخه ګنډلے شوې بوری، غنډے، بوری.
**غونډ** : ډله، جماعت، د افغانستان د فوځ يوه ډله چې د غونډ مشر لاندې وي. د ونې ناتراشلې شوې تنه چې ابادی کښې لګولے شي.
**غونډاري** : غونډ مونډ کاڼي، ټکی، وړې وړې کلچې.
**غونډ راغونډ** : خپلو کښې راجخت شوي، راغونډ شوي.
**غونډسکه** : پنډوس، منډوس.
**غونډک** : غنډل، کنډل، لړمی، غنډه.
**غونډ مونډ** : ګول، بيخي غونډ، چيت، ټيټ، مندرے،

چيتکے، د وړو کي قد. څرب، شلنډ، غټ کټ.

**غونډول** : جمع کول، غنډول، راټولول، يو ځاے کول. ګول کول، رانغاړل. فيصله کول.

**غونډه** : جمعيت، اجتماع، ټولے، ټولنه، مجلس، ټولګے. د خاورې وړوکے چم، غونډارے،

**غونډيدل** : جمع کيدل، راټوليدل، يو ځاے کيدل، ګول کيدل، رانغاړيدل، فيصله کيدل.

**غونډۍ** : وړوکے غر، د کانو وړوکے غر. د خاورو پخه ډيرى، ختې.

**غونډے** : ټيټکے، ټيټ، لنډ، غونډکے، ګول،

**غونه** : د وجود نري او باريک ويښتۀ، تور ويښتۀ، زومبه، وړى، خورمه، د ويښتو سورے، مسام.

**غوني** : ويښتۀ، غونه، پوستکے.

**غونے** : لاحقه چې د اسم نه پس راځي او د څۀ صفت اظهار پکښې کيږي لکه ژړه غونے وغيره.

**غوول** : غول، د نارينه د زنانه يا د نارينه د نارينه سره هم بستري کول، چاته شرم اړول، چاله ستر ګې ټيټول.

**غويمنډ** : د څاروو ټوپونه وهنه، په غوايانو غوبل کونه، ګنه ګونه، شور شغرب، افراتفرى.

**غويمه** : وګورئ غويمنډ. ډير سپي چې واريږې سپى پسې وي. د غوا وار راوړنه.

**غوے** : د غوا مذکر. احمق، کم عقل. بې وقوف.

**غين** : غين، ذکر، ډګه، غن، د سړي آله تناسل.

**غين** : د پښتو د حرف "غ" تلفظ.

**غيب** : د ستر ګو نه پناه، په نظر نۀ راتلونکے، غير موجود.

پټ، پرده کېښې.
**غیبانه** : د غیبو، غیبي، پټ، پراسرار.
**غیبانهٔ** : غیب عالم، پیریان،
**غیبت** : پشې شا د چا عیب بیانونه. د چا په غیر موجودګی کښې په هغهٔ پسې خبرې کونه،
**غیبي** : اچانک، سمدستي، ناګهانه. په نظر نهٔ راتلونکے،
**غیر** : د خپل متضاد، پردے، بیګانه، باري، نااشنا، بهرنے.
**غیرت** : ننګ، شرم، پښتو، حمیت، مړانه، بهادري.
**غیرتمند** : د غیرت نه ډک، غیرتي، ننګ کونکے، بهادر.
**غیرتي** : غیرت کونکے، بهادر، تکړه، ننګ کونکے، مړنے.
**غیره** : شاړه، صحرا، بیدیا. قبائلي علاقه.
**غیریت** : بیګانه توب، اجنبیت.
**غیږ** : چا نه دواړه لاسونه تاوونه، غاړه، بغل، خوا. خولی، جولی، د دواړو لاسونو نه د څهٔ څیز د ایښولو یا کېښینولو دپاره جوړ ځاے.
**غیږ په غیږ** : غاړه په غاړه، سینه په سینه.
**غیظ** : قهر، غضب، غصه.
**غیل** : غوجل.
**غیله** : رمه، ګله، ګډې بزې،
**غیلي** : ګډي بزې، رمې.
**غیمه** : هغه غوا چې وار ئې راوړے وي.
**غینده** : غونکے، بدکاري کونکے، زناکار.
**غیندې** : زناکاره.
**غینډه** : نارے، ونډه، د ښاروو یوه خوراکه.

**ف** : (فې) د پښتو د حروف تهجي دیرشم حرف دے د ابجدو په حساب ئ شمیره اتیا (۸۰) ده.
**فاتح** : فتح کونکے، بریالے، گټندوئے، سوبمن، شروع کونکے، پرانستونکے،
**فاتحه** : شروع، آغاز. د قرآن کریم د وړومبي سورت نوم. د مړي په حق کښې دعا غوښتنه،
**فاجر** : اواره، بدنام، بدکار، بدکرداره، فاسق، ناشولت، لونډ، گناهگار.
**فاحش** : په خرابۍ کښې د حد نه وتلے، غاوره. پوچ گو، پوچ خلے، موذي، ضرر رسونکے، بخیل، کروټے. بدکار، بې حیا، بې شرمه.
**فاحشه** : د فاحش مؤنث.
**فاخته** : قمرۍ، کورکوړۍ، کرکوړۍ، گوگوشتکه، یوه مرغۍ.
**فاخر** : غرور کونکے، فخر کونکے.
**فاخره** : د ډیر قیمت، قیمتي، گران.
**فارس** : د ایران د ملک یوه حصه. د ایران زوړ نوم. سور،
**فارسي** : د ایران ژبه، د ایرانیانو مورنۍ ژبه.
**فارغ** : ازاد، وزگار.
**فارغ البال** : بې غمه، خوشحال، بې فکره، ازاد، هغه څوک چې په ارام او سکون سره وخت تیروي.
**فارغول** : ازادول، وزگارول، نوکرۍ نه ایستل، رخصتول، بې غمه کول.
**فارغیدل** : فارغ کیدل، وزگاریدل.
**فارق** : جدا کونکے، په غلطه او سمه کښې تمیز کونکے، بیلونکے.
**فارم** : شکل، هیئت، پیکر.
**فاروق** : په حق او باطل کښې فرق کونکے، بیلونے، د حضرت عمر رضي الله عنه

لقب.
**فاسد** : موذي، شریر، برباد، تباه، وران، ویجاړ.
**فاسق** : بدکردار، نهٔ منونکے، بدنام، نافرمان، گناهگار.
**فاصل** : بیلونکے، جدا کونکے، داسې خط چې دوه لکیرې جدا کوي، خط فاصل.
**فاصله** : د دوؤ ځیزونو تر منځـه ځاے، لرې والے، جدائي.
**فاضل** : کامل، پوه، پوئ، عالم، استاد. زیاتي، باقي مانده. د فضیلت خاوند، د مرتبې خاوند، هوښیار، قابل.
**فاعل** : کار کونکے، فعل کونکے، اغلام کونکے،
**فاقه** : اوږے پاتې کیدنه، نهره، لوږه، خوراک نهٔ کونه، شوم، احتیاج، نهار.
**فال** : پیش گوئي، پیشن گوئي، د حادثاتو په باره کښې پیش گوئي. د راتلونکو حالاتو د مخکښې نه وینا کونه.
**فال بین** : منجم، نجومي، فال کتونکے.
**فالتو** : د ضرورت نه زیات، سوائي. خالي.
**فالج** : یوه بیماري چې د بدن په یوه حصه ولګي نو هغه حصه بې حسه شي.
**فالوده** : د ناشستې د غنمو مینځو، میده، واورې چینو او پیو وغیره نه جوړ خونده ور خوراک،
**فالي** : فال کتونکے، فالگر، فال ایستونکے.
**فام** : خط و خال. یوه لاحقه چې په پښتو کښې د بڼ په معنې استعمالیږي لکه سیاه فام، سفید فام وغیره.
**فانوس** : پانوس، لالټین، څراغ، په لاره کښې لګیدلے څراغ.
**فاني** : ختمیدونکے، ډیر زوړ، بوډا.
**فائده** : نفع، آمدن، نتیجه، اثر، سرمایه.

**فائده من** : فائده ور كونكے، نفع ور كونكے.
**فـائز** : رسيـدونـكے. غالب، كامياب.
**فائض** : فائده رسونكے، فيض رسان، ډير، پريوانه، ډير اعليٰ.
**فائق** : د وچتې مرتبې خاوند، بهتر، بر گزيده
**فتا** : زړۀ ور، تكړه، ځوانمرد، بهادر، زلمے، ځوان.
**فتاح** : غالب، فتح ور كونكے، بـريـالـے، د الله تـعـالـيٰ يو صفتي نوم. پرانستونكے.
**فتح** : كـاميـابي، غلبه، گټه، برے. پرانستنه. زور، فتحه.
**فتحه** : غالب، پورته، زور، د حرف دپاسه علامت.
**فتراک** : يـو رسى چې اس بـاندې د ښكار د ځيزونو تړلو دپاره تړلے شي.
**فتـنه** : ازمـائـش، ازميښت. حيـراني، تعجب، اريانى. فساد، جنگ.
**فتور** : مړاوے شوے، گړبړ، خلل، فساد، نقص، بې ترتيبي، خرابي، فتنه، هله گوله.
**فتويٰ** : د شـريعت حكم، د شريعت فيصله.
**فټ** : د گـز دريـمه حصه، د دولسو انچو لوے والے.
**فـټافټ** : سـمدستي، فوراً، ژر تـر ژره، د سـترگو پـه رپ كښې، په هغه درنگ، په هغه ساعت، ان پن.
**فټبال** : يوه لوبه چې پكښې بال په پښو وهلے شي.
**فـجار** : د فـاجـر جـمع، بد كاران،
**فـجر** : بهـول، بيـول. سپين والـے، سپيدي، د سحر رڼا، د نور شغله، سحر.
**فجور** : بـدلـمـني، بدنامي، بدكاري، بداخلاقي.
**فـحـش** : بـې شـرمـي، د خـرابـى حـد نـه وتل، كنځل كونه، پوچې او گنده خبرې.
**فحاش** : پوچ گو، گنده وينا كونكے، بدزبانه.

**فحاشي** : بدزباني، پوچ گوئي.
**فخر** : تکبر، غرور. وياړ.
**فخري** : غرور کونه، وياړ کونه، تکبر کونه، د فخر، د وياړ.
**فدا** : قرباني ور کونکے.
**فداکاري** : قرباني، د يو خاص مقصد دپاره د خپل سر او مال نه تيريدنه.
**فدائي** : قربانيدونکے، د چا دپاره سر ور کونکے.
**فدوي** : قربانيدونکے، خاريدونکے.
**فديه** : بونګه، هغه رقم چې د قيدي د پريښودو دپاره ور کړے شي. سربها، صدقه، سرجاړے،
**فرات** : د عراق په ملک کښې د يو سيند نوم.
**فراخ** : وسيع، ازاد، خوروور، پلن، لوے.
**فراخه** : لويه، ارته، پلنه، وسيعه.
**فرار** : تښتيدنه، تيښته، زغل، منډه کونه.
**فراري** : تښتيدونکے، تښتيدلے، هغه څوک چې د قانون نه پټ شوے وي، مفرور.
**فراز** : وچت، پورته، وچتوالے، لوے والے، ارت، کشاده.
**فراست** : هوښياري، ځيرکي، دانائي، عقلمندي، فهم، زيرکي.
**فراش** : فرش غوړونکے، غوړونے، ويړونے هغه څوک چې د بادشاه يا د يو امير په محل کښې د فرش غوړولو دپاره مقرر شوے وي.
**فراغ** : بيکاري. اسودګي، فارغ، وزګار.
**فراغت** : فرصت، بيکاري، اسودګي، خوشحالي، ارام.
**فراق** : جدائي، هجران، بيلتون.
**فراموش** : هير شوے، د ياد نه وتلے، هير.
**فراوان** : ډير زيات، د حد نه وتے، ډير، بيسيار.

**فراهم** : راټول، غونډ، پنډ، یو ځای کونه، حاصلونه، موندنه.
**فرائض** : د فرض جمع، مقرر شوی کار، د الله تعالیٰ حکمونه.
**فربه** : څورب، تازه، مضبوط، غټ.
**فربهي** : مضبوطي، تازه والی، څربښت، څورب والی، غټوالی.
**فرج** : چاود، سوری، درز. د ښځې د شرم ځای. رڼائي، د مخې رڼا. د ویرې ځای.
**فرج** : خوښي، خوشحالي، له غمونو خلاصیدنه.
**فرجام** : انجام، اخر. مبارکي، فائده، نفع، وروستو.
**فرحت** : خوشحالي، سرور. ښادي.
**فرخنده** : خوش نصیبه، خوش قسمته، بختور، ککجیر، نیک مرغه.
**فرد** : یواځې، تنها. په نظم کښې یو بیت، فهرست.
**فردا** : راتلونکې سبا. راتلونکې ورځ، ګانده.
**فردوس** : باغ، جنت، بهشت،
**فرزانه** : هوښیار، څیرک، عقلمند، د دیوانه متضاد.
**فرزند** : پسر، ځوی، زوی.
**فرزندي** : ځوی جوړیدنه.
**فرس** : اس.
**فرستاده** : قاصد، پیغام رسان، استاځی، لیږلی شوی.
**فرسخ** : فرسنګ، تقریباً د شپږ زره ګزه فاصله.
**فرسنګ** : درې میله فاصله.
**فرسود** : زړیدنه، بیکاره کیدنه.
**فرسوده** : زوړ، زړه، د کاره وتی.
**فرش** : فرش، غالیچه.
**فرشته** : پیغام رسونکی قاصد، یو نوراني مخلوق.
**فرصت** : وخت، موقع. فراغت، رخصت.

**فرض** : د خدایے حکم، مقرر شوے کار، ضروري حکم، تصور کونه، گڼنه، پوهیدنه، ضروري، لازمي.
**فرط** : کثرت، زیاتوالے،
**فرعون** : د مصر د یو پخواني بادشاه لقب. مجازاً ظالم، غاوره، کبرژن، سر کشه.
**فرق** : تمیز، جدائي. فاصله، کمے زیاتے،
**فرقان** : د رښتیاؤ او دروغو په منځ کښې فرق کونکے، فرق کونکے، قرآن مجید.
**فرقت** : جدائي، بیلتون، فراق، هجران.
**فرقه** : گروه، ډله، جماعت، قبیله،
**فرلانګ** : د میل اتمه حصه، د ۲۲۰ گزو فاصله.
**فرمان** : حکم، امر. وینا.
**فرمان بردار** : تابعدار، د حکم پابند، منونکے.
**فرمائش** : په خپله خوښه د یو شي د جوړولو غوښتنه، حکم، امر، فرمان،
**فرمائل** : حکم کول، د څهٔ کار په باره کښې حکم کول، ارشاد کول.
**فرموده** : هغه خبره چې حکم ئ شوے وي. قول، بیان.
**فرنګ** : براعظم یورپ، د براعظم ایشیا د نمر پریواتهٔ طرف ته یو براعظم.
**فرنګے** : د یورپ باشنده، د فرنګ وسیدونکے، .
**فرني** : یو قسم نرم او خوږ خوراک.
**فروري** : د عیسوي کال دویمه میاشت.
**فروع** : د فرع جمع، څانګه، اصطلاحاً علم فقه.
**فروزان** : چمکدار، روڼ.
**فروش** : د لاحقې په طور استعمالیدونکې توړے چې د اسم نه پس لګي او اسم فاعل ترې جوړوي، لکه کتاب فروش، ګل فروش، سبزي

فروش.
**فروغ** : چمک، رنا، روشنائي، روښنائي، خلا، ځرکا، نوم، شهرت، سيوا کيدنه.
**فرومايه** : کمينه، رذيل، ناکچات، پاسو، سپوتک، کچه.
**فرهاد** : د يو مشهور عاشق نوم چې په کوهکن هم مشهور دے.
**فرهنګ** : عقل، پوهه، بزرګي. ډکشنري، د لغت کتاب، ادب.
**فرهنګي** : د فرهنګ سره متعلق.
**فرهنګيالے** : دانا، هوښيار، عقلمند، دانشور،
**فرياد** : شور، شکايت، شکوه، واويلا، آه، د تکليف او سختۍ ژړيروي او اسويلي.
**فريادي** : فرياد کونکے.
**فريد** : بې مثاله، بې نظيره، د يو بزرګ نوم، د شير شاه سوري اصلي نوم.
**فريق** : ګروه، جماعت، ټولے، ډله، قام.
**فريقين** : دوه ډلې، دوه جماعتونه، دوه فرقې. دوه مخالف ټولګي، مدعي او مدعا عليه.
**فريب** : دوکه، حيله، بهانه، چل، مکر،
**فريب ژن** : فريب کونکے، دوکمار.
**فريبنه** : مکاره، د ټګ ښځه، دوکه بازه، مکرى، مکرژنه.
**فريبي** : فريب کونکے،
**فريفته** : دوکه خوړونکے، دوکه شوے. عاشق، مئين.
**فزع** : نوحه، فرياد، واويلا. ويره، ډار.
**فسات** : فساد.
**فساتي** : پساتي، شري، ورانکارے، فسادي.
**فساد** : فسات، پسات، شر، شرارت، جنګ.

**فسادي** : وګورئ فساتي.
**فسانه** : افسانه، قصه.
**فسخ** : پرېښودنه، ماتونه، بيه راګرځونه. اراده بدلونه، واپس راوستنه، سر ټکونه. ظلم زياتے،
**فسرده** : مړاوے شوے، شوک شوک.
**فسق** : د خدائے د حکم خلاف کار کونه. بداخلاقي، بدکار، بدکاري،
**فسق و فجور** : ګناهونه، د الله پاک نافرماني.
**فسون** : افسون، اوده، پاړه. ټکي، مکر.
**فشار** : دباؤ، زور، سياسي دباؤ، د ويني دباؤ.
**فصاحت** : د کلام خوبي، خوش کلامي، بلاغت، ژبه ورتيا، ښي طريقې سره خبره کونه.
**فصل** : جدائي، جدا کونه، بيلونه. وخت. موسم، د کر حاصل پيداوار.
**فصل** : د کتاب يوه حصه، بند، حوړ.
**فصلانه** : فصل په فصل. د فصل.
**فصلي** : موسمي څيزونه، داسې ميوې او غله چې په خاص موسم کښې کيږي، فصل سره م: موب.
**فصيح** : خوږ اواز، ترنم، خوږ اوازه، خوش بيانه، خوش تقرير د،
**فصيل** : ښارپناه، شيرازه، مندور.
**فضا** : فراخي، پلنوالے. محيط، ماحول، وت، تشه، کيفيت، رونق.
**فضائل** : د فضيلت جمع، ښۀ خويونه. علوم.
**فضائي** : د فضا سره متعلق، هوائي، خلائي.
**فضل** : بخشش. زياتے. په علم کښې زياتے. دانائي.
**فضلا** : د فاضل جمع. عالمان، دانشوران.

**فضول** : زیاتوالے، ډیروالے، کمینه، سپک، رذیل، بې هوده، پرت. ارتاویزه.
**فضیحت** : بې شرمي، رسوائي، ندامت، بدنامي.
**فضیلت** : خوبي، بزرګي، زیاتوالے، هوښیاري، کمال.
**فطر** : روژه ماتونه، افطاري، روژه ماتے. شروع کونه، اغاز، شلونه، پیدا کونه.
**فطرت** : پیدائش، ختهه، پیداوښت، خمبیر، خمیر، طبیعت، طبع.
**فطرتاً** : فطرتي طور، قدرتي، د فطرت له مخې.
**فطري** : قدرتي، قدرتاً، پیدائشي، طبعي.
**فعال** : کامل، ډیر زیات کار کونکے، چست و چالاک، منظم، پیاوړے.
**فعالیت** : مهارت، چستي، چالاکي، تکړه توب.
**فعل** : کار، کړه، چاره، کردار، عمل، شوے کار.
**فغان** : شور، فریاد، واویلا، ګیله، شکایت، افسوس، آه.
**فق** : مراوے، حیران و پریشان، زیړ.
**فقاهت** : هوښیاري، دانائي، خبردارے حاصلونه، پوهنه.
**فقدان** : ورکیدنه، نیشت والے، نیشت.
**فقر** : نیستي، احتیاج، درویشي، عاجزي، محتاجي.
**فقره** : عبارت، جمله، د ملا هډوکے، د ملا مرئ.
**فقط** : بس، کافي، یواځې، صرف.
**فقه** : علم شریعت. تلاش، جستجو، تحقیق، پوهنه، فهم.
**فقها** : د فقیهه جمع، ډیر پوه، د علم شریعت عالمان.
**فقیر** : خوار، محتاج، سائل، عاجز، غریب.
**فقیري** : خواري، عاجزي، نیستي، غریبي.
**فکاهت** : مذاق، مسخرې، خوش طبیعتي، مزاح، ظرافت.

**فکر** : خیال، سوچ، اندیښنه. فهم، عقل، غم، چرت، احتیاط.
**فکرمن** : فکرمند، اندیښناک،
**فګار** : زخمي، مجروح، ژوبل، خوږ.
**فلاح** : حفاظت، کامیابي، خوشحالي.
**فلاحت** : زراعت، کرکرونده.
**فلاسفه** : د فلسفي جمع.
**فلان** : د چا نامعلومه یا غیر موجوده سړي یادولو لفظ، غیر مقرر سړے یا څیز، فلانکے، فلانے.
**فلانکے** : وګوره فلان.
**فلز** : کچه دهاتونه لکه تانبه، زر وغیره.
**فلزي** : د دهات نه جوړ.
**فلس** : د تانبې یوه وړه سکه.
**فلسفه** : علم موجودات، د حکمت علم.
**فلسفي** : دانشور، د فلسفې عالم.
**فلفل** : تور مرچ.
**فلق** : د سحر سپیدي.
**فلق** : چول، شلول.
**فلم** : سینما، بائیسکوپ.
**فله** : د غوا میښې وغیره د درې ورځو پئ.
**فلیته** : د څراغ باتي، پتیله، باتي.
**فلیل** : د عطرو په شان یوه خوشبویه تیل.
**فم** : خلهٔ.
**فن** : هنر، پوهه، تدبیر، حیله. مال، ارټ.
**فنا** : ورکیدنه، مرګ، تباهي، زوال.
**فنا کول** : ختمول.
**فني** : فن پورې مربوط.
**فواحش** : د فاحشه جمع. بدکارې ښځې، د بداخلاقی کارونه.
**فواد** : زړهٔ، ضمیر، قلب.
**فواره** : د اوبو چینه، د دارې په شکل د اوبو راوتنه.
**فواکهه** : د فاکهه جمع، میوې.

**فوائد** : د فائده جمع، ګټې، فائدې.
**فوج** : فوځ. لښکر، جماعت.
**فوجداري** : د فوج افسري. مجرمانه حرکت، جګړه، جنګ.
**فوجي** : د فوج فرد، فوځي.
**فوځ** : وګوری فوج.
**فوراً** : سمدستي، زر تر زره، دستي.
**فوري** : سملستي، زر، ناګهانه،
**فوفنا** : بيخي ورک، نابوده. ورانيدنه. ختميدنه.
**فوق** : وچت، پورته، ختلے، بر، پاس.
**فوقيت** : وچتوالے، بزرګي، برتري.
**فولاد** : د اعلیٰ قسم وسپنه.
**فولادي** : د فولادو نه جوړ، سخت.
**فولکلور** : اولسي ادبيات، اولسي پوهه،
**فولکلوري** : د فولکلور سره متعلق.
**فهرست**: فرد، اسم نويسي، نوم ليکے.
**فهم** : پوهه، عقل.
**فهميده** : دانا، هوښيار، پوه.
**فهيم** : ډير پوه، زيات پوی، د لوړے فهم خاوند.
**في** : په معنیٰ کښې د دننه، د غرمې نه پس د هر څۀ سوړے.
**في الحال** : دا وخت، اوس، في الفور، في الوقت.
**فياض** : فيض رسونکے، سخي، ځوانمرد.
**فيس** : هغه رقم چې طالب علمان ی سکول يا کالج کښې مياشت په مياشت يا کال په کال ورکوي. په کلينک کښې د ډاکټر د مريض د کتو اجرت.
**فيصد** : تناسب.
**فيل** : هاتي، اتي، يو مشهور غټ ځناور.
**فيلبان** : مهاوت، هاتي ساتونکے.
**فيلسوف** : فلسفي،

**فیروزه** : اسماني رنګ لرونکے یو کاڼے.
**فیروزي** : کامیابي، برے، غلبه. اسماني رنګ،
**فیشن** : ځان ښائسته کونه، ځان جوړونه، رواج، دستور.
**فیشني** : ځان جوړونکے، ځان ښائسته کونکے، ډولکے.
**فیصل** : منصف، فیصله کونکے. ثالث.
**فیصله** : قطع، پریکونه، ختمونه، انصاف، ډګري.
**فیض** : بخښل، خیر، مهرباني، نفع، فائده.

**ق** : (قاف) د پښتو د پتمې یو دیرشم حرف، د ابجدو په حساب ئ قیمت سل (۱۰۰) دے.
**قابض** : قبضه کونکے، قبضه کښې اخستونکے، نیونکے، هغه خوراک یا دارو چې قبض پیدا کوي.
**قابل** : منونکے، قبلونکے، پوه، هوښیار، دانا، ذهین، لائق، پوهه. اهل، موزون، وړ.
**قابلیت** : قابلتوب، لیاقت، هوښیارتیا، دانائي، موزونیت، ذهانت، لائق توب، اهلیت.
**قابو** : اختیار، طاقت، وس، محل، موقع، بلا وهلے، تیار، چمتو.
**قات** : قحط، وچکالي، هغه کال چې د غلې دانې کمے پکښې راشي. د چرګې شور، د چرګې اواز.
**قاتل** : قتل کونکے، خون کونکے،
**قاتي** : قحطي، قات، د خوراک څښاک نشتوالے.
**قادر** : د قدرت مالک، طاقتور، غالب.
**قار** : قهر، غصه.
**قارجن** : قهرژن، غصه ناک.
**قارغهٔ** : کارغهٔ، یو تور رنګے مردار مارغهٔ.
**قارون** : د یو بخیل دولتمند سړي نوم.
**قاري** : د قاعدې او د اصولو مطابق د قرآن شریف تلاوت کونکے. لوستونکے.
**قاسط** : ظالم، ستمګر، د حد نهٔ وتلے. نیاوړے، منصف، عادل.
**قاسم** : تقسیمونکے، قسم کونکے.
**قاش** : دړه، تړازه، ډکره، ټنکره.
**قاشق** : چمچه، کاشوغه، قاشوغه.
**قاشوغه** : چمچه، وړه څمڅې.

**قاصد** : پیغام رسونکے، سفیر، پیغام رسان، خرے،
**قاصر** : عیب ناک، مغلوب، مجبوره، نقصاني.
**قاضي** : منصف، جج، د زړهٔ بداوي شرعي فیصلې کونکے.
**قاضیان** : د قاضي جمع.
**قاضي القضاة** : مشر قاضي، د قاضیانو قاضي.
**قاطر** : کچر، قچر، خچر.
**قاطع** : پرې کونکے، ختمونکے، غخونکے.
**قاطن** : وسیدونکے، ځاے لرونکے، میشت، استیدونے. مقیم.
**قاعد** : ناست.
**قاعدتاً** : رسمي، اصولي.
**قاعده** : رسم، دود، طریقه، اصول، تره، آئین.
**قاف** : یو قسم سبزي. د یو غر نوم چې په ترانس کاکیشا کښې واقع دے. د حرف "ق" تلفظ.
**قافله** : کاروان، د سفر په حال کښې د سوداګرو، مسافرو وغیره ډله.
**قافیه** : هغه حرفونه او حرکات چې د شعر په اخر کښې راځي.
**قال** : خبرې، بیان.
**قالب** : شکل، بدن، ډانچه، سانچه، جسم.
**قالي** : وړوکے قالین.
**قالین** : د وړی لویه غالیچه، غالي، ذلین.
قالینچه : وړوکے قالین.
**قام** : قوم، ملت، ذات.
**قامت** : بدن، د بدن وړدوالے.
**قامولي** : قومولي، وروروليِ،
**قاموس** : ژور سیند. لغت، ډکشنري.
**قانع** : صبر کونکے، په خپل قسمت صبر کونکے،
**قانون** : دستور، آئین، طریقه، رسم، اصول.
**قانوناً** : دِ قانون او قاعدې مطابق.
**قانوني** : آئیني، اصولي،

رسمي، دستوري.
**قاهر** : غصه ناک، قهرناک.
**قائد** : بزرګ، پیشوا، سرخیل.
**قائل** : منونکے، اقرار کونکے، معتقد، قیلوله کونکے، د غرمې اوده کیدونکے.
**قائم** : مضبوط، پوخ، نیغ ولاړ.
**قائم دائم** : قائم، په خپل ځاے هم هغه شان، پوخ، په ځاے ولاړ.
**قایه** : خرمن، پوتخرے، پوټ.
**قب** : کُب، د غوئي یا اوښ څټ نه پورته وچته حصه.
**قبا** : لویه چپنه، لویه چغه، خلکه، خرقه.
**قباحت** : نقصان، عیب، ذلیل کار، بدي.
**قباړی** : ګنډی، ګډله، د مالوچو اندر که.
**قباله** : وعده لیکل، د مکان وغیره لیکلے شوې بیعه نامه.
**قبائل** : د قبیلې جمع، عوام، د خاندانونو مجموعه.
**قبح** : بدي، خرابوالے، نقصان.
**قبر** : ګور، د انسان ابدي کور، مړستون، ډوری، کیڅ.
**قبرستان** : مقبره، هدیره، ادیره، ګورستان.
**قبض** : بندیدنه، قبضه کېښې راوستنه، د خیټې یوه بیماري.
**قبضه** : لاس کښې اخستنه، خیته اچونه، نیونه،
**قبضیت** : پیچش، قبض، د لویو بولو نهٔ کیدنه.
**قبل** : لرغون، اول، په شروع کښې، وړومبے، سابقه، وړاندې، مخکښې.
**قبلول** : منل، منظورول، اخستل.
**قبله** : کعبه، بیت الله شریف، هغه ځاے چې مسلمانان ورته د مونځ په وخت مخ کوي.
**قبلئیز** : د نمرپریواتهٔ د طرف، قبلې ته منسوب.

**قبلیدل** : منظوریدل، منل، منلې کیدل.

**قبول** : منښه، منظور، رضا، خوښه، خوښ.

**قبیح** : نامناسبه، بدرنګه، خلاف، د اخلاقو خلاف، ناوړه، نابوره.

**قبې** : کبې، ملا تیتې، شاتغې.

**قبیل** : قبیله، قوم، خیل، خاندان، اولس،

**قبیله** : خاندان، د ډیرو خاندانونو مجموعه.

**قبیلوي** : د قبیلې، قبیلې سره متعلق.

**قپ** : وازه، بې غابښو خلهٔ، کړشپ.

**قپې** : وازه خلهٔ لرونکې، کبې.

**قتال** : جنګ، جګړه.

**قتکاڼې** : سخت کاڼې، د شګې خاورې نه جوړ شوې کاڼې. کتکاڼې.

**قتل** : مړ کونه، وژنه، ختمونه، مرګ.

**قتلول** : وژل، قتل کول، مړول، مړ کول.

**قتلیدل** : وژلې کیدل، مړ کیدل، د بل د لاسه مړ کیدل.

**قتیل** : مړ کړې، قتل شوې، مقتول، وژلې.

**قتی** : په زنه کښې وړه شان کنده.

**قتې** : بال، د خرمنې یا مالوچو نه جوړ شوې بال، پنډوس،

**قجیر** : کجیر، ګرګس، غښتلې، کلک پلک، ښهٔ او کامل سړې، صادق سړې.

**قچر** : خچر، بې شرمه، بې حیا، لوفر.

**قچرې** : یو قسم نمده چې د زین لاندې اچولې شي.

**قحبه** : رنډۍ، ورانه ښځه، بدکاره، فحاشه.

**قحط** : قات، ډوکال، د غلې کمې، وچکالي، ګراني، قحطي، اړاني.

**قحط سالي :** د قات کال، د قحط کال، وچکالي.
**قحطي :** ګراني، خشک سالي، قاتي.
**قد :** د بدن وړېدوالے، قامت.
**قدر :** عزت، شان، قيمت، مقدار، اندازه.
**قدرت :** اختيار، طاقت، قوت، توان، زور.
**قدرتي :** فطرتي، اصلي، خدائي، له خايه.
**قدردان :** قدر کونکے، په قدر پوه.
**قدرمن :** د قدر لائق، د قدر قابل.
**قدرمند :** وګورئ قدرمن.
**قدغن :** رکاوټ، پابندي، تاکيد، کتغن.
**قدم :** ډير زيات زوړوالے، د وخت او زمانې نه پخوا والے، زړيدنه.
**قدم :** د پښو نښه، ګام، يو قدم پسې بل قدم.
**قدما :** د قديم جمع، د مخکښې زمانې، سابقه، وړاندينې، زاړهٔ.
**قد وقامت :** دړه، ډيل ډول، ونه او جثه،
**قدير :** د الله تعالیٰ يو صفتي نوم، طاقتور، د طاقت خاوند، بااختياره،
**قديم :** د مخکښې زمانې، د وړاندې وختونو، لرغونے، وړومبے.
**قديمي :** زوړ، پخوانے، د مخکښې وختونو.
**قرابت :** نزديکت، رشته داري، يو بل سره خپلولي.
**قرار :** اطمينان، سکون، ارام، مطمئن، قلار، غلے، چپ.
**قرار داد :** وعده، فيصله، تړون.
**قراره شومه :** قلاره شومه، شومه دم، هغه وخت چې شپه پخه شي.
**قراري :** ارامي، قلاري، چپتيا، خاموشي.خير خيريت.
**قراول :** د فوځ هغه دسته

چې د نګرانۍ په خاطر د لوړ فوځ نه مخکښې روانه وي. سروانډوے.

**قران** : د قران اصلي معنيٰ نزدې کیدنه ده. دلته ترې مطلب د نحس ستورو یو ځاے کیدل او په نتیجه کښې مصیبت دے.

**قرآن** : د الله پاک آخري کتاب، د مسلمانانو مقدس کتاب، کلام الله، فرقان.

**قرأت** : لوستنه، وئینه، لست.

**قرائن** : د قرینه جمع، وګورئ قرینه.

**قربان** : ځار، نثار، فدا، جار.

**قرباني** : د الله په لار کښې څاروے حلالونه، حلاله، ذبحه، د قربانۍ عمل، ایثار.

**قربانیدل** : نثاریدل، ځاریدل، فدا کیدل، د الله په لار کښې صدقه کیدل،

**قربت** : نزدیکت، نزدې والے، قرب.

**قرت** : وچ پنیر، قروت، کروت، وچې کړې شوملې.

**قرص** : ګول چکۍ، ټیکلی، ټیکله، ګولۍ، کلچه.

**قرض** : بدله، دین، پور،

**قرض دار** : مقروض، چې قرض ورپورې وي.

**قرضه** : قرض، پور.

**قرطاس** : کاغذ، لیک پاڼه.

**قرعه** : پچه، هسک، خسنے.

**قرق** : ضبطونه، منع کونه، ودرونه، سخت رکاوټ.

**قرقره** : طره، د مستۍ په وخت د غوئې وغیره لکۍ نیغونه، د مارغهٔ د سر د ویښتو خونډے.

**قرمزي** : سور رنګ.

**قرن** : پشت، صدي، یوه اندازه چې سل کاله فرض کړے شوې ده.

**قرنا** : اصل تورے خرنا دے.

لويه شپيلی، بګل، بيګل، توری.

**قره قل** : يو قسم تهوپی چې د ګلوري د څرمنې نه جوړولے شي.

**قريب** : خوا کښې، متصل، نزدې، رشته دار، همسايه.

**قريباً** : اندازتاً، نزدې نزدې.

**قريبي** : نزدې، نژدې، رشته دار.

**قرين** : يار، دوست، ملګرے، هم نشين، نزدې، خوا کښې، جخت، سره. نښه، علامه،

**قرينه** : اثر، علامه، علامت. وجه، سبب، يو شان.

**قريه** : کور، کلے، موضع.

**قريش** : د عربو يوه معززه قبيله.

**قړتن** : کړتن، کړتو، هغه څوک چې ډيرې کړتې کوي. فضول خبرې کونکے.

**قړتو** : وګورئ قړتن.

**قړميزن** : هغه څوک چې هر وخت ئې پوزه د ګړينګ نه ډکه وي، بې سليقې سړے.

**قړميزي** : د پوزې ګندګي، ګړنګ، ګړينګ.

**قزاق** : لاره وهونکے، د يو قوم نوم.

**قزلباش** : د سور سر خاوند، د مغلو سپايانو هغه ګروپ چې سرې تهوپی به ئې پسرولے.

**قست** : قصد، اراده، نيت، د يو کار کولو پخه اراده.

**قسر** : بيګار، جبراً کار اخستل، بغير پيسو کار کول.

**قسط** : انصاف، نياؤ، حصه، برخه، محصول، ټيکس.

**قسط** : د قرض په پيسو کښې مقرر شوے ميعاد.

**قسم** : شان، څير، توګه، راز، نوع، ډول، رنګ، هسې.

**قسم** : سوګند، ګو، حلف، لوړه، لو.

**قسمت** : نصيب، د نصيب ليکلے، تقسيم، برخه، ويش ونډه، د صوبې يوه برخه.

**قسمتي** : خوش قسمته،

بختور.
**قسم قسم** : رنگ رنگ، ډول ډول،
**قسمي** : قسم یا سوگند ور کړے شوے.
**قشقاش** : خشخاش، قاشقاش.
**قصاب** : غوښه خرڅونکے، حلاله کونکے،
**قصابي** : د قصاب کار او پیشه.
**قصاص** : خون بها، د مرگ په بدله کښې مرگ.
**قصائد** : د قصیدې جمع، هغه نظم چې پکښې د چا تعریف شوے وي.
**قصبه** : وړوکے ښار، لوے کلے.
**قصد** : اراده، نیت، قست، توجه، د څهٔ کار کولو دپاره تیاریدنه.
**قصداً** : ارادې سره، په نیت، په اراده.
**قصدمن** : اراده کونکے، د بدخواهۍ اراده کونکے.
**قصدي** : قستي، ضدي، کستمن، قصدمن.
**قصر** : محل، ماڼی.
**قصر** : کمے، نقصان، په سفر کښې د مونځ لنډونه.
**قصص** : د قصې جمع، قیصې.
**قصور** : جرم، غلطي، گناه، خطا، تقصیر، خطائي.
**قصوروار** : هغه څوک چې قصور ئې کړے وي.
**قصه** : نقل، قیصې، سرگزشت، قضیه، جگړه.
**قصیده** : د پښتو د هډو کې مغز، د نظم یو قسم چې په کښې د چا تعریف یا خراب والے بیان شوے وي.
**قضا** : حکم، د مخلوق په باره کښې د الله حکم، ویه، ویے، پاتې، ناغه، د خدائے کړهٔ، ازل لیک.
**قضائي** : اتفاقي، د مرگ راتلنه، د قضا، د قضا سره

متعلق.

**قضیه** : جگړه، فساد، معامله، واقعه، پیښه.

**قط** : د قلم څوکه پریکونه، کټ کونه، هډو، هیڅکله.

**قطار** : لائن، لین، صف، ړی، وضع، څیر.

**قطب** : د چکی محور. مشر بزرګ، په صوفیائے کرامو کښې یوه مرتبه. د شمال طرف، قطبي ستورے، شهزاده، د علم هیئت یوه اصطلاح.

**قطب نما** : د سمندر د اړخونو معلومولو آله، لوربښود، کمپاس.

**قُطر** : غاړه، حاشیه. په علم هندسه کښې هغه لکیره چې د دائرې په منځ کښې تیریږي.

**قطره** : څاڅکے، ذره. د غوښې یا د روټی قطره.

**قطع** : پریکونه، کټ کونه، ختمونه. بیخي، بالکل، بیشک.

**قطعاً** : هیڅ کله نه، بالکل نه.

**قطعي** : بالکل، قتي، بیخي، اخري، فیصله کن، څکټ.

**قطعه** : ټکړه، حصه. د نظم یو قسم، چې یا ئ مطلع نهٔ وي یا ئ مقطع نهٔ وي.

**قعده** : ناسته، بیتهک، نشست.

**قعر** : غرق ډوغل، تل، ژوروالے.

**قفا** : څټ، مری، ارمیږ، شا، شاته، مرکنډی، کوټک.

**قفس** : پنجره، پنجرے.

**قفل** : قلپ، جرنده، تاله، کولپ، جندره.

**ققنس** : یو روایتي مارغهٔ چې په حقله ئ وئیلے شي چې هغه هر قسم راګ یا په وزن اواز ایستے شي او چې بوډا شي نو په اور کښې کښیني او ځان وسوځوي او ایره شي دغه ایره د باران څاڅکي پریوتو سره اګی شي او د

اکې نه بل ققنس پيدا شي. د موسيقۍ ماهرينو د دهٔ د اواز نه سر ويستلي دي.
**قلا** : قلعه، کوټ، برج.
**قلابه** : د کبانو نيولو هک، کنډه، کونډهٔ.
**قلاچ** : د دوؤ لاسونو تر منځه وږدوالے، وازه ليچه، کولاچ. منحوس، بدبخته، قلاش، شيطان، مکار، غريب، بيوسه.
**قلاده** : د سپي وغيره د څټ پټي، غړوندے.
**قلار** : مطمئن، چپ، غلے، خاموش.
**قلارول** : د وژلو او مړ کولو استعاره. چپ کول، ارامول.
**قلاره قلاري** : خيرخيريت، ارامه ارامي.
**قلاريدل** : ارامیدل، چپ کيدل، خاموشه کيدل.
**قلارے** : قرارے، قلاره، قلاري، ارامي، دمه، وقفه.
**قلاش** : مفلس، فقير، لوچه، بدمعاش.
**قلب** : زړهٔ، ضمير. عقل، لته، اپوټه، نسکور، کوټه، کلپ،
**قلبه** : د غوانو جوړه، ايوي، بوي.
**قلپ** : تاله، جندره، جرنده، کنجي، چابي. کوټه، ناخالص، غير خالص.
**قلت** : کمي، نهٔ ملاويدنه،
**قلزم** : سمندر، بحر.
**قلف** : قلپ، قفل، تاله، جرنده.
**قلم** : د ليکلو آله، په يو بوټي کښې د بل بوټي لښته لګول.
**قلمبند** : ليک، ليکلے شوے.
**قلمدان** : د قلم ايښودو لوښے، دفتر، محکمه.
**قلمي** : قلم ته منسوب، پيوندي، په قلم ليکل شوے،
**قلنج** : د خيټې د درد يوه بيماري. قولنج.
**قلندر** : ملنګ، مال او

دولت نه بې پروا، د پښتو ژبې یو مشهور شاعر چې د افریدو قبیلې سره ئې تعلق لرلو.

**قلنګ** : محصول، مالیه، ټیکس، ماجب.

**قلنګي** : اصیل چرګ، د جنګ چرګ.

**قلوب** : د قلب جمع، زړونه.

**قلي** : پنډي، مزدور.

**قلیل** : لږ، کم.

**ق. م** : د قبل المیلاد یا قبل المسیح مخفف، د حضرت عیسیٰ علیه السلام د پیدائش نه وړاندې.

**قمار** : د ګټې بایلات لوبه، جواري.

**قمارباز** : جوارګر، جواري کونکے،

**قماش** : کپړه، رخت، ریښمي کپړه. طرز، اسباب.

**قمر** : سپوږمۍ، اوږمکه، اوژمکه.

**قمري** : قمر سره منسوب، قمري کال.

**قمري** : کورکوړی، ګوګوشتکه، کوکوړی.

**قمیص** : د قرآن شریف کځوړه، د قرآن شریف جلد چې د تو کي نه جوړولے شي. خت، کمیس، کرته، د پوشاک یوه حصه.

**قنات** : د خیمې نه ګیر چاپیره لګیدلې پرده.

**قنات** : متهائي، شیریني، خوارهٔ خوارهٔ څیزونه. کاریز، په زمکه کښې دننه نهر.

**قناعت** : صبر، په لږ څهٔ صبریدنه.

**قناویز** : کناویز، یو قسم ریښمي کپړه.

**قند** : شکر، چیني.

**قندیل** : پانوس، فانوس.

**قنوت** : منته، تسلیمونه،

**قنوط** : نا امیده کیدنه، بې اسرې کیدنه.

**قوا** : د قوت جمع، طاقتونه،

**قواره :** خدوخال، شکل و شباهت.

**قواعد :** د قاعدې جمع، طریقه، اصول، دستور، میدان.

**قوال :** لوړے ژبے، کړتن، طبلې وغیره سره سندرې ویونکے.

**قوالي :** طبلې وغیره سره سندرې وئینه.

**قوانین :** د قانون جمع، قانونونه،

**قوت :** زور، طاقت، قوت، قدرت.

**قوت :** خوراک، د خوراک دومره مقدار چې د ژوند تیرولو دپاره کافي وي.

**قوتناک :** قوي، تکړه، زورور، ځیګرور، طاقتور.

**قوده :** د واښهٔ دومره مقدار چې په موټي کښې راځي.

**قورمه :** د غوښې او دالو پخکړے چې عام طور سره په ښادۍ وغیره کښې د وریژو سره خوړے شي.

**قوس قزح :** قوس په معنیٰ د کمان او قزح په معنیٰ د سور استعمالیږي، زیړه زرغونه، د بوډۍ ټال، کاسه.

**قوصر :** تود سوړ کیدنه، چې وجود په ګرمۍ کښې هم یخني محسوسوي.

**قوصري :** د قوصر بیمار.

**قول :** خبره، کلام. وعده، د یو راګ نوم، لاس ورکونه.

**قولنج :** د کولمو دړد، د باد ګولۍ دړد.

**قولنګ :** کولنګ، د ټوپک کولنګ، د دوه نله چړئیز قولنګ.

**قولنګي :** قولنګے چړګ، اصیل او ذاتي چړګ.

**قوم :** خاندان، قام، عام خلق، عوام.

**قومي :** عوامي، د قوم.

**قومیت :** نسل، ذات، اصل.

**قوه :** طاقت، قوت، زور.

**قوي :** مضبوط، تکړه، توانا، تندرست، چاق و چوبند، د

قوت خاوند.
**قویت** : قواعد، پریت، پریله،
**قهار** : ډیر طاقتور، فتح من، غصه ناک، د الله تعالیٰ یو صفتي نوم.
**قهر** : جلال، غضب، غصه، غلبه، ښیرې ازار، رټنه، کوټنه.
**قهرژن** : غصه ناک، غضب ناک.
**قهرول** : غصه کول، په غصه مجبورول.
**قهریدل** : غصه کیدل، تنګیدل.
**قهقهه** : په زوره زوره خندا.
**قهوه** : شنې چای، یو قسم تخم چې د جوشولو نه وروستو څښلے شي.
**قیادت** : پیشوائي، مشري، رهنمائي، سرپرستي.
**قیاس** : اندازه، رائ، خیال، ګومان، اټکل.
**قیاسي** : ګوماني، خیالي، اړتاوکه، وهمي، قیاس سره متعلق.
**قیافه** : د مخ بشره، کړه وړه، خدوخال.
**قیام** : ودریدنه، کښیناستنه، وسیدنه.
**قیامت** : د جزا او سزا ورځ، د حساب کتاب ورځ، محشر، اخرت، ډیر ګران، ناپائیداره.
**قیچ** : ړوند، چغر، کوږ سترګے، کامګ، چقے.
**قیراط** : یوه رتی.
**قیصی** : قیصه، داستان، حکایت، قصه.
**قیصې قطارې** : وړ د بیان، انې بانې، هغه دغه.
**قیمت** : بیعه، بیه، نرخ، د یو څیز د سر پیسې، حیثیت.
**قیمتي** : ګران، د قیمت سره متعلق، ښهٔ، اعليٰ، د ډیر قدر.
**قید** : تاکید، پابندي، بند، بندي خانه.
**قیدیان** : د قیدي جمع

بندیان.

**قیدي** : بندي، جیلي، بندیوان، زنداني.

**قیزه** : لګام، واګې.

**قیصر** : د روم د بادشاه لقب.

**قیف**: پیک، کیپ،

**قیلوله** : د غرمې د روټۍ خوړلو نه پس اوده کیدنه.

**قیمه** : ټکولې شوې غوښه.

**قینج** : مکیز، نازوادا.

**قینچي** : بیاتي. د ویښتو، کپړې، کاغذ وغیره پریکولو یوه د وسپنې جوړه آله.

**قی** : الټی، باکی، اوکې،

**قے** : باکی، باقی، الټی، چالونه، ډوقې، کانګې،

**ک** : (کـــاف) د پښتــو د حــروف تهجــي دوه دیـرشم حــرف چــې د ابــجدو پــه حســاب ئې شـمیر شل (۲۰) دے.

**کابینه** : د وزیرانو ټولګے، د وزیرانو مجلس.

**کـاپي** : مـجلـد صفا کاغذ چـې لیک پـرې کـولے شي. نـقل، د یـو لیکلي کاغذ نه په لاس یا مشین اخستے نقل.

**کـاتب** : کتابـت کـونکے، خوشنویس،

**کاج** : د صنوبر ونه. څپیړه، څپک، چپک، افسـوس، د تنې تهورے، د بتهن سورے.

**کاخ** : مـحـل، لوړ عمارت، قصر، مانۍ.

**کـاذب** : دروغـژن، دروغ ګو، دروغ ویونکے.

**کار** : کسب، پیشه،

**کارتوس** : کالتوس. جنجن.

**کارخانه** : د خرڅون دپاره د څیـزونـو جوړولو اداره چې ګـڼ کسان پکښې کار کوي، د کار کولو ځاے.

**کاردار** : نـاظـر، مـنیجر، په کار نظر لرونکے. اجاره دار.

**کـارزار** : جـنـګ، جـګړه، مقابله، معرکه.

**کارساز** : کار جوړونکے.

**کارسازي** : کـار جوړونه، ضرورت پوره کونه.

**کارغۀ** : قارغۀ، یو تور رنګے مردار مارغۀ.

**کارکردګي** : کړے کار.

**کارکسب** : زیست روزګار، دنده، کار روزګار.

**کارکن** : کار کونکے. خواري کښ، محنتي.

**کـارګر** : فـائـده مـن، فائده رسـونـکے، په کار راتلونکے، مزدور، کاریګر.

**کارنامه** : یادګاري کار، هغه لوے کار چې یاد پاتې شي.

**کاروان** : قافله.

**کـاروبار** : پیشـه، مشـغله، معاش، د روزګار ذریعه.

**کاروباري** : کاروبار کونکی، د کاروبار متعلق.
**کاریګر** : استکار، د کسب خاوند. فنکار، ارټسټ، نقاش، ښیري جوړونکی، عمارت جوړونکی. ماهر، هوښیار، د کار ښښتن.
**کاریز** : په پټي کښي د اوبو ورکولو نالي. د زمکي لاندي د اوبهٔ خور نالي. سپرغی.
**کاړ** : لـه کـانو ډکـه زمکـه، شنکاړ، کریړ، جغل. چي کاڼي ترې راویستلی شي، کان.
**کاړه** : هغه ځای چي خلق پکښي پرزووني کوي، د مقابلي ځای، د کشتي ځای.
**کاړینګ** : کبړي ستر ګي لرونکی، کاڼی، چغر، چپا، چپی، کاڼا.
**کاړل** : ویستل، راکښل، راښکل، تنګول، رد کول، بیکاره کول، کیږل.
**کاړهٔ** : یو بوټی او د هغې تخم چي د دوایی په طور د هاضمي دپاره پکارولی شي.
کاړهٔ ویلنی.
**کاسه** : پیاله، د خوړلو ښښلو کونډۍ، پیمانه، لوښی.
**کاسیر** : بدچلن، بدکرداره، بدعمله، نمک حرام، زناکار.
**کاسیره** : د کاسیر مؤنث.
**کاش** : کشکي، کاشکي، د افسوس کلمه، ارمان، ګوندي، ګندي.
**کاشتکار** : کر کونکی، کرونده ګر، کاشت کونکی.
**کاشوغه** : قاشوغه، د خمڅي په شان یوه وړه آله چي د ګوتو په ځای د خوراک دپاره پکارولی شي.
**کاغذ** : د پوګ یا د ګیاه وغیره نه جوړه کړې شوې هغه هواره تهه چي د لیک دپاره پکارولی شي. پرچه، رقعه، خط، سند، قباله.
**کاغذي** : ناز، نرم، نری. د کاغذ نه جوړ شوی.
**کاف** : د حرف "ک"

تلفظ.

**کافر** : کاپر، نهٔ منونکے، د اسلام نه گرځیدلے.

**کافور** : یو قسم ونه او د هغې نه جوړه یو قسم خوشبویه سپینه دوائي. د سپینو ویښتو دپاره استعارتاً استعمالیږي.

**کافي** : پوره، د ضرورت دپاره پوره. بسیا.

**کاک** : لویه روټۍ چې د کاڼي په هواره تخته باندې پخیږي. خوږه روټۍ. کمزورے انسان یاحیوان. وچه غوښه، بې سلیقې انسان. پراټه، ویشله، ککوړے. بوجه.

**کاکا** : کاکا جان، کاکاجي. د پلار ورور، ترهٔ، چاچا، اکا.

**کاکل** : د څټو کي ویښتهٔ، څټوکے.

**کاکي** : د کاکا مؤنث، مشرې ښځې ته د احترام تورے.

**کال** : سال، دولس میاشتې، ۳٦۵ ورځې لرونکې د وخت یوه حصه.

**کالبد** : کالبوت، ډانچه.

**کالج** : د لسم نه تر څوارلسم پورې د اعلیٰ تعلیم حاصلولو درسگاه. جامعه، د اعلیٰ تعلیم دارالعلوم.

**کالر** : د قمیص غاړه چې پکښې بکرم لگیدلے وي. غاړکي.

**کالکنډی** : کالکونډی، کارکونډے، کاکوړه. کچه ختهکے یا هندوانه.

**کالنے** : کالیز، د کال، سالانه.

**کالوخانے** : د عزت کولو دپاره میلمنو له د زیاتې ترکارۍ دپاره غټ ښانک، رکیبي یا تالے.

**کالهٔ** : کور، خونه، مینه.

**کالي** : جامې، لباس، پوشه. وسله، د نائي اوزار، لوښي،

**کالیز** : کلنے، کالنے، سالانه، د یو کال.

**کالیزه** : کلیزه، هغه سالانه

پروګرام چې د اهمې واقعې یا د چا په یاد کښې کولے شي.
**کالے** : کالے پټرے، پسول، زیور، جامه، لباس، سامان، متاع.
**کامران** : کامیاب، خوش نصیب، بریالے، بختور،
**کامګار** : کامران، بامراد، کامیاب.
**کامل** : پوره، رسیدلے، مکمل، په هر لحاظ پوره.
**کامیاب** : بریالے، کامران، غالب، خوش نصیب، مقصد ته رسیدلے.
**کامیابي** : مطلب پوره کیدنه، برے موندل، فتح موندل.
**کان** : د معدنیاتو راوتو ځاے، یو دانه چې د اس په حلق کښې راوځي. نل، نے. خاندان، پشت، پیړی، سرنګ، نقب.
**کان پټی** : د اسپې د غوږونو بندولو پټی.
**کانټي** : د کتاب جلد. د زین پټی، بغلي عصا، جثه، وجود، قدوقامت، ډیل ډول.
**کانجړ** : یو شان تیر چې د ارهټ په دوؤ بوتکو باندې ایښودے شوے وي چې نیغ په نیغ چکر لګوي.
**کانګه** : کانګې. رمه، پیچش، دستونه، د نس خوږي یا ګیډې خوږ نه پس رمه او وینه. قے، باقي.
**کانه** : قیصه، نقل، حکایت. کناره، ناشونې، هنر، ناخاپي پیښه، حادثه، آفت، تکلیف، رنځ، غم، احمق، کم عقل، سخا.
**کاڼي ټک** : د کاڼو ټکولو مزدور، کاڼي کرپ.
**کاڼیز** : سخت، کلک، له کاڼو سره متعلق.
**کاڼیزه** : د کاڼو ډکه، هغه زمکه چې کاڼي پکښې ډیر وي.
**کالے** : ناغه، د پښتنو د یو دستور نامه، د وزن کولو ډبره،

**کالې** : یو سترګې، د یوې سترګې خاوند، په یوه سترګه ړوند.
**ګالې** : غرګې، ګاټې، غونډه ګټه، تیږه، ښوی ډبره.
**کاواک** : منځ کښې خالي، سرګردان، پریوتونکې، بې پروا.
**کاواکه** : اواره، بې هوده، سرګردانه، ارتیاکه،
**کاوش** : تلاش، جستجو، کوشش، هڅه.
**کاه** : وچ وابښه، وابښه، خسنې.
**کاهل** : سست، ناراست، په کار کښې دلچسپي نهٔ اخستونکې، بیکاره، بې همته.
**کاهن** : د غیبو پیش ګوئي کونکې، غیب ګو، توریتي، ترویتي.
**کائنات** : مخلوقات، موجودات، هر څهٔ چې په زمکه کښې موجود دي.
کایه : کانټې، جلد، کانټي.

**کب** : مهې، ماهې، مئې. د یوې میاشتې نامه، حوت.
**کباب** : کباپ، په سیخ یا کړي کښې د اوړو او قیمې نه جوړ شوې ککوړې، ورته، وریته، جلبل، ستي.
**کباړ** : زړې پرزې،، زاړهٔ مشینونه، مات ګوډ څیزونه یا اسباب وغیره.
**کباړي** : د کباړ، کباړ سره متعلق، کباړ خرڅونکې.
**کبر** : غرور، تکبر، ناشکري، لوئي، سپین ږیرتوب.
**کبرژن** : متکبر، مغرور، کبر کونکې.
**کبل** : یو قسم وابښهٔ چې په زمکه خوریږي عام طور سره ترې چمن لګولې شي. غوړو جوړولو کښې هم پکارولې شي.
**کبله** : سببه، وجې، کبل.
**کبوړې** : یخه شوې د ګوړې شیره، وړوکې کب.
**کبیر** : لوې، بزرګ،

زبرګ.
**کبیره** : لویه، غټه، د کبیر مؤنث.
**کبې** : قوبې، شابوتې، کب لرونکې، قبې.
**کپر** : کوپړی، کپړی، کپره.
**کپړه** : رخت، تان، جامه.
**کپه** : پکه، د دارو سفوف،
**کپـه** : چونی، نومړی، نمړی، نوړی. کیږدی، تواره. کوټه، دلی، خره.
**کتاب** : د چاپ شوو او لیکلو شو پاڼو مجموعه.
**کتابت** : د کتاب لیکلو کار.
**کتابخانه** : لائبریري، د کتابونو ځای.
**کتب خانه** : د کتابونو کمره، لائبریري، کتابخانه.
**کتبه** : په کاڼي لیکلې شوې عبارت چې د شناخت په غرض په قبرونو یا مکانونو لګولې شي.

**کتک** کاتک، د هندي کال اووم میاشت.
**کتکاڼي** : سنګریزه، هغه وړوکې ګړنګې کاڼې چې اکثر په ځګو او مقبرو کېښې وي.
**کت کېږي** : د هلکانو یوه لوبه. کبډي.
**کتل** : د لیدو دپاره سترګې اړول، کتل، ګورل، انتظار کول، عبر کول، لټول، مطالعه کول.
**کته** : د کپړې یا بوج وغیره نه جوړ نرم ځل چې د باري ځناور په شا د بار اچولو په وخت اچولې شي.
**کټ** : د څملاستو دپاره د څلورو بازوګانو څلورو پښو او بوڼ نه بوڼلې شوې.
**کتار** : ګرځیدلې، اوښتې، مرتد، ضدي، سخت، زړې، سر کشه،
**کتاره** : د تورې په شان یو قسم واړه وسله. د کتار

مؤنث.

**کټاری** : خنجر، چاړۀ، تیرۀ چاړۀ.

**کټ کول** : پریکول، بندول، قطع کول، مخه راګرځول.

**کټ کیدل** : پریکیدل، بندیدل، پریکړے کیدل.

**کټکے** : وړوکے کټ، د کټ اسم تصغیر.

**کټمل** : هغه وسپنه چې قصاب پرې چاړۀ تیروي.
منګن، مونګن.

**کټوتی** : وړه کټوی، د کټوی اسم تصغیر.

**کټوی** : د خاورو کټوی، له خاورو جوړ د پخلي لوښے، کټوه.

**کټه ګوټه** : غټه ګوټه، د لاس یا پښې تر ټولو پیړه او لنډه شان ګوته.

**کټي** : د میښې ماده بچے، د کټي مؤنث.

**کټے** : د میښې بچے، د رباب غټ تار.

**کثـافت** : مضبوط والے، غټوالے. میل، ګندګي، چټلي، ناپاکي.

**کثیر** : ډیر، ډیر زیات.

**کثیف** : ګنده، ناپاک، کثافت لرونکے.

**کج** : کوږ ووږ، خم، د نیغ متضاد.

**کجاوه** : پالکی، ډولکی، د میوې وړلو لویه بوره چې له میزرو جوړه وي.

**کجل** : کاجل، رانجۀ چې په کوچو کښې ګډ کړې شي او سترګې پرې توروِلے شي.

**کجوره** : یوه مشهوره ونه او د هغې میوه، خرما.

**کجیر** : یو غټ غرئیز مارغۀ. یوه غټه دانه چې د غاړې یا ترخ لاندې راخیژي. غټ او بنائسته سړے.

**کجے** : هغه سړے چې په پښو کښې ئې کوږوالے وي.
کوږ، کین، کوږ.

**کج** : کچه، وړوکے، چیت، چې غټ پټ نهٔ وي.
**کج** : ناپ، پیمائش، اندازه، میچ، مقدار.
**کچالو** : د الو د خاندان یوه سبزي، اروي.
**کچر** : خچر، قچر، د اسپې او خر په جنسي توګه له یو ځاے کیدو په وجه پیدا شوے بچے. بدکاره، بدعمله.
**کچماچو** : یو قسم ساګ، کرماچو، کاچ ماچ.
**کچنار** : کچنال، کولیاړ، یوه ونه او د هغې د غوټو نوم چې د پخولو په کار راځي.
**کچنی** : ګډیدونکې، بدکاره ښځه، کاسیره، فحاشه ښځه، لولی، کنجری.
**کچه** : د پوخ متضاد. هغه شے چې لا پوخ شوے نهٔ وي.
م.
**کچه غرمه** : چې پوره غرمه لا نهٔ وي. بریځر، تنکی غرمه، تنکے ځاښت.

**کچه کول** : ژر ژر ګنډل، په سر سر ګنډل، شرمول، حیا اخستل، خیرجه کول.
**کځ** : وادي، هغه زمکه چې د دریاب په غاړه وي یا د دوؤ غرونو په منځ کښې وي. کځی، ناوه، کځه.
**کځوړه** : له کپړې جوړه بوجکی، تیلی.
**کخے** : د باغ محافظ، پاسواني کونکے.
**کداله** : کدال، تسکوره، سسکوره، کودالی.
**کدو** : یوه سبزي.
**کدورت** : کرکه، نفرت، ناراضګي، خفګان، خوابدي.
**کډه** : د کور سامان، اسباب. آل و عیال، تلنه، سفر، کوچ.
**کډه کوډه** : لد کوپړی، لوښي لرګي، د کور سامان.
**کډی** : د جولاګانو کډی، ځپر، د جولا کارګاه. مردار ډنډ.
**کذاب** : دروغژن، ډیر

دروغ ویونکے.
**کذب** : دروغ،
**کو** : کوڼ، نۀ اور ېدونکے.
**کرامت** : بزرګی، معجزه،
**کراهت** : کرکه، نفرت.
هغه خبره چې شرعاً مکروه وي.
**کرایه** : کرائي، باړه، اجرت، معاوضه.
**کرب** : نول، درد، تکلیف.
**کرباس** : خامتا، الوان، چیټ، د مالوچو جوړ تهوکے، سوتي کپړه.
**کربلا** : د کرب و بلا مخفف، غم درد، کمے، قحط، سوکړه، د عراق د یو ښار نوم چې حضرت امام حسین علیه السلام پکښې سره د ملګرو شهید کړے شوے وۀ.
**کربوړے** : کورنی چرمښکی، چمچوری، کربوړے، د سمسرې په شان یو قسم خزنده، کربک، کربوړک.
**کرپان** : یو قسم خنجر چې سیکان ئې ګرځوي.
**کرپندے** : هغه هډوکے یا بل څیز چې د چیچلو په وخت کرچ کرچ کوي.
**کرپول** : غاښونو سره ماتول، غاښونو سره کرچول.
**کرپیدل** : په غاښونو ماتیدل، کرچیدل.
**کرت** : وار، ځل، کرته، پیره، بار.
**کرت** : یو قسم پخکړے چې د اوربشو د اوړو او شوملو نه جوړولے شي.
**کرتب** : کار، تجربه، لیاقت، هنر، کمال، سپاه ګري، بازي ګري، چالاکي.
**کرتوت** : عمل، چال، عادت، کردار، چالاکي.
**کرته** : قمیص، خت، پیپنی.
**کرچول** : څۀ څیز په غاښونو ماتول، څۀ شے قینچی سره په تیزی پریکول.

**کرچیدل** : په غابنونو ماتیدل، په غابنونو کښې ریزګي کیدل.
**کرخت** : سخت، تند. مړ، بې حرکته، سوړ، په قلار.
**کردار** : عمل، کار، کړه. روش، دور، په مرکباتو کښې د لاحقې په طور استعمالیږي لکه بدکردار، نیک کردار.
**کردګار** : کارکونکے، لوے څښتن، مالک، آقا، د الله پاک یو صفتي نوم.
**کرسي** : کرسي، چوکه، د ناستې چوکې.
**کرشمه** : د سترګو سره اشاره، نخره، جلوه، کرتب.
**کرښه** : لکیره، لیکه. علامه، اثر، دائره، اړه،
**کرکرونده** : کرکیله، زمیداره، دهقاني، د کرلو ریبلو کار. زمیداري.
**کرکڼن** : کرکه کونکے، نفرت کونکے، چې د هر څیز نه کرکه کوي.
**کرکنه** : د بیرې د خاندان یو ازغن بوټے او د هغې میوه.
**کرکوړه** : کرکوړی، ګوګوشتکه، کورکوړی.
**کرکه** : نفرت، بیزاري، سپک کتنه، څنګ، ډډه کونه، یو شے نۀ خوښونه.
**کرکیله** : کرکرونده، زمیداري، کاشتکاري.
**کرل** : په زمکه کښې د زرغونې دپاره تخم اچول،
**کرل ریبل** : جوړول، ورانول، رنګول، وهم کول، سوچ کول، کرکول، کرکرونده کول، لوکول، زراعت.
**کرم** : نیکي، بخشش، مهرباني، ښۀ طریقې سره چا سره ملاویدنه.
**کرنډۍ** : د ګلکارانو یوه آله. سیپی چې د تیم نه پرې غوړې راایستلے شي.
**کرو** : د پیمائش پیمانه چې نهۀ فته وي. د نیم میل برابر.

**کروت** : یو قسم وچ پنیر، تروش او وچ پنیر چې په حل کولو ترې لاوڼ جوړیږي.

**کروړ** : لس میلیونه، سل لکه.

**کروړ پتي** : د کروړونو مالک، ډېر مالداره.

**کروړه** : تازیانه، کوړه، دره.

**کروفر** : شان و شوکت، دبدبه، کبر، غرور.

**کروکور** : پریشان، په منډه، ګډوډ، روند کوڼ.

**کروندګر** : زمیدار، کسان، دهقان.

**کرونده** : د فصل کرلو کار، کر، زمیداري.

**کروه** : کوس، قریباً دوه میله، د میلانې یوه پخوانی اندازه.

**کره** : د زمکې غونډوالې، بال، ګوله،

**کره** : موجود، پکښې، حاضر، په کور کښې سره. صفا. روغ، ټیک، خالص، د کوټه متضاد.

**کره کره** : صفا صفا، سپین او صفا. پخه پخه،

**کرهاً** : نفرت سره، په جبر، جبراً.

**کریاب** : حاجتمند، محتاج، درمانده، بې اسرې، نیستمن، نیمګړے.

**کریانه** : تیل مالګه او د امروزه ضرورت څیزونه. د امروزه استعمال او خرڅ خوراک دوکانداري.

**کریز** : د مارغانو د زړو بڼو غورځونه او نوې بڼې راایستنه.

**کریغه** : چغه، کریکه، کوکه، کرېکه.

**کریکه** : کریغه، چغه، کوکه.

**کریم** : سخي، فیاض، سخاوت کونکے،

**کریهه** : بدشکل، ناخوښ، قابل نفرت.

**کریله** : یوه سبزي چې ډېره

ترخه وي. ترخه توری.
**کړۍ شپه** : تمامه شپه، تیوله شپه، د ماښام نه تر سبا پورې.
**کړۍ ورځ** : تیوله ورځ، کلهمه ورځ. د سحر نه تر ماښامه.
**کړاک** : تکلیف، محنت، کړان، خوارۍ.
**کړاؤ** : تکلیف، سختي، کړاک.
**کړپه** : د غر په سر باندې لاره چې ختل پرې ګران وي. کږه لار، کړپی.
**کړتن** : کړتو، ډیرې خبرې کونکے، بکواسي،
**کړتو** : وګورۍ کړتن.
**کړته** : عبث خبره، چتې خبره، بې مطلبه خبره، بې فائدې خبره.
**کړتې** : عبث او بې معنې خبرې، فضول خبرې.
**کړچه** : وړه سیخ چې لاسکے ئ د لرګي وي او د تنور نه پرې ایره راویستے شي.
**کړشپ** : د دوؤ غاښونو په منځ کښې یوه کنده. هغه سړے چې غاښونه ئ نۀ وي، کنډاس، کړشپے.
**کړک** : د چرګې اګی بندیدنه.
**کړکه** : هغه چرګه چې څو ورځې اګی نۀ اچوي. کوړکه، کوړنګه، په اګو ناسته چرګه.
**کړکیچ** : جنجال، رکاوټ، د خبرې نه خبره ایستنه.
**کړکیچن** : لانجه مار، جنجالي، هغه سړے چې هر کار کښې کړچ راولي.
**کړکیدل** : د چرګې اګی نۀ اچول، بیکاره کښیناستل.
**کړکۍ** : روشن دان، دریچه، دریځه، باری.
**کړم** : زخمي شوے، د کاره وتلے، ګوډ، خوږ، ژوبل. د زخم او پرهر په وجه له کاره وتلے.

**کړمیزن** : قرمیزن، هغه سړے چې پوزه ئې مدام د قن نه ډکه وي، کړینګن، سپک، بیکاره، نالائق.

**کړمیزنه** : د کړمیزن مؤنث.

**کړمیزه** : کړینګ، قنې، خاړمت، خړمت، خن، ګړنک.

**کړول** : تکلیف رسول، ځورول، ربړول.

**کړه** : د سرو یا سپینو زرو یو کالے. حلقه، الغه، کړۍ.

**کړهٔ** : عمل، کار، مرضي، خوښه.

**کړهے** : کړے، کړائے.

**کړي** : لاوڼ، د شوملو داغ، داغ کړيِ ماستهٔ.

**کړیتي** : د تنځري ماده.

**کړیغه** : کریکه، چغه، کوکاره، په زوره چغه.

**کړیچے** : وړوکے کړے، کړهے.

**کړیدل** : ځوریدل، تکلیف تیرول، رنځیدل.

**کړۍ** : د زنځیر کړۍ، حلقه، د چاربیتې بند، سلسله، پخوندے، پتیره. برګه، لهړے.

**کړے** : د پخلي پلن او ګول لوښے.

**کږول** : له نظره پریوتل، په ښهٔ نظر نهٔ کتل، د نظره غورځیدل، رد کول، نفرت کول، سپیرهٔ ګڼل، په بد نظر کتل.

**کږلیچ** : په لاره کښې کوږوالے، کوږوالے، مشکل، ګران، سخت،

**کږول** : خم اچول، راکوږتې کول، غلطول.

**کږه** : د کوږ مونث.

**کږه وږه** : بیخي کږه،

**کږیدل** : راکوږتې کیدل، خم پیدا کیدل، ورانیدل، غلطیدل.

**کِس** : سړے، نفر، تن،

**کُس** : د انسان یا ماده حیوان اندام نهاني،

**کَس** : گز، میده.
**کسات** : قصاص، بدله، د چا نه بدل اخستنه، انتقام، کینه، بدل.
**کساد** : د جنس نهٔ بدلیدنه، بازار مته کیدنه، تروټه.
**کسادبازاري** : بازار مته کیدنه.
**کسالت** : سستي، ستوماني، کاهلي، سترې کیدنه.
**کسب** : هنر، پیشه، کار، روزګار، کاروبار، دنده، شغل، مصروفیات، مشغله، وظیفه، ډیوټي.
**کسبګر** : پیشه ور، کار کوونکے، د غم ښادي خبر ور کوونکے. کسبه.
**کسر** : د حساب یوه طریقه.
**کسر** : د شعر مقطع چې شاعر پکښې خپل تخلص راولي. ختمونه، ماته، عیب، نقص، کمے، کموالے.
**کسره** : زیر، د حرف لاندې علامت.
**کسکر** : ویلې شوې وازدې نه پاتې بوګرې، چنیا، جزغاله.
**کس کول** : کلکول، راښکل، تړل، ښکیلول، ګیرول.
**کِسل** : کتل، لیدل.
**کُسلکه** : ډیره شهوت لرونکې ښځه، کُس پټاخه، کُس نیغه، کُسی، یو کنځل.
**کسل** : ستوماني، کاهلي، سستي. ناراسته، سترے، ستومانه، مړپړ.
**کسوف** : د نمر تندر نیونه.
**کسه** : ارمان، ارزو، مراد، خوښي.
**کسي** : د ستر ګې جلی، د ستر ګې زیزمه، لیمهٔ، د ستر ګو غاړې، ککی.
**کسی** : د دوؤ غرونو په منځ کښې شنه او میداني علاقه، وادي.
**کش** : د چیلم څښنه، اخري، د اسم نه پس په راتلو

د فاعل معنیٰ ورکوي لکه مے کِش.

**کُش** : لاحقه چې د اسم نه پس راشي نو فاعل ترې جوړ کړي لکه جراثیم کُش.

**کشاده** : وسیع، ارت بیرت، فراخ، ویړ.

**کشاله** : تنازعه، معامله، اړه، جنجال،

**کشائش** : په روزګار کښې زیاتوالے، په رزق کښې فراخي.

**کشت** : فصل، کرلے شوے څیز. پتے.

**کشتن** : وژل، مړ کول، قتلول.

**کشته** : قتل شوے، وژلے شوے، یوه حکیمي دوائي.

**کشتي** : د هلکانو د پرځونو یوه لوبه، د دوؤ پهلوانانو په خپلو کښې زور ازمائینه.

**کشتی** : کیمه، ژاله، لوے ماکو، بیړی، د اوبو جاله، غراب، کښتي.

**کشر** : وړوکے، کم عمره، د مشر متضاد.

**کشرے** : کشر، د عمر په لحاظ د ټولو نه کم.

**کشش** : د راښکلو قوت، راښکنه.

**کشف** : ظاهرونه، ښکاره کونه.

**کش کړپ** : کشارے، کش پش، ښکالو، د حرکت اواز،

**کشکول** : کچکول،

**کشمالو** : یو خوشبودار بوټے، ریحان، بوبرے، ببرے، کشمالے

**کشمش** : وچکې، وچ انګور چې خاص قسم لري.

**کشمکش** : کړکیچ، لانجه، جنجال.

**کشور** : ملک، ولایت، اقلیم، وطن.

**کشول** : راښکل، راکښل، خان پله راوستل.

**کشیده** : رنګینه تارونو سره په کپړو کار. اراسته، موزون،

رابنکلے، چکن.
**کشیده کاري :** په کپړه یا لرګي ګل بوټي جوړونه.
**کښیدل :** له ځایه غلے شان وتل، پاڅیدل، تلل.
**کښت :** د غرونو کوږوالے شیره. فصل، کر، کرکیله، کرونده، زمیداري. د اخرت دپاره په دنیا کښې نیک عمل کونه.
**کښل :** لیکل، درج کول، کښلول، بوسه اخستل، لرې کول، رابهر ته ویستل.
**کښې :** ننه، دننه،
**کښې :** له ښکته مخه، له کوزې خوا نه، د غرب ضد.
**کښیباسل :** راغورځول، راپرځول، لاندې کول.
**کښیمنډل :** په زور ځاے ورکول، منډل، زور ورکول، نوک سوک ډکول.
**کښیناستل :** په زمکه د پښو په سر کناتې لګول.
**کښینول :** په کښیناستو مجبورول.
**کښے :** د پټې څوکیدار.
**کعبه شریفه :** د خداے کور، هغه پاک ځاے چې ټول مسلمانان ورته په مانځهٔ کښې مخ کوي.
**کف :** د لستوني خله چې تنې پرې لګیدلے وي، د لاس او پښې تلے ځګ.
**کفار :** د کافر جمع. کافران.
**کفاره :** د ګناه بدله، بدله.
**کفالت :** ضمانت، ذمه داري.
**کفایت :** کافي، پوره، نفع.
**کفتار :** یو ماتونکے ځناور، کوږ، لیوګهه، سرکوزے.
**کفر :** انکار، د الله پاک نهٔ مننه، د اسلام په ضد هره لار او قانون. ناشکري.
**کفران :** ناشکري.
**کفن :** مړې ته اغوستې شوې کپړه.
**کفن دفن :** تجهیز و

تکفین، ګور کفن، د مړي ښخونه.
**کفن کش** : له مړي کفن ایستونکی، ظالم،
**کفیل** : ضامن، ذمه داري منونه، ذمه دار جوړیدنه.
**کک** : لبړ شی، خس، خسنی.
**ککره** : غټه کپره.
**ککری** : کوپړی، د سر کاسه.
**ککړ** : شرپسند، جګړه مار، جګړاو، بې عزته شوی، بدنام شوی، خراب شوی، لړلی، داغدار، آلوده، ناولی، ابته، ګنده، مردار، تتر، پلیت، خیچن،
**ککړول** : لوندول، ښوک په جرم کښې راګیرول. خرابول.
**ککورې** : وړه روټۍ. چکلی. ریکارډ، کلچه.
**ککی** : د سترګو تور. وړه جینی، کوکی.
**ککې** : کاکې، وړوکې هلک.
**کل** : خرئیلی، تراشلی شوی.
**کِل** : ګنجی، پک.
**کُل** : ټول، تمام، واړه.
**کلاچ** : د دواړو لاسونو د غوړیدو تر منځه فاصله. دا د پیمائش یوه قدرتي ذریعه ده.
**کلال** : کولال، د خاورو لوښي جوړونکی.
**کلالي** : د کلال کار او پیشه.
**کلام** : تقریر، خبره. شعر.
**کلان** : لوی، بزرګ، لوی سړی.
**کلانکار** : ځان لوی ګڼونکی، ځان منونکی، چالاک.
**کلائي** : قلعي، یو قسم دهات.
**کلپ** : قلف، جرنده، تاله. یو قسم بت چې دوبیان ئې کپړو ته ور کوي.
**کلپی** : د اخښلو شوو اوړو

د ایښودو لوښے.
**کلچه** : غوړه روټی، کولچه، انغسه، خوشخمیره.
**کلفت** : غم درد، تکلیف، بدنصیبي، بې ارامي.
**کلک** : محکم، ټینګ، د سست او شوړ پوړ ضد.
**کلکول** : سختول، ټینګول، مضبوطول، پخول.
**کلکیدل** : سختیدل، ټینګیدل، پخیدل، مضبوطیدل.
**کلمه** : هغه معنيٰ لرونکے لفظ چې له خلې وځي.
**کلن** : کال، د عمر د عدد سره راوستونکے توړے، لکه لس کلن.
**کلنګي** : د ځنګلي چرګانو یو قسم چې د جنګ دپاره ساتلے شي.
**کلنے** : د یو کال،
**کلنے** : د کوم وخت.
**کلول** : خرول، خرئیل، وینتۀ اخستل، سر کنجے کول.
**کلومیټر** : د فاصلې یوه پیمانه چې د زرو میټرو برابر وي.
**کله** : کوم وخت.
**کله کله** : شاذونادر، یو نیم وخت، بعضې وخت، کله نا کله.
**کله نا کله** : وګورئ کله کله.
**کلهم** : ټول، کل، واړه، درست، ثابت، پوره په پوره، ټول ټال، بیخي، په هیړ، اماني، ګرد، مکمل، پوره.
**کلیجي** : د اینې پښتور ګي پخکړے.
**کلید** : چابي، کنجي، کونجي.
**کلیز** : د یو کال. د کال سره تعلق لرونکے.
**کلیم** : خبرې کونکے، د موسیٰ علیه السلام لقب، کلیم الله.
**کلیوال** : د کلي وسیدونکے.
**کلیه** : قانون، قاعده،

**کلی** : غوټی، شگوفه، پچي.
**کلے** : کن کورونه، گنه ابادي،
**کم** : وړوکے، کم اصله، کم بخت، کم عمر، ناکافي، نایاب، کمزورے، کشر، د ډیر متضاد.
**کماحقه** : څرنګه چې حق لري.
**کمال** : پوره کیدنه. هنر، قابلیت. چل، ترکیب، معجزه، کرامت، خوبصورتي.
**کمان** : د غشي لیندۀ.
**کمانچه** : وړه لیندۀ.
**کماني** : د وسپنې ولداره او پیچداره حلقه، سپرنګ.
**کمائي** : گټه، آمدن.
**کمبار** : کمپار، کولال، د لوښو جوړولو کارکونکے.
**کم بخت** : بدنصیبه، کم نصیبه، بدقسمته.
**کمبل** : وړین څادر، کمبله،
**کمبلی** : وړه کمبل.
**کمبوت** : نیمگړتیا، کمے، حاجت، ضرورت. رغیدنه، کمبود.
**کمپوډر** : د ډاکټر معاون،
**کمتر** : نسبتاً کم،
**کمتره** : کونتره، فاخته، کوړکوړی. پوڅکی. په یوې کښې د موټې دپاسه هغه لرگے چې زمیدار پرې لاس ایښے وي.
**کم ترین** : له ټولو کم.
**کمخواب** : یو قیمتي کپړه.
**کمر** : د سیند وچته غاړه، غونډی، لوړځاے.
**کمره** : کوټه، د ملاستې ځاے.
**کمزور** : ناتوان، ټپ ټیپ، کم طاقته.
**کمزورے** : د کم زور خاوند، ډنگر، کم قوته، کم طاقته، ناتوان، خوار، ټپ.
**کم عقل** : بې وقوف، جاهل، ناپوهه، نادان.

**کم علمه** : کم علم لرونکے، د کم علم خاوند.
**کمک** : کومک، امداد، مدد.
**کم کم** : لږ لږ.
**کمکوتے** : ورکوتے، وړوکے.
**کم کوز** : یو نیم، ډیر کم، خال خال، شاذونادر، کله کله، چې موندل ئې گران وي.
**کمکے** : وړوکے، ورکوتے، کشر، د کم عمر.
**کمند** : د بره ختلو دپاره پکاریدونکے پړے،
**کموده** : د اعلیٰ قسم نرې وریژې.
**کمول** : لږول، له څۀ څیزه څۀ مقدار لرې کول.
**کمیاب** : کم موندونکے، ناویات.
**کمینه** : کمویه، کمینه، د کمې درجې، کمیں.
**کمیدل** : لږیدل، مختصر کیدل، ختمیدو ته نږدې کیدل.
**کمے** : د زیاتي متضاد، لږوالے، کموخت، نیمگړتیا، حاجت، ضرورت.
**کُن** : یوه لاحقه چې له توري وروستو راځي لکه فیصله کن، کونکے.
**کناټور** : غټ کناټې لرونکے، سست، کاهل، بیکاره.
**کناټې** : د وجود یو اندام، د پتون اخري حصه.
**کنال** : د زمکې د میچ یوه خاصه پیمانه چې د شلو مرلو برابر وي، د جریب څلورمه حصه.
**کنایه** : اشاره، علامه، کرښه، نښه، پیلامه، رموز.
**کنتون** : کنډتون، د ښځې د خاوند له مرگه پس خاوند نۀ کونه.
**کنج** : گوټ، خلوت خانه، گوشه.
**کنجر** : بې شرم، ډم، بې

حیا، کمینه.
**کنجکه** : خرموره، خر مهره، ګوجے.
**کنجلک** : ګنجلکه، تاؤ راتاؤ، مړاوے شوے.
**کنجوس** : بخیل، شوم، ترینګلے.
**کنجي** : چابي، پلی، کیلي، کلید د جرندې بر خیره کولو آله، پیچ.
**کنځل** : کنځا، ښکنځل، سپک وئیل، زیرې.
**کُنځله** : یو قسم تور او سپین رنګ لرونکے تخم چې تیل ترې ویستے شي د خوراک دپاره هم دغه تخم استعمالیږي. کنځلې.
**کند** : کنده، ډوغله، خندق. درز، خرقه، د ملنګانو فقیرانو قمیص ډوله پوشاک، ګدړی، بهوړی، د ملنګانو شړی.
**کنداغ** : د ټوپک دسته، د ټوپک هغه لاسکے چې د لرګي نه جوړ وي.
**کندو** : د غلې سمبالولو کوټګی، خمبه.
**کندے** : د ډیرو کورونو محلت، خیل.
**کنډه** : چیر، ژاوله، کنډورے، سیله، چیني، د ښنتر یا بلې غوړې شان ونې سیله. تومنه، د لنګې میښې، غوا چیلی وغیره د وړومبو دریو ورځو پیۍ.
**کنډاس** : بې غابښو، کړشپ.
**کنډال** : تش. کنډول، کنډولے، دمات شوي منګي یا کټوی وغیره هغه برخه چې څه څیز پکښې کیښودے شي.
**کنډاؤ** : درز، نامکمل، نیمګړے، کنډوۀ. د دوؤ غرونو منځ کښې وران ویجاړ ځاے،
**کنډر** : ورانه ابادي، د غلا دپاره شوے غار. مینه.
**کنډک** : د ګډو بزو رمه،

**کنډک** : کټوه، کټو، د روټۍ ټوک، سوکړک،
**کنډ کپر** : کنډې کوندې، لوړه ژوره، وران ویجاړ.
**کنډولے** : وړوکے کنډول، پیالی، د خاورو جوړه پیالی، کنډولګے. بې لستوڼو قمیص چې زنانه ئې اغوندي.
**کنډه** : تلـه، د زرګرانو د نازک تول تله. دړه.
**کنکاوک** : ګوډۍ، باډیوه، پتنګ، کانکوک،
**کنکر** : وړوکے کاڼے، د کاڼي ټوکړې.
**کنګال** : وینځلے شوے، صفا شوے. خالي، تش، مفلس، غریب.
**کنګره** : د ختې مخروطي منډو چې د کوټې یا برج د پاسه جوړ وي. بام، د منارې غاړه. د ښار د حفاظت مناره. کنګل، ماڼی.
**کنګل** : موره، یخ، کنګړ، د اوبو د سر د پاسه د ډیرې یخنی لـه وجې جوړ شوے پتړے.
**کنګو** : زعفران.
**کنوبے** : ریشتلے، ریشتل، هغه مواد چې د لوښي په ویخ کښې اخـر تـه پـاتې شي، زینځـاوے، زیم، لړې اوبـهٔ، معمولي اوبهٔ،
**کنه** : دا لفظ د ماقبل جملې د تصدیق او تاکید په غرض وئیلے شي ځان له څهٔ معنیٰ نهٔ ورکوي لکه وئ ګوره کنه.
**کُنه** : ویخ، بیخ، جـړ، د انسان او حیوان د لـویو بولو ځاے.
**کنه سوے** : لـه لانـدې معمولي سوځیدلے.
**کُني کبر** : سرطان، تیرماه، یوه آبي حشره.
**کنیت** : هغه نوم چې ځوي یا لور په نسبت پلار ته وئیلے شي، لکه ابو القاسم.
**کنیز** : وینځه.
**کنے** : کونے، د ګډو بزو یا

نورو شاروو یو وړوکے چینجے چې ورپورې نښتے وې او وینه ترې څښي.

**کناوه** : د لرګي پيزار.

**کنه** : هغه ښځه چې څۀ نۀ اوري.

**کنيدل** : له اوريدو پاتې کيدل، د سماعت قوت ختميدل.

**کوازه** : د لرګو جوړه اډانه چې ګلکار پرې ولاړ وي او ديوال جوړوي.

**کواکب** : د کوکب جمع، ستوري.

**کوبۍ** : برېبوړ کۍ، حباب، برېبوکۍ. پوکنۍ، پوڼکه، پوکانۍ.

**کوپ** : غټه پياله. ټوپ، دانګه، ترپله، دانګ. کوهان، کو، کوپان.

**کوپړۍ** : ککرۍ، کپرۍ.

**کوپۍ** : بوتل، کوپړۍ، ښيښه. هغه ټيمي لوښے چې پکښې حاجيان د زمزم اوبۀ راوړي.

**کوپۍ** : د کان پټۍ سره يو ځاے د اسپې په سترګو لګيدلې د څرمنې پټۍ چې يو خوا بل خوا نۀ شي کتلے.

**کوتار** : مشغول، ګرفتار، مبتلا، ګوتار، اخته، مصروف، بنديوان.

**کوتاه** : لنډ، کم، وړوکے، مختصر.

**کوتاهي** : کمے، کموالے، لنډوالے.

**کوتره** : ذرې ذرې، ټوټې ټوټې، ګيا چې وړه وړه کړے شي.

**کوترے** : د سپي وړوکے بچے، وړوکے سپے، کوکرے.

**کوتک** : غټه ډنډه، څوبارے، لوړ، ډانګ.

**کوتل** : حلالول، ذبحه کول. پريکول، د څناورو نه په لاسونو څرمن ايستل، ټوټه ټوټه کول، چور چور کول.

**کوتنه** : يوه آبي غټه مينوکه

لرونکې مرغابۍ چې وازده ئ ډيره قيمتي وي.
**کوته سائي** : د سا تنګيدنه، ساه لنډے، دمه، په سينه کښې د ساه ډير په خوارۍ تلنه راتلنه.
**کوټي لال** : يو تريخ بوټے چې غونډې پاڼې او سرې سرې داڼې کوي.
**کوټی** : وړه کنده، وړوکے ډوغل.
**کوټے** : قټے، د زنې قټے.
**کوټ** : حصار، قلعه، ګړ.
**کوټ** : يو مشهور لباس چې ځلق ئ په ژمي کښې اچوي.
**کُوټ**: نيمچه زيړ، يو دهات چې د زيړو په شان وي او په سرو کښې ګډولے شي.
**کوټ بنګار** : کوټ او زيړ، چې سرهٔ نهٔ وي، جس، زيړ، پيتل وغيره.
**کوټکی** : وړه کوټه، د کوټې اسم تصغير.
**کوټل** : وهل، ټکول، نړول، چور چور کول، قيمه کول، غمول، رټل، کوتره کول.
**کوټنی** : د چرګو کوټه، چرګ خانه. لوګو وهلے کوټه.
**کوټوال** : د قلا محافظ. د کلي څوکيدار، نائب.
**کوټه** : د وسيدو کمره. چې وخت پرې تير وي. بيکاره، د کره متضاد.
**کوثر** : د جنت د يو حوض نوم.
**کوچ** : سفر، يون، تګ، تلۀ. کُچ، هغه غوړ چې د ماستو شاربلو سره پيدا کيږي.
**کوچمال** : د روانيدو وخت، په سفر د تلو وخت.
**کوچنړ** : د ځناور بچے، د ګيدړ، ليوهٔ وغيره بچے.
**کوچنړے** : کوچانے، د خرهٔ وړوکے بچے.
**کوچوان** : ټانګه وغيره چلونکے.

لګونه، جوړ لګونه.
**کوښښ** : وګورئ کوشش
**کوښه** : د ښځو پیزار. پڼه.
**کوغالې** : کنده، ډوغل، ورغالې. جونګړه، کوډله. د غوړو لوټه، هغه مات شوې لوښې چې سپو ته پکښې خلق اوبۀ ړدي.
**کوفته** : زخمي شوې. قیمه شوې. یو قسم پخکړې.
**کوکاره** : چغه، کریکه، کړیکه، فریاد،
**کوکب** : ستورې، ستاره.
**کوکنار** : افیم، ډوډه، پوست.
**کوکو** : خوږ، ښائسته، کوکی. ګل.
**کوکه** : چغه، نعره، سوره، کریکه.
**کوکی** : خلۀ، بوسه. پپی، پپه. د ماشومانو دپاره د میني تورې.
**کول** : د یو عمر خلق. د یو خاندان خلق. نسل. ټولې، خاندان.
**کول** : یو کار پوره کول، له اغازه تر انجامه رسول. غول، جماع کول.
**کولال** : کلال، هغه څوک چې د خاورو نه لوښي جوړوي.
**کولپی** : کلپی، کاشین، خمیره دان، خمبیره دان، د اخښلو شوؤ اوړو لوښې.
**کولمه** : د ګیلډې دننه یو عضو.
**کولنډه** : کولنډې، هغه لرګې چې څناورو ته په دې غرض اچولې شي چې منډه نۀ وهي، ډنډی، د سپي د غاړې لرګې.
**کولنګي** : اصلي چرګ، جنګي چرګ.
**کوم** : ضمیر موصوله، استفهامي ضمیر.
**کومک** : امداد، حمایت، کمک، مرسته، ملاتړ،
**کومې** : ستونې، د تالو اخري حصه، د نغري منځ چې

سکارهٔ پکښې جمع وي.
**کوناتې** : د کونې یو خوا بل خوا برخه.
**کونتر** : مختلف قسمونه لرونکې یو مارغهٔ، چې په کورونو کښې ساتلې شي.
**کونتره** : د کونتر مؤنث.
**کونج** : کنج، کوټ، طرف.
**کونجکه** : خر مهره، ادیله، لږ مقدار، کوچې.
**کونجي** : کنجي، چابي.
**کونځی** : کمځی، کوځی.
**کونډه** : کنډه، هغه ښځه چې خاوند ئې مړ شوې وي.
**کونډهٔ** : د چمیاری یو اوزار چې د کنډلو دپاره پکاریږي. حلقه، الغه، د کبانو نیولو یوه آله.
**کونډۍ** : د کیکر ونه. لرګینه کاسه، کنډول. د غلې پیمانه کولو آله، د لاس یو پسول، د کوناتې د پاسه هډوکې،
**کونه** : سوپره، مقعد. دبر، لاندې ویخ. د هر څیز لاندې حصه.
**کونه سوې** : هغه پخکړې چې لاندې حصه ئې سوې وي، نیم سوځیدلې،
**کونې** : کنې، کونه ور کونکې، ډونګالي، ډاکي، ګانډو.
**کونې** : یو قسم حشره چې په ځاروو پورې نښلي او وینه ترې څښي.
**کوڼ** : چې په غوږو څهٔ اوریدې نهٔ شي. د سماعت نه محرومه.
**کوه** : غر، غرهٔ.
**کوهې** : کوئې، چاه، څاه، ژوره کنده. قبر، هغه ژوره کنده چې د اوبو راویستو دپاره جوړه شوې وي.
**کویږده** : کویدن، کویږدن، کوژدن.
**کهٔ** : غیر یقیني، د شک.
**کهکشان** : اسمان لاره. له

ستورو جوړه شوې اسمان لاره.
**کهنه** : زوړ، د زړې زمانې، پخوانۍ، تجربه کار.
**کهه** : خارښ، خارښت، خارش.
**کهی** : هغه د پلنې خلې لرونکې سسکوره چې ختېه پرې جوړولې شي.
**کیاري** : کیاره، د زمکې یوه حصه چې پکښې سبزي کرلې شي.
**کیچړی** : نرمې پخې شوې وریژې.
**کیخې** : وړوکې سپین رنګې چینجې چې د بنیادمو د لویو بولو په ځای کښې پیدا کیږي، کیخې، کیخه.
**کیراړ** : هندو. ټګ، دوکه باز.
**کیرړې** : کیرړه، کرړې، یوه حشره.
**کیښې** : یو قسم چینجې چې عام طور سره د خوړو ځیزونو خوړلو په وجه د بنیادمو کونه کښې پیدا کیږي. کیخ، کیخې.
**کیکر** : یوه خارداره ونه.
**کیل** : خط. اره. نقشه، لکیره. د قلبې کرښه، د پال د څوکې کرښه، کیله.
**کین** : کینه، عداوت، دشمني.
**کینه** : بغض، حسد، زړه ته اچول.
**کین** : ګس، ګڅ، د ښي مقابل.
**کیپ** : نسوار، نشه، بې خودي، مستي، کیف.
**کیچ** : کیږ، قیچ، کلک، سخت.
**کیدل** : تر سره رسیدل. ختمیدل. زیږیدل، خپلولي لرل، رشته لرل.
**کیر** : د پټې نه تاؤ راتاؤ د ټانګرو یا ارهرو، جنجرو احاطه، باړ، د غنو یا د لښتو ګیر چاپیره دیوال.

**کیږدل** : کیښودل، ایښودل.
**کیږدۍ** : کیږدی، خیمه، تمبو.
**کیښودل** : ایښودل. ایښول.
**کیفیت** : حالت، رنګ ډنګ، رونق، مزه، نشه، شرحه، تفصیل، رپورټ.
**کیک** : د میدې اګو او خوږوه نه جوړ یو قسم خوندور خوراک.
**کیلو** : د ناپ کوله وزن، کلو.
**کیله** : یوه میوه او د هغې ونه.
**کیمره** : د عکسونو اخستو آله.
**کیمه** : قیمه، کوفته، ټکیدلې غوښه.
**کیمه** : د څرمنې جوړ لوښے چې د ګانې نه پرې تیل راخستے شي او نورو لوښو کښې اچولے شي.
**کیمیا** : د کیمسټری علم، د خاورو نه سرۀ زر جوړونه. نایاب.
**کیمیاوي** : کیمیا سره متعلق.
**کیوتل** : ګیریدل، مصرف کیدل.
**کئے** : کهے، یو قسم وابنۀ، کیے.
**کۍ** : قی، د وړو په ژبه لوے بول یا غل، ډکې متیازې.

**ګ** : (ګـــاف) د پښتـو د حـروف تهـجـي درې ديـرشم حـرف، د ابـجدو په حساب د "ک" بـرابـر يـعنې شل(۲۰) قيمت لري.

**ګاټرى** : ګـاټرى، د فصل يا د وښو ريبلو آله، لور،

**ګاټـے** : د ستـر ګـې ککى يا تور. د ستر ګو تور.

**ګـاځره** : ګـاجـره، ګاجاره، زردک، يو قسم سبزي.

**ګاډر** : د وسپنې تير يا بش.

**ګـــاډي والــه** : ګـــاډے چلونکے، ګاډيوان.

**ګـــاډير** : د غـنـمـو، جوارو وغيــره د ګـډوودو اوړو پخـه کـړے شـوې روټـى، ګاډيره، ګاډيل، ګاډيله.

**ګاډے** : د سـورلو يا سامان د وړو راوړو بـګـى مثلاً ريـل، بـس، چـکـړه، ريـړه، ټـانګـه وغيره.

**ګار** : هـغـه لاحقه چې د اسم سـره يـو ځاے شي نو د اسم نه فـاعـل جوړوي لکه خدمت نه خدمتګار، ګناه نه ګناه ګار.

**ګاړ** : ګـډوډ، وران، ويـجاړ، رنګ بنګ.

**ګـــاړبـوزه** : ګــړ ګـوزه، ګاړ ګوزه، له يخنى ړچيدنه.

**ګاړ ګوټي** : ګـنجي ګنجي ويښتهٔ، ګالګوتي، ګلګوتي،

**ګاړه** : د ګـډو بيزو د پنډولو ځاے، شپول.

**ګـاک** : چـاپـت کـونکےٓ، ګـــاکـــي، لاګـــي، بيپـــاري، ګاهک.

**ګاګر** : سخت، کلک.

**ګـاګير** : بې پـروا، هواګير، وارخطا،

**ګاګے** : پـه فـصلونو کښې د انســان پــه شـکل جوړ کړے شـوے شـے چـې مـارغان پرې ويـرولے شـي. افچه، بدلک، ګوډاګے.

**ګال** : يـو قسم غله، غوښت، کـاکـنـج، ږدن. شغال، ګيدړ، سورلنډوے.

**ګالل** : برداشت کول، زغمل، ساتل، محفوظ کول، خيال ساتل. سر ته رسول، خلاصول، پوره کول.
**ګام** : قدم، له يو قدم نه تر بله قدمه فاصله، ګامه.
**ګان** : موزون، مناسب، لائق. لاحقه چې د واحد سره يو ځاے شي نو جمع جوړوي لکه ميلو نه ميلوګان، الو نه الوګان.
**ګانله** : راتلونکے وخت، راتلونکې زمانه، مستقبل، ګانډه.
**ګانډو** : کونه ور کونکے، کونه ور کړے، کوني.
**ګانډيل** : د شړشمو ساګ، غندلې، هغه پياز چې تخم دپاره ترې پاڼې ونۀ شو کولے شي.
**ګانګوړه** : ترټري خبره، تتره، هغه خبره چې په نبنتې ژبه وکړے شي.
**ګانګوړے** : ترټرے، تتړے، هغه ځوک چې د څۀ مرض يا ويرې له وجې نبنتې خبرې کوي.
**ګانه** : لوبه، سندره، په ترنم کښې د موسيقۍ سره وئيلے کيدونکې شعرونه.
**ګانه** : د رقم په عوض کښې څۀ څيز يا زمکه چا سره ايښونه يا له چا ايښونه. ګروه. کالے،
**ګانۍ** : له ګنو نه د شربت ويستو يا له شړشمو وغيره نه د تيلو ويستو مشين. هغه ځاے چرته چې د ګنو نه ګوړه جوړولے شي.
**ګاونډ** : سره نزدې نزدې کورونه، محلت، چم.
**ګاونډي** : په يو ګاونډ کښې سره وسيدونکي، نزدې سره وسيدونکي.
**ګاه** : ځاے، مکان. د بادشاه تخت، پلاز، ګدی، وخت، محال، کتهالی، کله.
**ګاهک** : ګاک، خريدار،
**ګاه ګهے** : کله کله، کله نا کله.

**ګبر** : آتش پرست، د اور عبادت کونکے، کافر، بت پرست.
**ګبینه** : مچی، بورا، ګاربینی، مچ، غربینی، ګبین، شات، انګبین.
**ګپ** : ټوقه، ګپ شپ، ټوقه ټقاله، افوا، بې بنیاده خبره، غټه نوړی، لویه نمړی.
**ګپه** : غټه نوړی. دومره لونده خاوره چې په لاس کښې راټلے شي. لوټه، چم، وړو کے کمر، ټوقه، ګپ،
**ګپي** : خوش طبیعته، مزاح کونکے، ټوقي، ظریف.
**ګتاوه** : اړداوه، ګډه، بتاوه، بوتاوه، د څاروو خوراکه چې بوس او بل څۀ دانې اوړۀ دل یا کل ورته ګډ کړے شي.
**ګتکه** : هنر، کرتب، چل، مهارت، دوکه، فریب، داؤ.
**ګتمنلړے** : ګوتې ور کونه، شاغوتونه ور کونه، عیب لټونه، اعتراض، شبه، اړنګ، الزام،
**ګتمه** : ګوتمه، څلے، یو کالے چې په ګوته کولے شي.
هغه خول چې د ګوتې سر ته د جامو ګنډلو په وخت اچولے کیږي.
**ګته** : ګوته، د لاس هغه ګوته یا برخه چې بنیادم پرې د کار کسب جوګه دے. د پښې د سر هغه برخه چې بنیادم ته په قدم اخستو کښې، په ټوپ وهلو کښې اساني پیدا کوي.
ګوتمه، د اچولو یو کالے.
**ګته** : غټه کانټي، کانټی، غټ او پیړ کاغذ چې د څو برغه یو ځاے کولو نه پس مختلفو کارونو دپاره پکارولے شي.
**ګټ** : غټ کاڼے، کر کنډه، ګوسه، سنګره. ګوره توره وریځ.
**ګټ** : هغه ځاے چې په پلنوالي او اوږدوالي پکښې دوه دیوالونه خپلو کښې یو

خـابے کیږي. د وادهٔ نـه ورځ نیمـه مخکښې د جینی د پلار کـره د نـاستـې خاپے، د پتې د دوؤ پولود یو خاپے کیدو خاپے چې عموماً په یوم وغیره اړولے شي.

**ګټات :** ګـټـه، نـفع، منافع، ګټنه، د بائلات متضاد.

**ګټ پیر :** د لارې کوړوالے یـا کـږلیچ، تاؤ کوړ لیچ، ګټ پیرے،

**ګټل :** فـائـده مـوندل، فائده وچتول، بدل اخستل.

**ګـټندویه :** ګـټـونکے، ګټه کونکے،

**ګټور :** هـغـه څیز چې منافع پکښې وي. ګټه کونکے، ګټه ور.

**ګټه :** سـود، نفع، مزدوري، حاصل. کابې، تیږه.

**ګـټیز :** ګـوټـونـه لرونکے، ګټین، ګټیزے.

**ګجره :** د لاسـونـو یو کالے چې زنانه ئې اچوي.

**ګځاري :** ګزاري، نسوار،

**ګـځموزے :** هغـه څوک چې ډیرې خبرې نهٔ کوي او د زړهٔ راز چا ته نهٔ ښکاره کوي، غلے.

**ګچ :** سپینونه، چونه کونه.

**ګځے :** ګـس متـے، ګـس لاسے، هغه څوک چې زیات کار په ګس لاس کوي.

**ګدا :** سـائل، سوال کونکے، ملنګ، فقیر، خواست کونکے، غوښتونکے، درویش، ګداګر.

**ګـداز :** سـوزے، سـوے، سول، ویلې کیدنه.

**ګداګر :** وګورئ ګدا.

**ګـده :** ګـدیلـی، ګـدی، د حکومت یا پیرانو مسند.

**ګـدیلی :** زړې او شلیـدلې جامې. زړې او خیرنې جامې،

**ګدی :** مـجـلـس. تخـت، مسند. بدعمله ښځه، د کپړې یا بل نرم څیز موړه چې د سنډا یـا غـوئـې وغیره څټ کښې د ریړې رابښکلو په وخت اچولے

شي.
**ګډ** : د ګډېږ نر، پسهٔ، وری.
**ګُډ** : ګوډ، پـه لاس یـا پښـه بـانـدې بیکاره، شل، په لاس یا پښه ګړم.
**ګډا** : نڅا، ناچ، رقص.
**ګـډا نڅا** : ګـډا، ګډیدنه، د ګډیدلو جشن، رقص و سرود، د خوشحالی موقع، ښادي.
**ګډبنه** : د ګډبه مونث،
**ګـډبـه** : شپـون، شپـونکـے، ګـډې بـزې سـاتـونکـے او څرونکـے.
**ګډ ګاډیر** : ګاډیره، ارګجه، انـجړبـنجړ، خلط ملط، د بل څیز سره ګډ کړے شوے.
**ګـډوډ** : بـې تـرتیبـه، بـې طـریقـې، خورووړ، تتربتر، یو ځـایے، سـره ګـډ، شـریک، وران، خـراب، ارګـجـه، بـې طبعې، پریشان، ناساز.
**ګډوډے** : غوبل، غل غوبل، شور شغرب.
**ګډول** : نـڅول، په چا رقص کـول، رقـصـول، څـوک پـه خپـل حـکـم چـلول. یو ځـایے کـول، خـلـط مـلـط کـول، مشهـورول، خـورول، تاوول، چـورلـول، زیـاتـول، شاملول، شـریکول، په څهٔ معامله کښې د ځـان سـره څوک یو ځـایے کول.
**ګُډول** : ګـوډول، شلول، په لاس یـا پښـه څـوک ګړمول، بیـکـاره کـول. مـحتـاجـول، حاجتمند کول.
**ګډون** : اختـلاط، مـلاوټ، ګـډوډونه، سره یو ځایے کونه. شراکت، شمولیت.
**ګډه** : د ګډ مونث، په وجود وړی لـرونـکـے یـو وړوکـے څاروے چې پۍ هم ور کوي او وړی تـرې هـم حاصلولے شي او غوښه ئۍ هم خوړے شي.
**ګډه** : خوره، مشهوره، عامه. یـو ځـایے، خـلـط مـلـط، ګډ ګـاډیـره، څـاروو تـه یو ځـایے کـړے شـوے بوس او اوړهٔ یـا

بوس پتری او شنه ګیا.
**ګله وډه** : خلط ملط، یو شیز بل شیز سره داسې طریقه ګډ شوی چې بیلول یې ګران وي. بې ترتیبه، وارخطا،
**ګلېدل** : نڅا کول، رقص کول، شریکیدل، ګډوډ کیدل.
**ګلېدل** : ګوډیدل، شلیدل، په لاس یا پښه کړمیدل. حاجتمند کیدل، محتاجه کیدل.
**ګلشته** : پاتې شوی، سابقه، اوړیدلی. وروستو پاتې.
**ګراري** : غاښونه لرونکې ګاډینې چې مشینونو ګرځولو کښې پکار راځي.
**ګرام** : د وسیدو ځای، کلی، موضع، سیمه، ټاټوبی، ګرامه.
**ګرام** : په اعشاري نظام کښې د وزن یوه اکائي، د کلو ګرام زرمه برخه.
**ګرامر** : د ژبې دستور، د ژبې قواعد و ضوابط، د صرف و نحو علم.
**ګران** : محترم، عزتمند، بزرګ، قدرمند، ښاغلی،
**ګران** : مشکل، د اسان متضاد. خوږ، خوبن، قیمتي، سخت، تکلیف ده، دروند، نایاب.
**ګرانول** : نرخ خیژول، قیمت زیاتول، خوښول، سختول، مشکلول، نایابول.
**ګراني** : ګرانښت، ګرانوالی، مهنګائي، قیمت زیاتیدنه،
**ګرانیدل** : قیمت زیاتیدل، نرخ زیاتیدل، بیه زیاتیدل، خوښیدل، سختیدل، مشکلیدل، نایابیدل.
**ګرباده** : د پیریانو ډولی، دیوباد، د باد چورلندی، بربوړکی.
**ګربیټ** : سوکړک، سکړک، د جوارو روټی.
**ګرت** : د دوؤ ګوتو تر منځه فاصله.
**ګرځنده** : ګرځیدونکی،

ګرځانه، ګرځن، تاويدونکے، چورليدونکے، سيلانے.
**ګرځول** : حرکت ور کول، چکر ور کول، ځوک له لاسه نيول او روانول، په چا سيل کول، حقدار ثابتول، بل طرف ته اړول، بې رخې اختيارول، التې کول، باقي کول.
**ګرځيدل** : روانيدل، حرکت کول، سيل کول، حقدار ثابتيدل، له ژبې اوړيدل، ډله پرېښودل، بل طرف ته اوړيدل، د سر چورليدل.
**ګرد** : تمام، ټول، ګرد، چارچاپيره، ګيرچاپيره.
**ګرد** : ګرد، خاورې، دوړه، غبار، خيرے.
**ګرد** : پهلوان، دلاور، بهادر.
**ګرد** : غونډے، ګول، ګرد.
**ګرداب** : د اوبو چکر، چورلندے، ګرداؤ، غلی، غولی، چتو، لنګری. زخم، بانيچغ. يو قسم ټال.
**ګردان** : صيغې د ترتيب مطابق سر دوباره کونه.
**ګردان** : ګرځيدونکے، تاويدونکے، اړولے، ګرځولے شوے.
**ګردباد** : سيلی، طوفان، هغه سيلی يا هوا چې ګرد د ځان سره الوځوي.
**ګردسره** : ټول، له سيلمې، بالکل، بيخي.
**ګردش** : دور، چکر، سيل کونه، ګرځيدنه، تبديلي،
**ګردن** : ځټ، مرى، ورمېږ. د کوزې يا صراحی وغيره غړی.
**ګُردنی** : د کارتوسو پټی،
**ګُرده** : بډوډے، پښتورګے. حوصله، همت، جرأت.
**ګرده** : خام چرس، کچه چرس، خاکه.
**ګرز** : ګرس، دولس درجنه، دولس درځنه.
**ګرز** : امسا، لوړ، ډانګ، ډانګوری، کوتک.
**ګرسره** : بيخې له سره،

قطعاً، بالکل.
**ګرسنه** : وږے، نهر.
**ګرفت** : نیولے شوے، نیونه، قبضه، اعتراض، اختیار، وس.
**ګرفتار** : قیدي، نیولے شوے، ګیر شوے، قابو شوے، بندي، انښتے، ښکیل،
**ګرفتاري** : نیونه، ګیریدنه، نښتنه، په حراست کښې راتلنه، قیدیدنه.
**ګرک** : خارښ، پم، کهه، خارښت.
**ګرګ** : یو خطرناک ځناور، لیوه، شرمښ.
**ګرګابی** : یو قسم پیزار، موزې.
**ګرګاوړے** : هغه غونډے څیز چې رغړولے یا تاوولے شي. ګیر ګاوړے، ګرد ګاوړے.
**ګرګټ** : د اوښ د پښې هډوکے. رنګ بدلونکې د کررہوړې په شان یوه حشره.
**ګرګره** : د بیرې هومره تورې دانې کونکې یوه ونه او د هغې میوه.
**ګرګه** : د ونې ویخ، د ونې هغه برخه چې په زمکه کښې دننه وي. غټ بش، تیر، شهتیر. غټ کټ سرے، مضبوط سړے.
**ګرم** : تود، حرارت ور کونکے. تیز، چست، چټک. عاشق، مئین. جذباتي، غصه ناک، قهریدلے.
**ګرم** : غم، رنځ، پسخاک، پخساک، نول، دماغي پریشاني، یو مرض چې د غم له وجې پیدا کیږي.
**ګرم** : ملامته، پړ، قصوروار.
**ګرماله** : ګلماله، ختماله، د اخیر یا لیو کولو آله، پتانده.
**ګرمټ** : هغه آله چې یو سرئ دروند وي او فرش، سړک یا زمکه وغیره پرې د کښیمندولو په غرض ټکولے شي، درمټ، ګیرمټ.
**ګرمکه** : هغه نرۍ دانه چې د ګرمۍ په وجه په بدن

راخیژي.

**ګرمول :** ملامته کول، پړ کول، قصوروار کول، قصور ثابتول،

**ګرمول :** تودول، حرارت ورکول، تیزول، شوق ورکول، غصه کول قهرول.

**ګرمه :** هغه میوه چې زر پخیږي. زر رارسیدونکې یا پخیدونکې میوه. د خربوزې یو قسم.

**ګرمي :** تاؤ، تپ، تودوالے، تودوخي. د اوړي موسم. غصه، قهر، غضب، سوزاک، د تشو متیازو سوے، آتشک.

**ګرمیدل :** ملامته کیدل، پړ کیدل، قصوروار کیدل.

**ګرمیدل :** تودیدل، حرارت موندل، شوق موندل، تیزیدل، غصه کیدل، قهریدل.

**ګرو :** پوه، پوهه، استاذ، تجربه کار، پیر، ماهر، هوښیار، چالاک، د علم نابغه استاذ.

**ګرو :** ګانه، کفالت، قید، تړ، تړون، ناغه، عهد و پیمان، قول، لوظ.

**ګرول :** نوکارې کول، په نوکونو راتوږل، پوستکے لرې کول، توږل، حاصلول.

**ګروه :** د اوږې او څټ تر منځه ځاے. د قمیص کالر، ګریوے.

**ګروه :** دین، مذهب. قوم، ټولے، ډله.

**ګره :** په خاورو کښې د محفوظ کړے شوو ګنو ټوپ یا ډیرے.

**ګِره :** د ګز شپاړسمه حصه.

**ګریان :** فریادي، ژړغونے، ژړیدونکے،

**ګریس :** وازګه، چربي، وازده، غوړوالے. یو قسم سلیښناکه ماده چې د موټرو لارو په پایو کښې د غوړ والي قائم ساتلو دپاره استعمالیږي.

**ګریه :** ژړا، انګولا، ویر، چغې، فریاد.

**ګرېيان :** ګريوان، د قميص غاړه.

**ګـرېـدل :** کهـــه کيـدل، خــارښتيـدل. رژيـدل، ګـنجـي کيـدل، کـرښـې کرښې کيدل، زخمي کيدل، خورګ د وجود نه لـرې کيـدل، پـوستکـے لرې کيدل، حاصليدل، بوديدل.

**ګرېز :** تيښتـه، فرار، بيليدنه، پـرهيـز، اجتنـاب، پـه قصيده کښې لـه تـمهيده پـس اصل مقصد ته راګرځيدنه.

**ګـرېـزان :** تښتيـدونـکـے، ويريدلے، ترهيدلے، ګريزپا.

**ګرېوان :** د قميص هغه برخه چې پـه سيـنه پرته وي او تنې پرې لګولے شوې وي. ګريبان.

**ګړ :** قـلـعـه، قلا، حصـار. د لاحقې په طور د ظرفيت معنيٰ ورکـوي، د وسيدو ځاے، لکه امـان ګـړ، علي ګړ، خوشحال ګړ وغيره.

**ګـړب :** تيـــزې او تــنـدې خبرې. د دوؤ څيزونو په خپلو کښې د جنګيدو اواز، د ور يا بل څيز په زوره د بندولو اواز. د منبر کانو نيولو پنجره. غټه سوړه، چاودے ځاے.

**ګړبړ :** د ګيلهې د کرړيدو اواز، قړ قړ. بـدنـظمي، خلل، بدانتظامي، ګډوډے، ورانے.

**ګړبوزه :** ړچ، ګړګوزه، رپ رپے.

**ګړځ ګړوځ :** ګړز ګړوز، ګـړګـوړ، غـرغـور، پـه بـاران کښـې د اسماني بجلي اواز. د تندر اواز، ګړزهار.

**ګړد :** دوره، ګـرد، غبار، هوا سره الوتونکې خاورې خځلې.

**ګړدان :** ګـردان، سردوباره زوتول. ګرځيدونکے.

**ګړداؤ :** چله، سيلاب، ځپه، هـغـه سيـلاب چـې چارچاپيره مـخـې وهـي. غولی، ګرداب، چورلندے.

**ګړدسره :** بـالکل، بيخي، له سيـلـمـې، لـه سره، چورلټ، چور.

**ګردۍ** : غونډه، د دائرې په شکل تاؤ شوې، ګيرچاپيره، تاؤ راتاؤ؛ حلقه.

**ګړزا** : د ډېرو مسلسل اواز. ګړزار.

**ګړګړو** : تورتوړو، ستونی، حلقوم، غړی، غروی، د مرۍ سوری، حلق.

**ګړګوټي** : ګلګوټي، ګالګوټي، ګاړګوټي، هغه ويښته چې تاؤ راتاؤ وي.

**ګړګوړ** : د اسمان ګړاری، تندر، د بريښ او ګړاري اوازونه، تنا، د اسماني بجلی اواز.

**ګړندۍ** : چرمښکی، هغه کربوړی چې په کورونو کښې ژوند کوي.

**ګړندی** : تيز رفتار، چست و چالاک، تکړه، چابک.

**ګړنګ** : لويه کنده، د درياب په غاړه لوی کمر، ډېر لوړ ديوال، ګړنګه.

**ګړنګ** : ګړينک، د پوزې غليظه ماده، ټن، خن، خړمت، کړميزه.

**ګړول** : په خبرو راوستل، د چا نه خبرې ايستل.

**ګړونج** : د لرګوجوړ کړی شوی د منګو د ايښودو ځای، ګړماچی، ګړمچی.

**ګړه** : ګوړه، د ګنو له شربته جوړيدونکې خوږه ماده چې په چايو يا شربت وغيره کښې استعمالولی شي.

**ګړيال** : لويه ګړۍ چې ديوال ته ځوړندولی شي.

**ګړيدل** : خبرې کول، ګړه بړه کول، ګړريدل، کرړيدل، ګړز ګړوز کول.

**ګړۍ** : د وخت ښودلو آله، ګنټه، ساعت، د وخت حصه.

**ګړۍ** : حلقه، شپول، هاله، ګردۍ.

**ګړی** : د ځنو اسمونو په اخره کښې راتلو سره د فاعليت معنیٰ پيدا کوي لکه دريم ګړی، ژرنده ګړی وغيره.

**ګړې** : منګې.
**ګز** : درې فتحه، د ناپ یوه اندازه، هغه سیخ چې د ټوپک په شپیلی کښې نښتي توقه پرې راویستے شي.
**ګزار** : ګوزار، غوزار، ډب، درب، وار، ځل، کرت،
**ګزارش** : عرض، بیان، درخواست.
**ګزاره** : ګوزاره، ګزران، وخت اړونه، ورځې شپې تیرونه، ګزراوقات، ساعت تیرے، زغم، صبر.
**ګزران** : وخت اړونه، وخت تیرونه، یو ځاے وسیدنه، ساعت تیرے، ګوزاره، زیست، وخت تیرے.
**ګزک** : پاړسوب، د زخم اوبۀ پټونه، پړسیدلے، نوژن.
**ګزک** : هغه څیز چې د افیمو یا شرابو څښلو نه پس د خلې خوند بدلولو دپاره خوړے شي. یو قسم متهائي، خوارۀ.
**ګزلک** : چاړۀ، چړوکی، کړلکه.
**ګزیده** : خوړلے شوے، ټک ور کړے شوے، مارخوړلے.
**ګزیر** : مدد، چاره، علاج. صبر، تحمل.
**ګس** : چپ، کین، د ښي ضد. د انساني زړۀ خوا ته اړخ.
**ګستاخ** : بې ادبه، بې شرمه، کلک ستر ګے، سپور ژبے، وچ ستر ګے، بې حیا.
**ګستاخانه** : د ګستاخي.
**ګستاخي** : بې ادبي، سر کشي، بې شرمي، بې حیائي،
**ګسے** : په ګس لاس باندې کار کونکے.
**ګشت** : چکر، دور. پیره، څوکی. سیل، ګرځیدنه.
**ګشتی** : شلته، متهیزه.
**ګفت** : خبره، لفظ، وینا. ازار، بنیره،
**ګفتار** : خبرې، وینا، ګفتګو، خبرې اترې. په مرکباتو کښې

د ویونکي معنیٰ ور کوي لکه خوش گفتار وغیره.

**گفتگو** : خبرې اترې، وینا، بیان، گفتار.

**گگره** : یو مخصوص قسم ارت او لوړے قمیص.

**گگړ** : گوگړ، گندهک، یو کیمیائي څیز، بارود.

**گل** : غټه غټه ړلی، ژلی.

**گل** : سپړدې شوې غوټۍ، معشوق، په وجود د داغیدلو نښه، د ډیوې د باتۍ سوزیدلے سر.

**گل** : د سترگو بیماري چې د سترگو ککۍ سپینه شي او نظر ترې ختم شي.

**گلاب** : یو مشهور بوټے سرۀ ښائسته گلونه نیسي، دې گل ته د گلونو بادشاه هم وئیلے شي.

**گلابتون** : د سرو زرو تار، زرین تار.

**گلابي** : گلاب رنگے، د گلاب په شان رنگ لرونکے.

ښائسته، حسین.

**گلاس** : د اوبو څښلو سلوري یا د شیشې یا ستیل اوږد لوښے، گیلاس.

**گلاله** : کولالی، کوتالی. پخه شوې سره بیره.

**گلالے** : د گل په شان، ښائسته، ښکلے. حسین، گلفام، گلرخ.

**گل توت** : هغه د غټو پاڼو توت چې د کاغذ په جوړیدو کښې استعمالیږي.

**گلټ** : زیړ رنگ لرونکے یو دهات، گیلټ.

**گل جړی** : گل خړی، نښه، څرے، کهاړ.

**گلچین** : گلونه شوکونکے، مالي، باغوان.

**گلدار** : د ساده متضاد، گلونه لرونکے، هغه چې گلونه پرې جوړ شوي وي.

**گلدان** : هغه لوښے چې گلونه پکښې ایښودے شي، د گلونو د گلدستې ایښودو

لوښې.

**ګلدسته** : د ګلونو ګېډۍ، د قسماقسم راشوکولو شوو ګلونو غنچک،

**ګـلډانګ** : د سپو يو قسم چې د جنګ دپاره ساتلې شي.

**ګـلرخ** : د ګـل پـه شان مخ لـرونـکـې، ګـلفـام، ښـائسته، ګـلـرو، حسين، پيې مـخـې، معشوق.

**ګـلرنګ** : د ګـل پـه شان رنګ لرونکې، ښائسته، ښکلې، حسين.

**ګلزار** : د ګلونو ځاې، باغ، ګـلشـن، هـغه ځاې چې ګلونه پکښې ولاړ وي، ګلستان.

**ګلستان** : وګورئ ګلزار.

**ګـل شکره** : د قـمرې کال دويـمـه مياشت. صفر، د صفر مياشت.

**ګـلعذار** : د ګـل پـه شان، د ګل کلی، ډير ښائسته، لالې.

**ګلفام** : د ګـل پـه شان رنګ لرونکې، محبوب.

**ګل قند** : يـو قسم دارو چې د ګـلاب لـه پـاڼو نـه جوړولې شي.

**ګلکار** : مـعـمار، د مکانونو جوړولو ماهر.

**ګلګون** : ګل رنګ، د ګل په شان، د ګل په څير.

**ګل لاله** : يـو صحرائي ګل چې سور رنګ لري او په منځ کښې ئ تور داغ وي.

**ګِـل مـاله** : ګـرمالـه، د ليو پـلستـر يا اخيړ وغيره هوارولو اوزار، ګـرمـالـه، ګيـرمـالـه، ختماله.

**ګلنار** : سور رنګ لرونکې، د انار د ګل مخفف.

**ګلوبند** : هـغـه د غاړې نرمه پـتـې شـان چې له يخنی پرې غـاړه، څټ او غـوږونـه بـچ سـاتـلـې شـي. يو کالې چې په غاړه کښې اچولې شي.

**ګـلوکوز** : يـو قسـم خوارۀ دارو چـې پـه وجـود کښې د تـوان برقرار ساتلو په غرض په

اوبو کښې اچولے او څښلے شي.
**ګلوله** : ګيټې، وړوکے غونډارے. ګلګله، پکوړه.
**ګله** : رمه، کنډک، پاده، ميا. ګوله، ګره، نمړی، مړی، نوالـه، غلـه، صندوقچه يا صندوق چې د کاندار پکښې پيسې ږدي.
**ګليخار** : يو قسم سره دوائي چې د ستر ګو او خلې پخيدو دپاره پکارولے شي، شيشې رنګ.
**ګلې** : د زياتو تروو او ترشو څيزونو خوړلو له کبله په مری کښې زياتې غوښه پيدا کيدنه. يو مرض چې په مری کښې غوټې پيدا شي.
**ګم** : سريښ، سليښ، ګوند، اوری، د غاښونو دپاسه غوښه.
**ګمارل** : ګومارل، مقررول، پـه ذمه کول، پاسلول، سپارل، حواله کول، انګيدل، ننګيدل، دد کارل، ډومارل، پارول، نيغول، پاڅول.
**ګماشته** : هغه سړے چې ورته څۀ کار حواله کړے شوے وي، کارنده، ايجنټ. وجه، سوب، سبب.
**ګمان** : ګومان، خيال، اندازه، قياس، اټکل، شک، شبه، وهم، وسواس.
**ګماني** : خيالي، اټکلي، شکي، احتمالي، وهمي،
**ګمبت** : ګنبد، مناره، غونډے، عمارت، ګنبت،
**ګمراه** : لاره هير کړے، بې لارې شوے، ښوئيدلے، بې دينه، اوړيدلے، ګرځيدلے.
**ګمنام** : غير معروف، غير مشهور، هغه څوک چې څوک ئې نۀ پيژني، ورک نومے، پوشيده، ناپيژند ګلو.
**ګمنامي** : نامعلومتيا، نامعلوم توب، پوشيدګي، غير معروفيت، نۀ پيژندنه.
**ګناه** : جرم، خطا، غلطي، غلط کار کونه، قصور، خطائي، وبال، ګنا، د ثواب

ضد. د مذهبي احکامو خلاف کار کونه.
**گناهګار** : ګناه کونکے، قصور وار. د اسلام د قانون نه خلاف کار کونکے. خطاکار.
**ګنبد** : وګورئ ګمبت.
**ګنتي** : اعداد و شمار. شمیره، حساب لګونه.
**ګنته** : شپیتهٔ منټه، شپیتو منټو وخت. ګړی.
**ګنج** : خزانه، دفینه، ګنجینه، مخزن، ذخیره، ګودام، بازار، ملوکیت. د فقیرانو کاسه، کچکول.
**ګنج** : د سر ویښتهٔ نهٔ کیدنه، ګنجیتوب. یو مرض چې د سر ویښتهٔ پکښې دوړیږي.
**ګنجائش** : ځائیدنه، ځاے. فائده، بچت، مقصد، حوصله، واره.
**ګنجلک** : انډول پنډول، اړت غوړت، انجل بنجل، کنجلک، انګوچه، تاؤ راتاؤ، ګونجي.
**ګنجي** : ګونجي، انجل بنجل، کنځي،
**ګنجی** : ګونجی، د تارونو یا سوتلو غونډارے.
**ګنجے** : هغه سړے چې په سر باندې ئ ویښته نهٔ وي. پک. د جوارو هغه وږے چې د شمار یو څو دانې پکښې وي.
**ګند** : ناپاکي، غلاظت، بدبوئي، بې ترتیبي، ګندګي.
**ګندانه** : یو قسم ساګ چې د اوربشو او د اوړې په شان پاڼې لري. د پخلي نه علاوه د مستو چقنی او نور قسمه څیزونو سره هم خوړلے شي. ګندنه. ګنده هوړه.
**ګندبلا** : ناولتیا، ګند. معمولي او بیکاره څیز.
**ګندک** : د معدنیاتو یو قسم، ګوګړ، ګندهک، کیمیائي نامه سلفر.
**ګنده** : ناولے، پلیت بد کردار، شریر، بد فطرت.
**ګنده خر** : هغه خشاک

لـرګي وغيره چې سيلاب ئ د ځان سره راوړي، ګنګه خړي، ګنګه خړ،

**ګنډه** : ګينده، بخى، ټک.
هغه ټوټه چې د ګريوانۀ لاندې ګنډلے شي. د ميچنې يا ژرندې د پلونو نه ګير چاپيره د خاورې جوړه کړے شوې غاړه. پاموړه.

**ګنډل** : په ستن او تار سره يو ځاے کول، سره يو کول، بخى تيرول، ټک وهل.

**ګنډه** : غوټه، پنډوکے، ګنډلى. د پرتوغاښ اچولو ځاے، بډه، کوډې، جادومنتر، تعويذونه،

**ګنډير** : يو تريخ بوټے چې مختلف رنګونه لري ګندير، ګنډيرے.

**ګنډيرى** : د ژولو په غرض د سپين کړي ګنى ټوټه، ګنيرى،

**ګنګ** : وارخطا، اوتر، پريشان،

**ګنګخړي** : په سيلابي اوبو کښې رالاهو شوې واړۀ واړۀ لرګي. ګنده خړ.

**ګنګس** : وارخطا، ګډوډ، پريشان، سرګردانه، بې خوده، بيهوشه، بې سوله.

**ګنګو** : زعفران، زاپران، زيړ رنګے.

**ګنګوړے** : د انګورو غنچک،

**ګنګوسه** : اوازه، شوره، شهره، پس پسے، ګونګ ګونګ، بنګالو، افواه، د دروغو خبر خوريدنه. ګنګوسے.

**ګنوار** : بانډيځے، بانډيچے، د کلي او بانډې وسيدونکے.

**ګنهر** : د يو ساګ نامه، سره چلوائي، عموماً غنمو جوارو کښې کيږي.

**ګنهګار** : ګناه ګار، هغه چې ګناه ئ کړے وي. مجرم، خطاکار،

**ګني** : د ګنے جمع، لاحقه چې د بعضې اسمونو سره په

راتلو رشته ظاهروي لکه ترېګني،

**ګنې** : ګنه، نو، بيا، نو بيا، په نورو ټکو کښې، ګنه، ګواندې، ګوندې، ګندې.

**ګنی** : د مچو يا ډمبرو ګبين.
لاحقه چې د بعضو اسمونو سره په راتلو خاندان يا رشته څر ګندوي. لکه پلار ګنی، سخر ګنی وغيره.

**ګڼ** : ډېر زيات، په شمير زيات، د رنګي ضد.

**ګڼارے** : د ګڼ ګڼ اواز، د ګنيدو اواز، د پتو او ورو ورو خبرو اواز.

**ګڼ رنګے** : فصل رنګے کونه، له فصل نه ګڼ بوټي ويستنه، او کۀ رنګے وي نو پکښې نور بوټي لګونه.

**ګنګپ** : جيب تراش، جيبونه وهونکے، جيبونه پرې کونکے،

**ګنل** : قياس کول، پوهيدل، خيال کول، ګومان کول، شميرل، شمارل، منل، قبلول، تسليمول.

**ګنول** : ډيرول، زياتول، ګورول، ګړول، خبرې ايستل، په خبرو راوستل.

**ګنه** : شماره، د اخبار يا رسالې نمبر، جلد.

**ګڼه** : ګڼوالے، ډير والے،

**ګڼه ګوڼه** : ډيروالے، ګڼه، د خلقو زياتوالے، کثرت، اژدهام، هجوم.

**ګڼيدل** : ډيريدل، زياتيدل، خبرې کول، ګړيدل.

**ګو** : د ګواه مخفف چې د قسم دپاره وئيلے شي لکه خدائے ګو، خدائے ګواه دے.

**ګو** : وړانګه، وينا، خبره.

**ګواټه** : د ځپياکو ډيرے، د ځپياکو يو مصنوعي ډيرے چې په ترتيب سره کيښودے شي او بيا د ختې ليو ور کړے شي چې د باران نه بچ وي. ګوواټه.

**ګوار** : د حيواناتو ګله، ګواره، رمه، ګوهار.

**ګوار** : بدرنګ، بدشکل، شارشپاړ، ګنده، پوچ، خراب، ناکاره، پوواړ، پوهاړ.
**ګواره** : د څارو رمه، ګوار، ګوهار.
**ګوارے** : لوړے څادر، له بوجو جوړ کړے څادر، ځل.
**ګوابن** : د جنګ نه جدا کونه. ثالثي. منصفي. د دوؤ تنو جوړه راوستنه، زوررونه، درکه، خوف ور کونه، هڅه، جګړې ته راولاړیدنه،
**ګواه** : شاهد، ګواهي کونکے، ثبوت ور کونکے، شید.
**ګواهي** : شهادت، ثبوت ور کونه، شاهدي، شیدي.
**ګوبي** : یوه سبزي چې سپین غټ ګل لري او ګل ئ پخولے شي.
**ګوته په خلهٔ** : حیران، حق دق، هک پک، حق حیران، اریان دریان.
**ګوټ** : د مائع څیز هغه مقدار چې خلهٔ پرې ډکیږي.
غړپ، جرعه.
**ګوټل** : څښل، غړپ کول، په ګوټ ګوټ څښل.
**ګوته** : یادونه، یاداشت، حفظ کونه، بغیر له پوهي یادونه.
**ګوتي** : یو خاص قسم دارو چې ماشوم له د پیدا کیدو سره ور کولے شي.
**ګوجر** : د غوا میښو ساتلو او پیو خرڅولو کاروبار کونکے.
**ګوجے** : د یو سمندري لعاب دار چینجي خول یا پوستکے. سیپی، کودړ، کنجکه، خرمهره. خول، پوستکے.
**ګوځموځے** : غلے غنځے، هغه ځوک چې ډیرې خبرې نهٔ کوي، هغه څوک چې د زړهٔ راز چا ته نهٔ ښکاره کوي.
**ګودام** : ذخیره، ډپو، ډیپو، د څهٔ څیز ذخیره کولو ځاے.
**ګودر** : په سیند د پورې وتو ځاے یا لار. د سیند هغه ځاے

چې زنانه تره اوبۀ راوړي.
لاره، رو.
**ګودړ** : زوړ او بوډا څاروے، زوړ، بیکاره.
**ګودړی** : د ملنګانو زوړ او لوے پیوندي څادر، کند.
**ګوډ** : د فصل صفائي، فصل ته په کوداله یا رمبې زمکه نرمونه او واښۀ وغیره ایستنه.
**ګوډ** : هغه چې په کوداله یا رمبې نرم کړے شوے وي. صفا کړے شوے.
**ګوډاګے** : د ګوډی مذکر، جثه. هغه سړے چې د بل په اشارو کار کوي.
**ګوډمار** : ګوډ کونکے، هغه سړے چې ګوډ کوي.
**ګوډول**: فصل ته په کوداله یا رمبې زمکه نرمول او غیر ضروري بوټي ویستل، فصل صفا کول.
**ګوډه** : په ادب سره کښېناستنه، متوجه کیدنه، ګونټه،
**ګوډیدل** : په پښه یا پښو معذوره کیدل. فصل ته زمکه نرمیدل او واښۀ وغیره تري ویستلے کیدل، فصل صفا کیدل.
**ګوډے** : د څاروو د ګوډیدو یو مرض. هغه چینجے چې د جوارو بوټي کښې پیدا کیږي او بوټے وچوي. د بورې میښې وغیره د مړ بچي څرمن چې د بوسو نه ډکه کړے شوې وي. د څرمنې نه جوړ هغه څیز چې دانې، چرس، غوړي یا نور داسې څیزونه پکښې خوندي کولے شي.
**ګور** : قبر، مزار، د برزخ د ژوند تیرولو ځاے.
**ګور** : د رنګې ضد، ګڼ، ډک او خوررور، ډیر او سره نزدې نزدې.
**ګورخر** : د خر په شان یو ځنګلي ځناور چې غوږونه ئې حلاله وي،
**ګورستان** : قبرستان، مقبره.

اديره، هديره.
**ګور کبښ** : قبر کنستونکے، قبر کند، قبر کن.
**ګور ګابے** : يو قسم لوے او ژور بوټ.
**ګورم** : د خاروو ګله، رمه، ګواره، لويه ډله،
**ګورمکې** : يو قسم وړوکے قد لرونکې چرګه، پيشتکی چرګه،
**ګورنر** : د صوبې حاکم، د صوبې اختيار مند.
**ګورنري** : د ګورنر عهده، د ګورنر کار.
**ګورے** : خدائے خبر، ګومان مې نۀ شي. د شک او بې يقيني کلمه.
**ګوړ** : هغه وړه سوړه يا غار چې د اوبو د جريان نه په پټي يا وله کښې پيدا شوے وي.
**ګوړو** : ډير خوږ، په ګانې کښې د ګنو د شربت نه د ګوړې جوړولو ماهر، چې د ګانې په کلهم کار پوهه وي.
ګوړه جوړونکے.
**ګوزار** : ګزار، غوزار، درب، ډب، وار.
**ګوزن** : د بدن د رچيدو مرض، ګوزن، رپه رپے، فالج،
**ګوساله** : د غوا بچے، سخے.
**ګوسره** : سخته څپيړه، مضبوطه څپيړه، ګوزار.
**ګوش** : غوږ، غوږونه، اوريدنه.
**ګوشمال** : غوږ تاوونه. سزا، وهنه، ګوشمالي، ګوښمالي، ګوښمال.
**ګوشنه** : د شنه تابع مهمل وګورئ شنه ګوشنه.
**ګوشواره** : د حساب کتاب، خلاصه، ميزان. ټوټل.
**ګوشه** : ګوښه، ګوټ، ګُټ، کنج، قنج، کناره، خلوت، يواځې، د يواځې ناستې ځاے.
**ګوګ** : هغه څۀ چې منځ ئ تش وي. ډډ، ګوګن، لسبه، برېنګ، پوڼ.

**ګوګل** : سینه، د زړهٔ صندوق، ګوګر، د زړهٔ خانه.

**ګوګل** : په منځ کښې تشول، تراشل، ډډول.

**ګوګو** : د خطرې چغه یا غږ، ټلی، الارم، د اور ګاډي چغه.

**ګول** : حیران، پریشان، هک پک.

**ګول** : په ځنو لوبو کښې د لوبو د میدان هغه حصه چرته چې په یوه معینه طریقه رسیدلو باندې هغه ځای سره متعلق فریق بائیلات و کړي.

**ګوله** : نوړی، نمړی، قپ، کپه، روزي، رزق.

**ګوله** : ګرد ده درنه سکه، ګلوله، د توپې ګوله.

**ګوله بارود** : ګولی او بارود، وسله، میخزین.

**ګولیدل** : حیرانیدل، پریشانه کیدل، حل کیدل، ویلې کیدل، ګډیدل، ځاریدل، قربانیدل، ځونډې کیدل، ګرځیدل، پیچیده کیدل، فتنه راوچتیدل.

**ګولی** : وړوکے غونډے ځیز، ګلوله، په یو خاص مقدار کښې ګلوله کړے شوې دارو. د کارتوس هغه له سیکې جوړه حصه چې ځهٔ شے پرې ویشتے شي. مرد کے،

**ګون** : دا د عدد په اخر کښې راځي چې د نسبتي عدد او مساوات معنیٰ پیدا کوي لکه لس ګون، سل ګون.

**ګونټ** : د تار ګونجی چې د کاغذ یا ګتې د نچې نه تاؤ کړے شوې وي.

**ګونټه** : د پښې رابرغولو په صورت کښې د زنګانهٔ ستر ګه، د راغبر ګې کړې پښې سر، ګونډه.

**ګونجی** : د تارونو ګولی، ځرخی یا اټیرن چې تارونه پرې خیژي،

**ګوند** : یو قسم سلیښ ناکه ماده چې له ونو حاصلولے شي. سریش، سریښ.

**ګـونـډېـمـال** : ګـنـډې، ګونډې دوباره غوبل کونه.
**ګونګ** : لـه قـوت ګـويايي مـحـرومـه، هغه چې خبرې نهٔ شـي کـولـے، ګونګے، ګونګا، ګونګو.
**ګـونـګـټ** : يـو تـور رنـګ لـرونـکې الوتونکې حشره چې تـعـلـق ئې د ګنډګی سره وي. تک تـور او چـالاک لـنډے سرے.
**ګـونګتی** : يـو سور رنـګ لـرونـکې وړه حشـره چې د سبزو پاڼې خوري.
**ګونګرو** : جرس، ګنګرو.
**ګـونګړي** : د جـوارو چـنـو وغـيـره يشـولـے شـوې دانـې، چولي.
**ګـونـګـوړے** : د انـګـورو غنچک، غوشه، خوشه.
**ګـونـګـه روژه** : مـکـمـل خـامـوشـي، ارادتـاً خـامـوشي، بيخي خبرې نهٔ کونه.
**ګونګی** : د ګونګې مؤنث.
**ګونګے** : يو قسم مارغهٔ چې عام طور سره سپيرهٔ ګڼلے شي. بوم، اُلو.
**ګـونـی** : بـوری، بـوجـی، ګونډے، غونډے.
**ګونیا** : د ګـلـکارانو د لرګي يـوه پـيـمـانـه چې د ديـوال کـوږوالـے او سـمـوالـے پـرې مـعـلـومولـے شي. هغه څيز چې پـرې د بـل څيز اصلاح کولے شـي. د ګـوتـې هغه حصه چې غمے پکښې کيښودے شي.
**ګولے** : د سپـږې پـه شان يو چينجے چې په غله دانه کښې پيـدا کيـږي او غـلـې ته نقصان رسوي.
**ګوه** : هغه درز يا چاود چې په لـرګـي کښـې د څيـرلو دپـاره وکـړے شي. په لرګي کښې د پاني ور کولو چاود.
**ګوهر** : مـرغـلره، مرواريد، قـيـمـتـي کـانـړے، جوهر. اصل، نسل، ماده، ذات.
**ګوهري** : د قيـمـتي کاڼو، د

ملغلرو ، جوهري، د گوهر په شان.
**گويا** : وينا كونكے، خبرې كونكے، ښهٔ تقرير كونكے.
**گويا** : غوندې، لكه، هوبهو، مانند، جوړې، بالفرض.
**گويائي** : خبرې، د وينا طاقت، د خبرو كولو قوت.
**گوئے** : غنډسكه، پنډوس، هر يو غونډے څيز.
**گهواره** : ځانگو، زانگو،
**گهيځ** : د سحر وخت، سحر سبا.
**گهے گهے** : كله كله، كله نا كله، گهې گهې.
**گي** : لاحقه چې د بعضې صفتونو په اخر كښې په راتلو اسم جوړوي لكه ژندده نه ژندگي وغيره.
**گيا** : د څاروو خوراكه، واښهٔ، گياه.
**گيپ** : سمدستي، په ناخبرى كښې، گيپ شيپ، اچانك.

**گيتي** : دنيا، جهان، عالم.
**گيتۍ** : له پوندې نه بره دواړه طرف ته د پښې راوتلي هډوكي، وړوكے څيز، هغه وړه غونډۍ لوټه چې د چيلم په ټوپى كښې ايښوے شي. د شطرنج مهره، گوټ، گيتے.
**گيتے** : وړوكے غونډے كاڼے، گيټه،
**گيچ** : گنگس، بيهوشه.
**گيچى** : د هډوكي مغز، چغزے، چزغى، پوڅه.
**گيدړ** : د سپي په شكل يو ځنگلي ځناور، شغال، بزدل، ډرن.
**گيدړ سينگي** : يوه كلكه غوټه چې د گيدړ له تندي نه ويستے شي د كومې په حقله چې دا مشهوره ده چې دا د چا سره وي نو هر خواهش ئې پوره كيږي.
**گيدړ وادهٔ** : په نمر كښې د باران وريدو حالت.
**گير** : نيونكے، گيرونكے،

لاحقه لکه توښه ګیر، ارمان ګیر.
**ګیلاس** : د الو بالو د ذات یو قسم خوږه میوه. د پرونس د خاندان یوه ونه. ارغنجال.
**ګیلټ** : د سرو سپینو او زیړو په شان یو دهات چې د وسپنې کورنۍ ته زیات نژدې وي.
**ګیله** : شکوه، شکایت، ګله،
**ګیله من** : هغه چې ګیله ئ وي، ګیله لرونکے. ګیله مند،
**ګینده** : هغه ټکونه چې په ستن او تار کپړې وغیره له ور کړے شي.
**ګینګړے** : وړو کے ګونګرو،
**ګییدل** : د بوڼ تار تیریدل، بوټلے کیدل، ګنډلے کیدل.
**ګییل** : بوڼ یا تار تیرول، بوټل، ګنډل،
**ګیټ** : دروازه، ور، پاټک، لاره، د دوؤ غرونو په منځ کښې تنګه لاره.
**ګیډے** : کم عقل، احمق، بې وقوف، هغه چې د خپلې ښځې د ناکاره کارونو نه د خبریدو باوجود ستر ګې پټوي، بړوا، دله، دووس، نامرد، هیجړا، خصي. بزدل، ډرن.
**ګیډي خر** : ډیر غټ کم عقل، احمق، بې وقوف.
**ګیډو** : ډیر خوراک کونکے، خیټو، ګیډه ور، ګیډو، ډیر خوراکه.
**ګیډه** : خیټه، نس، حمل، امید، امیند.
**ګیډۍ** : د فصل، وښو، خشاک، وغیره یو خاص مقدار چې په ونډنې تړلے شوے وي.
**ګیر** : نښتے، ګرفتار، نیولے شوے، اړ، اخته، مبتلا، اوړیدلے.
**ګیر پیر** : اخوا دیخوا، دوکه، دهوکه، چل، فریب.
**ګیرچاپیر** : چارچاپیر، هر طرف ته، ګرد چاپیر، ګیر

چاپیره.

**ګیرول** : نښلول، نیول، قابو کول، بندول، ګرفتارول، اخته کول، ارکول.

**ګیره** : احاطه، دائره، کرښې، حلقه، ولقه.

**ګیریدل** : ګرفتاریدل، نیولے کیدل، ایساریدل، بندیدل، ترلے کیدل.

**ګیس** : د ټوس او مائع نه علاوه د مادې هغه قسم چې نهٔ ئ معین حد وي او نهٔ حجم خو بیا هم هر قسم مکان ډکولے شي. د مادې دریم حالت، د سوزیدو په کار راتلونکي بخارات.

**ګیسو** : لوے لوے ویښتهٔ، کمڅی.

**ګیل** : لاره، سړک، د ریړې، ټانګې وغیره د پلونو جوړه کړې لار.

**ګیلن** : د مائع دپاره پکاریدونکے یو په ناپ لوښے چې تقریبا د دوه سوه او لسو چټاکو برابر وي.

**ګینټه** : شپیتهٔ منټه، ګړی.

**ګی** : د غوندې ستن. هغه غټه ستن چې بوری یا غوندې وغیره پرې ګنډلے شي. یوه لاحقه چې بعضې اسمونو سره په راتلو اسم تصغیر جوړوي لکه کوټګی، لوټکی.

**ګے** : یوه لاحقه چې د بعضې اسمونو سره په راتلو اسم تصغیر جوړوي لکه غر نه غرګے، تبر نه تبرګے وغیره.

**ل** : (لام) د پښتو د حروف تهجي د پتېی څلور دیرشم حرف. په ابجدو کښې دیرش (۳۰) عدده دي.

**لا** : اوسه پورې، تر دې وخته، کله، کله پورې، لیا. دویم، زیات، پرې د پاسه.

**لاپزن** : لاپې کونکے، لافزن، لاپو، ډوزمار، لپړو،

**لاپه** : ځان ستائینه، ځان ښودنه، ډوزه، پوته، باډه، لافه.

**لاتو** : یوه وړه لکی لرونکې مرغی.

**لاتین** : د رڼا یوه آله چې باتي ته ئ له هوا د بچ کیدو په غرض شیشه لګولے شوې وي.

**لاثاني** : بې مثله، بې نظیره، یکتا، چې سیال ئ نه وي.

**لاجواب** : لاځواب، خاموش، غلے، چپ، مغلوب، عاجز، چې ځواب ور نهٔ کړے شي. دروغژن، بې مثله، لاثاني چې جواب ئ نه وي.

**لاچار** : ناچار، لاڅار. مجبور، بیوسه، محتاج.

**لاچي** : یو قسم خوشبو دار بوټے او د هغهٔ دانې.

**لاحقه** : هغه کلمه چې د بل لفظ سره وروستو لګي او په معنیٰ اثر پرې باسي. لفظ پسې لګیدونکې کلمه.

**لادباد** : طاقت، قوت، زور، توان.

**لار** : لاره، لیار، لیاره. د تګ ځاے، هغه ځاے په کوم چې تګ راتګ کولے شي. سړک، رو. قاعده، طریقه، رسم، اصول، اسلوب، د سر د ویښتو په منځ کښې کرښه.

**لاربښود** : لار ښودونکے، رهنما، لار سمونکے.

**لارغهٔ** : ډیل، ځنډ، تاخیر. وړاندې تیر شوے.

**لاروے** : لارو، لارے. په لار تلونکے، نااشنا، راهروے، پردے،

**لاره** : وګوري لار.
**لاره چاره** : روګودر، حل، تجويز، هوارے، بندوبست، غور، تعلق، راشه درشه، روزګار ساتنه، مړے ژوندے.
**لارى** : په تيلو چليدونکے لوے ګاډے، چکړه، بس، ټرک.
**لاړ** : سلسله، قطار، د غاړې کالے، اميل.
**لاړه** : د خلې اوبۀ، لعاب، توکاني.
**لاړے**: هغه لرګے چې په کوټه اچولے شي. لهړے، ډاکه،
**لازم** : ورروستو لګيدلے، نښتے. فرض، ضروري، په ګرامر کښې هغه مصدر چې صرف فاعل لري.
**لازمي** : ضروري، واجب، فرض، خامخا، بالضرور.
**لازوال** : هغه چې زوال نۀ لري. هميشه پاتې کيدونکے.
**لاس** : په انساني بدن کښې له اوږې نه د منګلې تر ګوتو پورې حصه چې انسان پرې کار کوي. د مټ، منګل او څنګل شريک نوم. دست، بازو، طاقت، قوت. استعداد، لياقت، قابليت. د نيم ګز مقدار، وار، خل.
**لاسکے** : د څۀ څيز د نيولو ځاے، موټے، لاستے، دسته، چومبے، چمبے.
**لاس ليک** : دستاويز. اقرارنامه، دستخط.
**لاسه نيوه** : بيعت، مريدي، د چا مريدي اختيارونه، لاس نيوے، فاتحه، د مړي دعا.
**لاش** : مړ وجود، مړ شوے بدن، نعش، ميت، مړے، مرده، لاښ.
**لاشعور** : پټ عقل، عقل مخفي.
**لاشۀ** : لياشه، لياشۀ، لشن، لشکه، لاشه، ليشه، لشه. د مچې، ډمبرې يا لړم وغيره هغه تيرۀ ازغے چې دشمن له پرې ټک ورکوي. د غنمو

اوربشو وغیره د وړي نرے ازغے. د کب په وجود کښې نرے تیرۀ هډوکے. بدخوئ، بدعادت.

**لاعلاج :** لادوا، هغه چې څۀ حل ئ نۀ وي. لاینحل.

**لاعلم :** هغه چې علم ورته نۀ وي. نۀ پوهیدونکے، ناخبر.

**لاعلمي :** ناواقفیت، بې خبري، ناپوهي.

**لاغر :** کمزورے، تپ، نرے نروچکے.

**لافاني :** هغه چې نۀ فنا کیږي.

**لاک :** له چینجو پیدا کیدونکې یو قسم سلیښنا که ماده چې عموماً د بنګړو جوړولو او مهرونو لګولو په کار راوستے شي.

**لاکړه کاکړه:** د ماشومانو یو مرض چې په وجود پکښې سرې سرې دانې راوخیژي.

**لال :** یو قسم قیمتي کاڼے، لعل. سور رنګے.

**لال :** پرتوغابش. هغه ځوک چې خبرې نۀ شي کولے، ګونګ، ګونګے. ترتہے، چاړا.

**لالا :** پلار، مشر ورور یا اوښي ته د خطاب کلمه. صاحب، معزز، جناب، ښاغلے، د هندوانو خطاب. بنیا، ساهو کار، خور، ګران، عزیز، سخر، خسر.

**لالچ :** حرص، طمع، لیوالتوب، رشوت.

**لاله :** یو سور رنګ ګل چې په منځ کښې ئ تور داغ وي.

**لام :** د فوځ یا پلټنې مجموعه. د جنګ په نیت د فوځ غونډه، د جنګ تیاري.

**لامبا :** لامبل، غسل کونه، په وجود اوبۀ تیرونه.

**لامبل :** لمبل، غسل کول، په تهول وجود اوبۀ تیرول.

**لامبو :** په ژورو اوبو کښې د ګرځیدو یا تیریدو فن،

**لامبوزن :** لامبو وهونکے،

هغه څوک چې لامبو ئ زده وي.

**لامس** : ګوتې وروړونکے، مس کونکے، په ګوتو وروړلو معلومونکے.

**لانجه** : مسئله، پېښه، جنجال، مصيبت، شخړه، ربړه، جګړه، پيچيده خبره، تاؤ راتاؤ خبره.

**لاندينے** : هغه چې لاندې وي، ښکتنے.

**لاندې** : کوز، ښکته، زير.

**لاندے بالدے** : ښکته والے پورته والے. تعلق، راشه درشه، واسطه، شخړه، ربړه، تنازعه، کمے زياتے.

**لاوارث** : هغه څوک چې وارث نهٔ لري.

**لاوڼ** : زيړې شوملې، انګولے، ترکاري، کړې، سالن، سالن، پخکړے.

**لا هم** : تر اوسه، لا پورې، نور پرې د پاسه.

**لاهو** : اوبو ډوب کړے غرق، اوبو وړے، ضائع، توئ.

**لائبريري** : کتب خانه، دارالمطالعه.

**لائسنس** : اجازت نامه.

**لائق** : مناسب، موزون، قابل، جائز، درست، سم، صحيح، اهل، جوګه.

**لايه** : تش، خالي، وزګار، هسې، ليه، خوشے، ايله.

**لب** : شونډه، ژى، غاړه، ډډه، طرف، اړخ، ساحل، د درياب غاړه، حاشيه، بلى.

**لباس** : جامې، کپړې، پوشاک، شکل، وضع، ډوله.

**لباسي** : رياکار، ټګژن، دوکه باز،

**لبريز** : ډک، تر خلې خلې ډک،

**لبلبو** : د ټيپرو د قسم يو بوټے چې چينې ترې ويستے شي، چقندر.

**لپه** : د څهٔ څيز د ناپ کولو يا راچولو دپاره راغونډ کړے شوې دواړه غبرګ چونګه.

د دواړو غبرګو چونګو مقدار.
**لتاړ** : چخنې شوې، پائمال، تس نس، اخته، نښتې، ککړ، تباه، برباد، وران ويجاړ.
**لت پت** : لتړ پتړ، لتهولې، چاړ کړې شوې، په هر اړخ کتلې، ګډوډ، دانه دانه، ليت پيت، لړلې، ککړ، خراب، په بد حال.
**لته** : زړې جامې، زوړ لباس، کيندړې.
**لتړ** : د ارتړ يا د ګانې يوه پرزه چې څرخ پرې چورلي. محور، د مارغانو يا ګيدړانو نيولو پړکه، دام.
**لتړ پتړ** : اړولې شوې رااړولې شوې. اړخ په اړخ کتلې شوې، لتهولې شوې. لت پت.
**لتهر پتهر** : الا بلا، بلا بتر، يو څۀ بل څۀ. مختلف څيزونه.
**لتهکه** : د مار يو قسم، دوه سرې، لنډی.
**لتهول** : معلومول، کتل، لتهون کول، د راپيدا کولو کوشش کول، تالاش کول.
**لتهون** : تلاش، ډډون، معلومونه، کتنه، لتهه، راپيدا کونه.
**لتهه** : د لتړ مؤنث، ناراسته، سسته، ناړامه.
**لتهيدل** : ناراستيدل، سستيدل، رابيداريدل، راپاڅيدل.
**لچر** : کمينه، رذيل، لوچه، کم اصل، بې شرم، بې حيا، لوچه، لچک، لنډور، سپين سترګې.
**لچک** : پوست والې، نرمې، د څۀ څيز په نزاکت سره حرکت کونه، د اجسامو د غځيدو، کږيدو، راغونډيدو او بيرته خپل حالت ته د تلو قوت. کږوالې، خم، کوږ والې.
**لحاظ** : نظر، مخ، خاطر، شرم، حيا، مروت، سړيتوب، خيال، پام، پرهيز، احتياط،

توجه، غيرت.
**لحاف** : لـه مـالوچو ډکـه برستن، نالى، نيالى.
**لحد** : قبر، مزار، گور، د قبر په منځ کښې هغه ژوره کنده چې مـړے پـکښې ايښودے شي.
**لحظه** : د وخـت معمولي حـصـه، ساعت، گړى، شيبه، دم.
**لغتے** : لښتے، پتهو ته د اوبو د تلو لار، وړه ترى وله.
**لد** : لـه پـړو نـه جوړ ځادر، چې د ځـاروي بـار يـا ځتـه پـکښې تـړلے شـي، ترنگن، کوړے، گړلسه، باز.
**لذات** : د لـذت جـمـع، خوندونه، مزې، ذائقې.
**لذائذ** : د لـذت جـمـع، خوندونه، مزې، ذائقې.
**لذت** : خوند، مزه، ذائقه.
**لذيذ** : خـونـده ور، مزيدار، خوش خوند.
**لر** : ښکتـه، لاندې، کوز، تيـټ. ارزان، کـم قيمتـه، سپک، د ادنى درجې، لاندې، پـاتـې. مغلوب، ماتې خوړلے، شکست خورده.
**لـرزان** : لـړزان، رچ، ريږديدنه، رپ رپے، لړځپ، لرزه، لرزش.
**لـرغـون** : وړانـدې، مخکښې، وړومبے.
**لـرغونے** : وړانـدينـے، مـخـکښينـے، زوړ، وړومبے. پخوانے.
**لرگے** : د ونـو يا بوټو کلکه حصه چې د سوځولو او تعمير د کـارونو دپاره استعماليږي. چوب.
**لرل** : سره کيدل، په قبضه کښې کيدل، سـاتـل، شتـهٔ کيدل، سره موجود کيدل.
**لروکے** : د لـور اسم تصغير وړوکے لور.
**لرې** : جـدا، بيـرتـه، په ډيره فـاصـلـه، بعيد. اخوا، ډډې ته، ورک، پناه.

**لړے** : د ځاروو معده.
**لړے سوړے** : د ځاروي معده او د ګیډې دننه نور مختلف قسمه اندامونه لړے، کولمې، پړپوس وغیره. لتړ پتړ. فضول او بیکاره څیزونه.
**لړ** : هغه تار چې ګریوان پرې راتړول وي. هار، امیل، لاړ، ول، ګونجه، سلسله، قطار.
**لړزیدل** : رپیدل، رچیدل، لرزیدل، ریږدیدل، وار خطا کیدل، ویریدل.
**لړل** : ګډول، ګډوډ کول، اړول رااړول، ګنده کول، په خټو یا بل څیز ناولے کول، شور پور کول، ککړول، په څۀ سازش کښې شریکول.
**لړمون** : لړمین. د ګیډې دننه حصه. لړمابن، باطن، دننه، زړۀ، روح.
**لړمه** : یو قسم سره دانه چې په وجود راخیژي.
**لړه** : خړه، ګوره وریځ، دوند، ګرد.
**لړه** : سلسله، قطار، لړ، لړۍ.
**لړه** : غرځیدلے، غرځولے شوے، پریوتے.
**لړۍ** : سلسله، قطار، لړ. امیل، هار، ضمن، باره، حقله.
**لږ** : پوتے، کم، معمولي، قلیل.
**لس** : د نهۀ او یوولس تر منځ عدد. عشره.
**لسان** : ژبه، وینا، بیان.
**لسانیات** : د ژبې د تاریخ علم، د ژبې د ابتدا ارتقا او د تشکیل د قانون علم.
**لستوڼے** : د قمیص، کوټ وغیره هغه حصه چې لاس پکښې پټ وي. د قمیص له لاس نه چاپیره حصه، آستین،
**لسګون** : د لسو روپو نوټ.
**لسي** : نرم شودۀ یا شوملې چې اوبۀ پکښې ګډې کړے شوې وي.
**لشکر** : لښکر، فوځ سپاه،

ګڼ خلق، ډیر خلق، د ډیرو خلقو ډله.
**لشمکه :** ورانه او چالاکه، نخره بازه، لک لکی، لشمکی، شوخه.
**لښتی :** د غوړونو یو کالے، والی.
**لښتے :** فصل یا پټو ته د اوبو د وروستو لار، لختے، وړه نری وله.
**لښکري :** د لښکر سره نسبت لرونکے.
**لطافت :** پوست والے، نرمي، نزاکت، ښائست.
**لطائف :** د لطیفه جمع.
**لطف :** عنایت، پیرزو، مهرباني. ښۀ والے، خوبي، پوست والے، نرمي، مزه، خوند، لذت.
**لطفاً :** په مهرباني، از راه کرم، په مهرباني سره.
**لطیف :** نرم، نازک، پوست، صفا، روڼ، پاک، پاکیزه، خوندناک، مزیدار.
**لطیفه :** ښۀ ځیز. د خندا خبره، دلچسپه خبره، شګوفه، نا اشنا، عجیبه.
**لعاب :** لاړې، توکانړې، په خلۀ کښې دننه موجوده نمي.
**لعنت :** ملامت کونه، رټنه، غندنه، بد وئینه.
**لعنتي :** هغه چې لعنت پرې ووئیلے شي. رټلے شوے، مردود، لعین.
**لغات :** د لغت جمع. الفاظ، ژبې، هغه کتاب چې پکښې د یوې ژبې الفاظ او د هغو معنې لیکلے شوې وي. فرهنګ، ډکشنري.
**لغت :** ژبه، لفظ، هغه کتاب چې پکښې الفاظ او د هغو معنې درج وي. فرهنګ، ډکشنري.
**لغته :** لته، لګته، ډته، په پښه ګوزار کونه، لګد.
**لغړ :** بربنډ، لوڅ. بې حیا، بې شرم. شاهین، لنډ وزرے.
**لغزش :** پښې خوئیدنه،

پـریوتو ته نزدي کیدنه، خطا، غلطي، ګمراهي.
**لغو** : پـوچ، بـې فـائدې، بې هوده.
**لغوي** : لـغت سره منسوب، لفظي، د لغت، د ژبې.
**لغويات** : فضول خبرې، بې هوده عمل او حرکتونه.
**لفافه** : پاسنے پوټ، خول، د کـاغذ غلاف چې خط پکښې بـنـدولے شي. ظاهري سامان، د ځـان ښودنې سامان. د مړي لـه وجـوده راتـاوونـکې سپینه کپړه.
**لـفظ** : کـلـمـه، لـه خـلـې راوتونکې خبره. ټکے، تورے.
**لفظا** : په لفظ سره، د لفظ په اعتبار سره.
**لفظي** : د لفظ سره منسوب. اصلي، حقیقي، نوعي.
**لفنګ** : لـوچـه، بدعملـه، لـوفـر، بـدمعاش، هغه څوک چې جیب ئ خالي وي.
**لقا** : دیـدن، مـلاقات، لیدنه. مخ، څهره، شکل.
**لقب** : د څهٔ خاص صفت په وجه ایښودلے شوے نوم.
**لقمه** : نـوړی، نمړی، نواله، قپ، ګپه.
**لک** : نیـغ، وچـت، ولاړ. سل زره، لاک، هغه دا غ چې د سوزیدو په وجه په بدن پاتې شي. وراني خبرې، بکواس، د سپـي غپـارے، بې وقوف، کم عـقـل. بـې هنره، زړې جامې، زوړ لباس.
**لک پتي** : د لـکـونو روپو خاوند.
**لکچر** : سبق، درس. وعظ، تقریر، زباني تقریر.
**لکچرار** : درس ورکونکے، مــدرس، سبق ښـودونـکے، واعظ، تقریر کونکے.
**لـکـړه** : نـرى وچـه ونـه، چوکـه، لنډۍ لښته، د جنډې ورډه ډنډه.
**لګشوه** : هـوسي، نرکشه، لکه ښویه.

**لکلمې** : د کناټو د منځ هډوکې، هغه هډوکې چې د مقعد دپاسه ختم شوې وي. لکموئې.

**لکنت** : ترټرې توب، په نښتې ژبه خبرې کونه،

**لکه** : غوندې، په شان.

**لکیدل** : وچتیدل، نیغیدل، ودریدل، ولاړیدل، نصب کیدل،

**لکۍ** : د څناورو د ډونګې دپاسه د بدن نه تیرې هغه وروستی حصه چې عام طور سره پرې څناور له ځانه مچان شړي. د مارغانو وروستی وړدې بڼې. وروستی حصه. انجام، پیچلک.

**لګام** : واګې، لغام، عنان،

**لګاؤ** : ګوزار، ضرب، ګیل.

**لګته** : لته، لغته.

**لګه** : د سیلاب لاره، خوړ، د سیلابي اوبو لاره.

**لګښت** : خرڅ، لګښت، مصرف، لګد.

**لګن** : تعلق، نسبت. شوق، مینه، عشق، محبت. ساعت، ګړی، وخت، وادهٔ، د وادهٔ نیټه ایښودنه. د وادهٔ تاریخ او وخت مقررونه. د نمر د حمل په برج کښې د تلو ساعت. د اورو اخښلو لوښې، ښانک.

**لګول** : نښلول، سره یو ځاې کول، سمول، ترتیب سره ایښودل، خرڅ کول، صرف کول، بلول، لمبه کول، مقررول، لګیا کول، اخته کول، حاملول، بلاربول، نصب کول، ورپورې کول، منسوب کول، تړل، په داؤ ایښودل، نال کول، کرل، ورپسې کول.

**لګیا** : اخته، اړم، مصروف، مشغول.

**لګیدل** : خپلو کښې سره جنګیدل. بلیدل، نښتل، ګولی خوړل، ګوزار خوړل، زخم خوړل، صرف کیدل، مقرریدل، فاعل کیدل،

اړامیدل، اثر انداز کیدل، موافقت پیدا کیدل، نصب کیدل، سمیدل، پسې کیدل، منسوب کیدل، تړلې کیدل، په داؤ ایښودلې کیدل، نال کیدل، کړلې کیدل، زرغونیدل، شین کیدل.

**لل :** هغه څوک چې خبرې نهٔ شي کولې، ګونګ، ګونګې.

**للمه :** باراني زمکه، هغه زمکه چې د باران په اوبو سیرابیږي. للمي.

**للمي :** د للمې فصل، باراني فصل، هغه څوک چې ګوزاره ئې د للمې په زمکه وي.

**للو :** یوه کلمه چې مور ئې بچي ته د ودهٔ کولو په غرض وائي.

**للو پتو :** خوشامنده، چاپلوسي. په مشکله ګوزاره کونه.

**للون :** فصل رېبنه، فصل لؤ کونه. لـه فصل نه وابنهٔ ویستنه، فصل رنګې کونه، صفا کونه. کوشش.

**لم :** د ګډ وروستی حصه، د ګډ پلنه لکی.

**لمبا :** غسل، ځان پاکونه، لامبا، په بدن اوبهٔ تیرونه.

**لمبر :** نمبر، درجه، منصب، مرتبه، عهده، وار، نوبت، پیره. شمار، شمیره، تعداد.

**لمبول :** غسل ورکول، پاکول، د بل په بدن اوبهٔ تیرول.

**لمبه :** د اور شغله، غرغنډه. تاؤ، ګرمي. یو قسم مرض چې پکښې د وجود د تاؤ په وجه په بدن سرې سرې دانې راخیژي.

**لمڅې :** د وړې تغر، قالین، بستره.

**لمحه :** لحظه، ساعت، لږ وخت.

**لمدول :** تر کول، لوندول، خوشتول.

**لمده بل** : لنده بل. نګلے، انبړولے، سالن، تر کاري، رطوبت، لوندوالے.

**لمړی** : د خوراک خلې ته اچونکے مقدار. نمړی، نواله، کپه، لقمه.

**لمس** : ګوتې وروړنه، څۀ څيز سره لاس لګونه.

**لمسول** : د بل خلاف راپارول، د بل خلاف بدی ته اماده کول، تحريک ور کول، لمسون کول.

**لمغړې** : منت زاري، فرياد، ژړا فرياد، واويلا، چغې سورې.

**لمليټ** : تاخير، ايسارتيا، ځنډ.

**لمن** : د قميص لاندينی ځوړندہ حصه. جولی، ځولی. د څۀ څيز غاړه يا ژی.

**لنډ** : د وږد متضاد، کوتاه، مختصر، نږدې، قريب.

**لنډپارے** : د تنګ زړۀ خاوند، تنګ زړے، زر غصه کيدونکے، د خودغرضی دوستي کونکے، خپل مطلب دپاره دوستي کونکے.

**لنډور** : لويه لنډه لرونکے لنډه ور.

**لنډيز** : خلاصه، اختصار.

**لنډی** : يو قسم مار، دوه سرې، لټکه، کورمار.

**لنډی** : د پښتو د اولسي شاعری يو صنف چې وړومبی مصرعه ئ لنډه وي. ټپه.

**لنډے** : کم قد لرونکے، پيشتکے. بونډے، لکی پريکړے.

**لنګ** : هغه کپړه چې د پرتوګ په ځاے له وجود نه تاوهلے شي، لنګوټ.

**لنګر** : د قافلې د ودريدو ځاے. د وسپنې زنځير يا رسی چې د کشتی د ودرولو په غرض په څۀ مضبوط څيز پورې ترلے شي. هغه ځاے چرته چې ملنګانو او فقيرانو

له خیرات ور کولے شي. هغه روټۍ چې په فقیرانو او مسکینانو خوړولے شي. د لویو خلقو باورچي خانه، د خیمې لویه رسۍ، د پهلوانانو لنګوټ، د ملا لاندینۍ حصه، کناټې، ډونګه. وزن، بوج،

**لنګرخانه** : د لنګر د تقسیمیدو ځاے، خیرات خانه.

**لنګرۍ** : د مسالې، چټنۍ، نسوارو وغیره د تکولو لوښے، چټو، بغرۍ، برغۍ.

**لنګوټ** : وړوکے لنګ چې ملنګان یا پهلوانان ئې اچوي، جانګے، کچے، لنګوټے.

**لنګوټے** : وګورئ لنګوټ.

**لنګه** : هغه ښځه یا ماده حیوان چې بچے ئې زیږولے وي، لنګرته. هغه ماده څاروے چې پئ پکښې وي.

**لنګیدل** : بچے راوړل، بچے زیږول، ډیریدل، له لږې سرمایې ډیره ګټه اخستل، خبره وړدیدل، زیاتیدل.

**لو** : فصل رینه، د فصل ریبلو کار، د انګور څانګه، ځیلی.

**لواحق** : د لاحق جمع، خپلوان، رشته دار.

**لواحقین** : د لواحق جمع، خپلوان، رشته دار.

**لواړ** : د هوار ضد. شډل، لوړ ژوړ، ستغ، سخت، غیر مهذب، بې ډبه.

**لوازم** : د لازم جمع، اسباب، سامان، ضرورتونه.

**لوازمات** : د لازم جمع، وګورئ لوازم.

**لوبان** : د یو قسم ونې خوشبودار چیز.

**لوبغاړے** : لوبه کونکے، په لوبه پوئ، ماهر، استاذ، په څۀ کار پوه.

**لوبول** : په لوبو کول، مشغولول، په چا په چل ول خپل کار کول، آله کار جوړول، پیسې په داؤ ایښودل، په پیسو جوارۍ

کول.

**لوبه** : تماشه، ننداره، مشغله، د شغل کار، سيل، اثر، د څۀ څيز له اثره پيدا شوې خبره يا کار.

**لوبه** : د پښتو اولسي شاعرۍ يو مشهور صنف، د اولسي سندرو يو قسم.

**لوپټه** : د زنانو د سر څپوټې.

**لوت** : ناراست، سست، لټ.

**لوټ** : کاغذي سکه، نوټ.

**لوټ** : تباهي، تالان، ظلم، غارت، ډاکه، تباه شوے، تالا، تاراج.

**لوټکے** : يو خاورين غونډے ژور لوښے چې د اوبو څښلو او د ارټ نه د اوبو راويستلو دپاره پکارولے شي.

**لوټل** : تباه کول، تالا کول، غارت کول، تاراج کول، په زور اخستل، په ظلم اخستل.

**لوټمار** : تباهي او تالان، ظلم، غارت، ډاکه.

**لوټه** : د کوزې په شان خو له کوزې نه لږ وړوکے د اوبو لوښے، ليټه.

**لوټه لوټه** : دانه دانه، غونډارې غونډارې، بيل بيل.

**لوټيدل** : تباه کيدل، تالا کيدل، په زور اخستلے کيدل،

**لوچ** : کم اصل، کمينه، لچر، لوفر، فضول، بداخلاقه، لوچک،

**لوڅ** : بيخي لغړ، بربنډ،

**لوڅ لغړ** : لوچ لغړ، بربنډ لغړ، بيخي بربنډ.

**لوح** : د ليکلو تختې، د قبر د سر کاڼے، شناخته، سر ورق، د کتاب پاسنے مخ.

**لوخړه** : لوخزه، ډير لوګے، ډوزه، تباه، برباد، تالا.

**لوخه** : د ميزرې په شان يو قسم واښۀ چې هم د ميزرې کار ترې اخستے شي.

**لوډ** : وزن، بوج، بار.

**لور** : د فصل يا وښو ريبلو يوه آله. طرف، اړخ، ډډه،

خوا، لورے. ښه سلوک، رواداري، مهرباني.

**لور :** د ځوي ضد، زنانه اولاد،

**لوړ :** وریغ، وچت، دنګ، بلند.

**لوړ :** کوتک، پیره ډنډه، ډانګ، ډانګے.

**لوړول :** وچتول، جګول، قد زیاتول، ترقي ورکول، عزت ورکول، درناوے ورکول، درنول.

**لوړه :** وچت ځاے، ډبه، بلند ځاے، لوړوالے، بلندي.

**لوړه ژوره :** د لوړ ژور مؤنث. د ژوند تاوده ساړه، خواږهٔ تراخهٔ.

**لوړیدل :** وچتیدل، جګیدل، دنګیدل، قد زیاتیدل، ترقي کول، مخکښې کیدل، عزت کیدل، درناوے کیدل.

**لوږه :** د خوراک خواهش، ولوږه، اشتها، نهره.

**لوست :** یو لیکلے یا چاپ شوے شے ولاړونه، پاڅونه، مطالعه، لست.

**لوستل :** ګرځول، مطالعه کول، لستل، لست کول،

**لوشل :** د ماده څاروي نه پئ راویستل، لوغل، لویشل.

**لوښتل :** له بیخه ویستل، نړول. منډه کول.

**لوښے :** هغه څیز چې بل څیز پکښې اچولے یا سمبالولے شي. ظرف. اصل، فطرت.

**لوظ :** قول، اقرار، ژبه، وعده.

**لوظنامه :** هغه لیک چې پکښې د څهٔ خبرې یا کار اقرار یا ژبه وکړے شي. اقرار نامه.

**لوغړن :** په لوګو تور شوے، نیم سوزیدلے، بدنصیب، کم بخت، سیاه بخت.

**لوکاټ :** یو قسم زیړ رنګ لرونکې میوه.

**لوکوټې :** لږ شان، لکوټې.

**لوکې خانه :** د لوګې د وتو

لار، موری، روزن.
**لوګے** : د سوزیدو له عمل نه پیدا کیدونکې هغه کثیف بخارات چې په بره خیژي، لوخړه، دوند، دود.
**لولپه** : ډیر زیات سوزیدلے، ستې پتې، د لیونتوب تر حده د څۀ څیز مشتاق.
**لولور** : فصل ریبنه، لو کونه، کار، مشقت، محنت، خواري. تباه، تالا، برباد.
**لولول** : درس ورکول، په بل لوست کول، لوستل، لوست ورزده کول.
**لولۍ** : ډمه، فاحشه، بدکاره ښځه.
**لومبړ** : د ګیدړ په شکل د یوۀ مکار ځنګلي ځناور نامه. لوړ کم عقل سړے.
**لوند** : تر، خوشت، نمژن، نمناک.
**لوند خوشت** : بیخې لوند، ډیر نم لرونکے، تهول لوند.
**لوندول** : لمدول، تر کول، خوشتول، خشتول.
**لوندیدل** : لمدیدل، تر کیدل، خوشتیدل.
**لونړ** : ناوادۀ کړے، هغه خلمے چې لا ئ وادۀ نۀ وي کړے.
**لونګین** : د لونګو امیل. یو قسم پسول چې په غاړه کښې اچولے شي.
**لوهار** : د وسپنې څیزونه جوړونکے، اینګر، پښ.
**لوئ** : وړد، پیړ، مشر، ارت، لوړ، دنګ، وچت، عظیم، عزتمند، بزرګ.
**لوئیدل** : غټیدل، وړدیدل، پیړیدل، لوړیدل، وچتیدل، جګیدل، ارتیدل، خوریدل، زیاتیدل، عظمت موندل، عزتمند کیدل، بزرګیدل.
**لویدل** : غرځیدل، پریوتل، کمیدل، لړیدل.
**لویړند** : تیار خور، مفت خور.

**لویشت** : د لاس پـه بیخي خوارهٔ حالـت کښې د کتې ګوتې له سره د قچې ګوتې تر سره فاصله. لیشت.

**لهٔ** : دا حـرف همیشه د "نه" معنيٰ ور کوي لکه له بازاره، د بازار نه.

**لهجه** : د الفاظو اواز، تلفظ، د وینا طرز، د خبرو انداز.

**لهٰذا** : دې د پـاره، ځکـه، پس، ترو.

**لهر** : د اوبو خوځیدنه، چپه. شـوق، ولـولــه، وهم، خیـال، وجد، جنون، لیونتوب، دوره، د بیـمـارۍ جـوش، سـوزے، تـاؤ، خــواهـــش، د جـمـاع جــوش، کـوروالـي تـــه زړهٔ کیدنه.

**لهه** : هغه صفا نرمه ختهٔ چې د سیـلاب بهیـدو نـه پـس پـه سیـلاب بهیـدلـي ځـاے پـاتې شي.

**لیاقت** : قابلیت، تکړه والے، استـعـداد، خـوبي، جوهر، ښهٔ والے.

**لیت** : هـغه غوړ لرګـے چې د رنـا پــه غــرض بلولے شــي، لیتکے، شونتې.

**لیتکے** : وګورئ لیت.

**لیچنه** : هغه ستر ګه چې لیچ کوي.

**لیدل** : کتـل، ملاحظه کول، مـلاقــات کـول، غـور کول، خیـال کـول، زغـمل، تیرول، برداشت کول.

**لیدر** : مشر، رهنما، قائد.

**لیک** : تــحــریـر، خــط. د لیکلو انداز، طریقه.

**لیک دود** : د لیک انداز، طریقه، رسم الخط.

**لیک لست** : لیکنه لوستنه، د لیـکـلو او لوستلو کار، تعلیم، لیک لوست.

**لیکوال** : لیـکـونکے، اهل قلم، محرر.

**لیــکــونکے** : وګـورئ لیکوال،

**لیکه** : کـرښـه، نښه، نشان،

سرک، لار، روټ، په پټي کښې د تخم اچولو په غرض ایستلې شوې کیل. رسم، رواج.
**لینده :** له لرګي او ربړ نه جوړه یوه آله چې د غشي یا کاڼي په ذریعه پرې ویشتل کولې شي.
**لیندې وال :** لیندی لرونکې ټوپک.
**لینګاړې :** د زنګنو پرتوګ، هغه پرتوګ چې زنګني ورته اچولې شوې وي.
**لینګته :** په کشتي کښې د پښې اچولو داؤ. لنګتی.
**لیه :** وزګار، فارغ، بیکاره، فضول.
**لیبر :** محنت، مشقت، کوشش، مزدوري، کار، کسب، مزدور، کسبګر، مشقتي.
**لیت پیت :** لړلې، ککړ، الوده.
**لیترین :** د اودس ماتې ځاې، تښتې.
**لیچه :** لیچ، لاس، مړوند، لیچی.
**لیچي :** یو قسم میوه چې ازغن پوستکې او خوږ خوند لري.
**لیړ :** قطار، سلسله، لین.
**لیړل :** استول، ور روانول، لیږدول.
**لیشتینک :** مندرې، د قد په لحاظ سره کم، کم قامتې، چیتکې، ټیټکې.
**لیکن :** خو، مګر.
**لیکن :** د ګیډې درد،
**لیلام :** نیلام، د بولی په ذریعه څۀ څیز خرڅونه.
**لیلة القدر :** شبقدر، شوقدر، د قدر شپه، بزرګه شپه،
**لیلیٰ :** توره، سکنه، شب رنګه. د مجنون (قیس) معشوقه، د مجنون د محبوبې نامه.
**لیمن :** لیمو، نیمبو، د نارنج

د قسم يوه ترشه ميوه.
**لينګور :** غټ غټ لينګي لرونکې بنيادم. لويې لويې پنډۍ لرونکې بنيادم.
**لين دين :** ورکړه راکړه، روزګار، تعلق، لين دين.
**ليو :** نښتې، چمبړ. د نښلولو کار، اخيړ.
**ليوال :** ارزومند، مشتاق، عاشق، مئين.
**ليور :** د خاوند ورور.
**ليورځۍ :** د ليور لور، د خاوند د ورور لور.
**ليورځې :** د ليور ځوے، د خاوند د ورور ځوے.
**ليوړۍ :** له خوږو او کونځلو نه جوړ يو قسم د خوراک خوږې دانې، ريوړۍ.
**ليول :** هوارے، هوارولے، د هوارې معلومولو آله.
**ليونتوب :** د ليونې کيدو حالت، ليونتيا، جنون، ديوانه توب.
**ليونتارے :** وګورئ ليون باګړے.
**ليونے :** په ښهٔ بد نهٔ پوهيدونکے، پاګل، ديوانه.
**ليونے سپيلنے :** بيخي پاګل، بالکل ليونے، سخت عاشق، وريت پريت، ډير زيات ليوال.
**ليوول :** ديوال کوټې وغيره له هواره ختمه ورکول، اخيړول، د نرم ليټې ځيز ته ورکول، نښلول، ورپورې کول، ليوه ول،
**ليوهٔ :** يو خطرناک ځنګلي ځناور، شرمښ، ګرګ، خطرناک، هوسناک سړے، ظالم سړے.
**ليويدل :** په ځهٔ ځيز باندې د نرم ليټې ځيز ختل، اخيړيدل، نښتل، ورپورې کلک لګيدل.
**لے په لے :** در په در، لور په لور، هره خوا، سرګردان، پريشان، په بده ورځ.

**م** : (میم) د پښتو حروف تهجي پنځهٔ دیرشم حرف چې د ابجدو په حساب ئ شمار څلویښت (۴۰) دے.
**ما** : ضمیر مفرد متکلم.
**مابین** : تر منځه، په منځ کښې، دوران.
**مات** : د روغ ضد، نیم، چاودے، ټو کړې.
**ماتحت** : د لاس لاندې، د حکم تابع، نائب.
**مات ګوډ** : ټوټې ټوټې.
**ماتم** : مصیبت، غم، آفت، ویر، واویلا.
**ماتول** : نیمول، ډکړې کول، ټو کړې کول، خوړل (د ځنګلي ځنارو)
**ماته** : د مات مؤنث. پستنه، ماتې. کنده کړے، مات کړے. ما سره، زما دپاره، راته. په پخکړې یا شوروا کښې ماته روټی.
**ماته ګوډه** : سود سودا، اخوا دیخوا کار، ټک ټوک کار.
**ماتې** : روانې، مخه کونه. شکست، تیښته.
**ماتیدل** : نیمیدل، ټو کړې کیدل، ډکړې کیدل، خوړلے کیدل (د ځنګلي ځنارو)
**ماټوس** : رسولی. غټه دانه.
**ماجب** : تنخواه، وظیفه، اجرت، هغه رقم چې د حکومت له خوا قبائلو ته ورکولے شي.
**ماجد** : عزتمند، بزرګ.
**ماجرا** : قصه، واقعه، حالت.
**ماچس** : د اور بلولو تیلے.
**ماحول** : چاپیرچل، ګیر چاپیره علاقه.
**ماخذ** : هغه ځاے چې څهٔ څیز ترې وتلے وي، بنیاد، منبع.
**ماخوذ** : اخذ کړے شوے، راخستے شوے، ګیر، ګرفتار.
**ماده** : هغه څیز چې په حواس خمسه معلومیدے

شـي. د آئيـن يا قانون **دفعه**. د جنس مؤ نث، ښځه، مادينه.
**مادي** : اصلي، ذاتي، قدرتي. مـادې سره متعلق. ماديت سره متعلق.
**ماډل** : نمونه، نقشه، پيمانه، قالب، طور طريقه.
**مار** : منګور، منګرے. د اوښ مهار، ميور.
**مار** : لاحقـه چې د اسم نه فـاعل جـوړوي لکه ختمار، لوټ مار وغيره.
**مـارجړی** : تـرياق، د يو بوټي نوم.
**مارچ** : د عيسوي کال دريمه مياشت.
**مـارچه** : د مـال پـه مـقـابله کښې د مال سودا.
**مارخور** : غـرځـه. غرځنے چيلے، د هوسی يو قسم.
**مـارغان** : د مـارغـهٔ جمع. پرنده ګان.
**مـارکونډی** : مـالکونډی، يـو بـوټـے چـې پـلي ئ ازغن وي.
**مـارکه** : نښـانـه، علامت، نښه. د شيعه ګانو امام باړه.
**مارکيټ** : بازار، منډهی.
**مـارل** : مـقـررول، پـه کـار لګول، ميرل.
**مارموچی** : هغه موچی يا مـچـی چـې لشـه ئ نـهٔ وي، ماکو، ماهو.
**مـاره** : غـنيـمـت، لـوټـمـار، ښکار.
**ماره داړه** : شـوکـه ډاکـه، لوټمار، لوټنه، وهنه.
**مارهٔ** : د مـورِ جـمـع، دولت مند،
**مـازيـګر** : د مـاسپښين او مـاښـام تـرمـنـځه وخت، نماز ديګر، نمازيګر،
**مـاسپښين** : د غـرمې او مـازيـګـر ترمنځه وخت، نماز پشين. نماسپښين.
**ماسټر** : استـاذ، اصل معني مالک.
**مـاسـختن** : نـمـازسختن،

ماسخوتن، د ماښام نه پس وخت.
**ماسوا** : علاوه د دې نه، د دې نه بغیر، د دې نه علاوه.
**ماسه** : د تولې دولسمه حصه، د اتو رتو وزن.
**ماسي** : د مور خور، ترور.
**ماشاء الله** : کۀ خداے وغوښتۀ.
**ماشوړه** : د تار نه جوړه ګولۍ. چې سمېږي نه، پیچیده، نۀ حل کیدونکې، ګران کار، مسئله.
**ماشوم** : وړوکے، ورکوټے، کوچنے، معصوم هلک.
**ماشه** : د اتو رتو وزن، د تولې دولسمه حصه. د ټوپک هغه ځاے چې د ډز کولو په وخت پرې ګوته راښکے شي.
**ماشے** : د ملیریا خورونکے مخلوق، میاسے، ماګے.
**ماښام** : د مازیګر او ماسخوتن تر منځه وخت، ماشام، نماښام. هغه خیرات چې مړي پسې کولے شي.
**ماښامے** : د ماښام اسم تصغیر.
**ماضي** : د ګرامر په اصطلاح کښې هغه زمانه چې تیره شوې وي. تیر وخت.
**ماغزۀ** : مازغۀ، مغز، دماغ. زړي.
**مافوق** : چې څۀ بره وي. چې څۀ طاقت لري، اعلیٰ، وچت.
**ماکو** : د جولاګانو یوه آله. وړه کشتۍ. د سرې مچې هغه قسم چې لشه نۀ لري. ټاکر.
**مال** : دولت، پیسې ټکې، روپۍ، جائداد، غوا میښې، چارپایه، ډنګر. بلد، روږدے، پیمخې جینۍ یا ښځه. پیمخے هلک (طنزاً)
**مال** : عادت شوے، اموخته. ماده خناور چې تیره شوې وي.

**مال** : مهال، وخت.
**مال اسباب** : د کور قیمتي سامان، تمامي دولت، نغد دولت، مال حال، پنګه، سازوسامان.
**مالا مال** : معمور، ډک، بنهٔ په مال او دولت پوره.
**مالت** : محلت، چم، چم ګاونډ، کور کوڅه.
**مالتا** : یوه رس لرونکي خوږه میوه چې د نارنج له خاندانه وي او د هغې ونه.
**مال حال** : سازوسامان، مال دولت، مال اسباب.
**مالخانه** : د مال ایښودلو ځای، ذخیره.
**مالدار** : د مال خاوند، دولتمند، شته من.
**مالداري** : دولت، ثروت، دولت لرنه، د شارو لرنه.
**مال دولت** : سرمایه، شتهٔ، دولت.
**مالش** : مښل، مږل.
**مالک** : خدای، الله تعالیٰ، خاوند، آقا، څښتن، صیب.
**مالکانه** : د مالک په طور، د زمیداری حق.
**مالکین** : مارکین، دیسي لټه، د یوې کپړې نوم، سپین شان ټوکړ.
**مالګه** : له درنګه حاصل شوے یا په کیمیائي طریقه جوړ شوے یو مرکب چې خوراک کښې استعمالیږي. سوډیم کلورائیډ. رونق، مزه، حسن.
**مالګین** : د مالګې په شان خوند لرونکے. سکاڼ، د مالګې درنګ.
**مالنه** : د مالي مؤنث، د باغ حفاظت کونکې، مالیاره، باغوانه.
**مالوچ** : هغه مالوچ چې پوندانه ترې وښکلے شوے وي.
**مال و منال** : مال و دولت، مال جائداد.
**ماله** : د لرګي مخصوصه

تخته چې زمیدار ی د پټي د لوټو میده کولو او هوارولو دپاره پکاروي.
**مالي** : مالیار، ملیار، باغوان، باغبان.
**مالي** : مال سره منسوب، مال ته منسوب.
**مالیار** : باغوان، باغبان، مالي.
**مالیه** : کسوټ. د محکمه مال ټیکس، د زمکو په حاصلاتو د حکومت له خوا محصول.
**ماما** : د مور ورور، مشر سړي ته د نوم په ځاے وئیلے شي.
**مامور** : ملازم، په څۀ عهده لګولے شوے، ذمه دار کړے شوے.
**ماموریت** : د مامور عهده. د مامور دفتر.
**مامورین** : مقرر شوي، ماموران، ملازمان.
**مامي** : د ماما ښځه، د ماما مؤنث.
**مانج** : پاکیزه، وینځلے شوے، کنګال شوے، سوتره شوے، یو غاښور چې زمیدار پرې زمکه مانج کوي.
**مانجه** : آریومے. ښنجغ. جندرا. هغه مخصوص تار چې بادیوې پرې خیژولے شي.
**مانجي** : د جینی د طرف نه خلقو ته د وادۀ دعوت، بلنه، د جینی د وادۀ دپاره رابللې شوې خلق. د جنجي ضد.
**مانځۀ** : د مونځ هغه حالت چې حرف عامل پرې استعمال شوے وي.
**ماندینه** : بي بي، میرمن، ارتینه، زنانه، مادینه، ښځه، تبر.
**مانع** : بندونکے، منع کونکے، ایسارونکے، د الله تعالیٰ یو صفتي نوم.
**مانند** : په شان، په رنګ، مطابق، مثال.

**مانوس** : اموخته، مطمئن، بلد، عادت.
**مانه** : ګله، شکوه، شکايت.
**مانګے** : کشتى چلونکے، ملاح، ماښوګړے، ماښو، ناخدا.
**مانه** : مانړے، شکوه، ګيله.
**مانۍ** : قصر، محل، مورچه.
**مانړے** : ګيله، شکوه، شکايت، خفګان.
**ماوت** : مهاوت، د هاتي نګران، هاتي وان، فيلبان. هغه سړے چې خلاصے ترې نۀ وي.
**ماه** : مياشت، سپوږمى، محبوبه.
**ماهانه** : هغه څۀ چې مياشت پس ورکولے شي.
**ماهتاب** : مهتاب، سپوږمى.
**ماه جبين** : د سپوږمى په شان حسن لرونکے، معشوق.
**ماهر** : مهارت لرونکے، د يو فن استاذ.
**ماهنامه** : هغه رساله چې مياشت په مياشت چاپ کيږي.
**ماهواري** : د مياشتې، په هره مياشت. د بالغې ښځې د مياشتې مخصوصه نښه، حيض، جامې، نمري.
**ماهيت** : اصل، جوهر، مغز، اصليت، حقيقت.
**ماهي ګير** : مچې مار، کب نيونکے، مهيان نيونکے،
**مائع** : بهيدونکے څيز، نرم څيز.
**مائل** : متوجه، راغب، عاشق.
**ماينه** : ماندينه، ښځه، ټبر، ارتينه، ميرمن.
**مايوس** : نااميد، ناکام، زړۀ ماتے، ارماني.
**مايه** : جوهر، اصل، سرمايه، پانګه، مال دولت. هغه شودۀ چې تراوۀ کړے شي. تومنه.
**مباح** : جائز، روا، حلال، درست، پاک، هغه کار چې کولو کښې ئې ګناه نۀ وي.
**مباحث** : بحثونه.

**مباحثه** : مناظره، تکرار، سوال جواب، یو بل سره بحث کونه،
**مبادي** : شروع، آغاز، ابتدا.
**مبادیات** : د مبادي جمع، اغازونه، ابتدائي اصول.
**مبارزه** : جنګ، جګړه.
**مبارک** : د برکت نه ډک، د تبرک واله، نیک، پاک.
**مبارکي** : د خیر دعا، نیکي.
**مباشرت** : د ښځې خاوند هم بستري، کور والی، جماع، مجامعت.
**مبالغه** : د ورې خبرې نه لویه خبره جوړونه. د حد نه زیات یا بد بیانونه، دروغ
**مبتدا** : اغاز، شروع، ابتدا. د ګرامر په اصطلاح کښې د جمله اسمیه هغه توکره چې د مسند الیه په طور راغلې وي.
**مبتدي** : ابتدا کونکی، شروع کونکی.
**مبتکر** : نوی ځیز راورونکی.
**مبتلا** : په ابتلا کښې ګیر، ګرفتار، ګیر، نښتی، بندیوان، لګیا.
**مبدا** : د شروع کیدو ځای، ابتدا، شروع، اغاز، بنیاد، جرړه، اصل، چشمه.
**مبرا** : ازاد، بري، پاک، سپیځلی، بې عیبه.
**مبشر** : بشارت یا خوشخبري ورکونکی، زیری کونکی.
**مبصر** : بل پوهونکی، کره کوتـه معلومونکی یا پرې پوهیدونکی. لیدونکی.
**مبعوث** : لیږلی شوی، استولی شوی، پیدا کړی شوی
**مبلغ** : تبلیغ کونکی، رسونکی
**مبلغ** : رقم، مقدار، د مال اندازه، تول، کل، جمع.
**مبني** : اینښوی شوی، د بنیاد اینښودو ځای.
**مبهم** : داسې خبره چې

مطلب ئې واضحه نهٔ وي، مشکوک، شکي.

**مبين** : ظاهر، ښکاره، څرګند.

**متابعت** : پيروي، اطاعت.

**متاثر** : چې اثر ئې قبول کړے وي.

**متاسفانه** : د افسوس سره.

**متاع** : مال و دولت، مال اسباب، پنګه، سرمايه،

**متبادل** : بدليدونکے، د يو په بدل کښې بل،

**متبادله** : هغه چې بدل شوے وي. په جيوميټري کښې چې کله دوه متوازي خطونه بل دريم خط نيم کړي نو دغسې دواړه اړخ ته زاويې متبادله وي.

**متبحر** : ډير لوے عالم، علامه، چې ډير علم ئې حاصل کړے وي.

**متبدل** : بدل شوے، بدل.

**متبرک** : د برکت واله، برکتي، پاک، مقدس.

**متبنيٰ** : ديني خوے، بالګے، نوملے خوے، چې په خلهٔ ورته خوے وئيلے شوے وي.

**متجسس** : جاسوس، لټونکے، پلټونکے.

**متحد** : اتحاد ساتونکے، متفق.

**متحرک** : حرکت کونکے، فعال، روان.

**متحمل** : برداشت کونکے، ورونکے، مستقل مزاجه، د لوي زړهٔ خاوند، صابر.

**متحير** : حيران، تعجب کونکے، په حيرت کښې، هک پک.

**متذکره** : بيان کړے شوے، ياد کړے شوے.

**مترادف** : هم معني، داسې دوه لفظونه چې معنيٰ ئې يو رنګ وي.

**متراوڼ** : هغه هلک چې په خوب کښې متيازې کوي.

**مترجم** : ترجمه کونکے،

**متردد** : په تردد کښې،

فکر من، ناقلاره.

**مترډ** : د متیازو داغ، د متیازو گنده شوے.

**مترقي** : ترقي کونکے، پرمختگ کونکے.

**متروک** : ترک کړے شوے، ختم کړے شوے، پریښودے شوے.

**متروکه** : وړه کروړه چې د اس وغیره د څغلولو دپاره پکارولے شي. چابک.

**متزلزل** : خوځیدونکے، رپیدونکے، ریږیدونکے،

**متشابه** : په یو شکل، سره ورته، په یو شان.

**متشابهات** : د قرآني ایتونو قسم، د محکمات ضد، د متشابه جمع.

**متشرع** : په شریعت برابر، د شریعت پابند.

**متصادم** : جنگیدونکے، ډغره وهونکے.

**متضاد** : برخلاف، اپوټه، ضد، منافي.

**متعارف** : یو بل پیژندونکے، سره واقف، مشهور، معروف

**متعدد** : ډیر، گڼ، بې شماره، د یو نه زیات.

**متعدي** : د یو نه، بل ته لگیدونکے مرض، حد نه زیاتیدونکے، هغه فعل چې مفعول غواړي.

**متعصب** : بغضي، کینه ور، تعصب کونکے.

**متعلق** : تعلق لرونکے، علاقه لرونکے.

**متعلقات** : د متعلق جمع. هغه څیزونه چې نورو څیزونو سره تعلق لري.

**متعلم** : طالب علم، شاگرد، علم حاصلونکے.

**متعه** : په شیعه مذهب کښې ښځه د څه مودې دپاره په نکاح کښې ساتل

**متعین** : مقرر کړے شوے، تعین کړے شوے

**متغیر** : بدل شوے، تقسیم شوے، بې ثباته، پریشانه.

**متفرق** : جدا جدا، بیل بیل، مختلف.
**متفق** : اتفاق کونکے، ګډون کونکے، شامل، ګډ.
**متفکر** : فکر کونکے، فکر مند.
**متقابل** : یو بل سره مقابله کونکے، مخالف.
**متقي** : پرهیزګار، نیک، پارسا.
**متکبر** : تکبر کونکے، کبر کونکے، کبرژن، د الله تعالې یو صفتي نوم.
**متکلم** : خبرې کونکے.
**متکلمین** : د متکلم جمع. د علم کلام د ماهرینو یوه ډله چې دیني خبرې په عقل ثابتوي.
**متل** : یوه وړه جمله چې د یوې ژبې د ویونکو اکثریت ئ د هوښیارتیا د تو کرې په حیثیت قبلوي. مثال، ضرب المثل.
**متلاشي** : تلاش کونکے، لټون کونکے.
**متمدن** : مهذب، تمدن لرونکے،
**متمني** : امید لرونکے، طمع دار.
**متن** : د کتاب عبارت، د کتاب د منځ اصل عبارت.
**متنازعه** : هغه څیز چې په باره کښې ئ تنازعه وي.
**متناقض** : یو بل سره اختلاف لرونکي، مخالف، د یو بل ضد.
**متنفر** : نفرت کونکے، زړۀ بدے.
**متنوع** : رنګارنګ.
**متواتر** : په یو مخ، پرله پسې. سلسله وار.
**متوازن** : پوره په پوره، برابر.
**متوازي** : په یو فاصله، یو بل سره په برابرد فاصله کښې راتلونکي. هغه خطونه چې بالکل سیده یو بل ته مخامخ په یوه فاصله وي او هیچرې

يو بل سره نهٔ لګي.

**متواضع** : عاجزي کونکے، خاکساري کونکے، تواضع کونکے.

**متوجه** : توجه کونکے، فهم ګرځونکے، مخاطب، خیال کونکے.

**متوسط** : د منځ، د اوسطې درجې، مینځنے.

**متوطن** : وسیدونکے. د وطن اصلي وسیدونکے.

**متوفیٰ** : وفات شوے، مړ شوے.

**متوفي** : وفات کونکے، مړ کونکے.

**متوقع** : توقع لرونکے، امیدوار.

**متیازې** : وارهٔ بول، نطفه.

**متین** : مضبوط، محکم، کلک، ټینګ، پائیدار. د الله تعالي يو صفتي نوم.

**مټ** : د اوږې نه تر څنګلې پورې د لاس برخه. کوشش، هاند، قوت، عزم.

**مټ** : چاټې، خوم، منګے. هغه نرمه او پسته خټه چې د سیلاب غورځیدو نه پس په زمکه پاتې شي. متینه خټه، ریګ خاوره، لهه، لخه.

**متهاک** : کلک غوز چې نهٔ ماتیږي او چکې پکښې نه وي. د چغزي ضد.

**متهاکه** : د ماشې یا وررېږ د چک نښه، ګرمکه، دانه،

**متهائي** : خوږ ځیز، شیریني، مختلف قسمه خوارهٔ چې د حلوایانو په دو کانونو کښې خرڅولے شي.

**متهر** : يو قسم سبزي چې په پلو کښې ئې دانې وي اوم او پوخ دواړو حالتو کښې خوړلے شي.

**مُتهک** : موتهک، موتهے، جلق، د لاس په ذریعه مني خارجونه.

**متهکر** : له وخته مخکښې پوډ شوے، پخمے، پخنونے

**متهکرې** : د خوارو هغه ننې

چې په چیچلو کښې سختې وي.

**متونکے** : د متیزې ځوے، ولد الزنا، حرامي، متنگے.

**مته** : کاهل، بیکاره، ورو.

**مته** : مټ، زور، طاقت، خوم، سوړ.

**مته** : نرمه او صفا خاوره، سلیښنا که خاوره، نرمه خته، د کوټې ستن، د ونې تنه. ارام، بورجی. د کنډلو ستن.

**متیزه** : هغه ښځه یا جینۍ چې د رشته دارو نه په پټه له پردي سړي یا هلک سره له کوره وتښتي.

**متینه** : نرمه صفا او خړبه خاوره، مته خاوره.

**متې** : د کني بندونه چې پکښې ستر گه یا توک راخیژي.

**مثال** : تصویر، صورت، نمونه، په رنگ، په شان.

**مثانه** : د متیازو پوکۍ، د ورو بولو خوپۍ.

**مثبت** : ثابتونکے، تصدیق کونکے. د منفي ضد. د گرامر، ریاضۍ، بجلۍ او نور علمونو یوه اصطلاح.

**مثقال** : څلور نیمې ماشې، د وزن یو مقدار. معمولي څیز، لږ وزن. لږ شے.

**مثل** : متل، قول، حکایت.

**مثلا** : د مثال په طور، لکه چې.

**مثلث** : درې گوټیز، د نظم هغه قسم چې درې مصرعې لري.

**مُثله** : د مړې غوږونه پوزه او نور اندامونه پریکونه.

**مثمن** : اتهٔ گوټیز، اتهٔ اړخیز، د عروضو په اصطلاح کښې هغه وزن چې اتهٔ رکنونه ئې وي، هغه نظم چې په بند کښې ئې اتهٔ اتهٔ مصرعې وي.

**مثنوي** : هغه مسلسل نظم چې د هر شعر مصرعې ئې ځان له قافیه لري.

**مجادله** : جنگ جگړه،

جنګ، بحث، هنګامه.
**مجاز** : اجازت ورکړے شوے، مختار. د حقیقت ضد.
**مجازاً** : د فرضي په طور، فرض ئ کړه.
**مجازي** : غیر حقیقي، فرضي، نقلي، غیر اصلي، مصنوعي.
**مجال** : قدرت، طاقت، دخل. د چکر ورکولو ځاے، فرصت، وخت.
**مجامعت** : کوروالے، مباشرت، هم بستري.
**مجاور** : منجور، منجاور، د یو زیارت یا دلبار ځاے جارو کونکے، ګاونډي، نزدې وسیدونکے.
**مجاهد** : کافر سره جهاد کونکے.
**مجاهده** : نفس سره جهاد، محنت، ریاضت.
**مجاهدین** : د مجاهد جمع.
**مجبور** : بیوسه، غریب، مظلوم، درمانده.
**مجبوراً** : له بې اختیارۍ نه، د ناچارۍ نه.
**مجبوري** : بې وسي، غریبي، ناچاري، جبر.
**مجتهد** : اجتهاد کونکے، کوشش کونکے. دیني مشر. د شیعه ګانو په اصطلاح کښې هغه فقیه چې پکښې د قرآن سنت اجماع او عقل په رڼا کښې د استدلال کولو قوت وي.
**مجدد** : نوے کونکے، تجدید کونکے، د صدی په سر کښې پیدا کیدونکے د مسلمانانو لوے عالم.
**مجذوب** : د جذبې په حالت کښې، بیخوده، مست، بې هوشه.
**مجرا** : د ډمانو د ګډا او سندرو محفل. تسلیمات، آداب. موجره، حساب شوے، کټ شوے.
**مجرب** : ازمائیلے شوے، تجربه شوے، مؤثر.

**مجرد** : يواځې، ځان له، يوه وزړې ناوادۀ کړې، لوڼډ سړې، مستند. له مادې نه پاک، غير مادي، تصوراتي.

**مجرم** : ګناهګار، قصور وار، ګرم، خطاوار.

**مجروح** : زخمي، ژوبل، پرهرژلې.

**مجسم** : بدن لرونکې، جسم لرونکې، ټول، پلن.

**مجسمه** : بُت.

**مجلد** : جلد شوې، هغه کتاب چې جلد ورته لګيدلې وي.

**مجلس** : د کښيناستو ځاې، محفل، صحبت، خبرې اترې، ګپ شپ، ټنګ ټکور.

**مجلسي** : په مجلس کښې شريک. سندرغاړې.

**مجله** : رساله، ميګزين.

**مجمر** : انګيټهي چې سپيلني يا بل څۀ داسې څيز پکښې لوګولې شي.

**مجمع** : ګنه ګوڼه، مجلس، ډير خلق.

**مجمعه** : مجمه، غرى، يو سلوري لوښې چې عموماً پکښې وريژې په ودونو کښې ايښوې شي.

**مجمل** : مختصر، لږ، لنډ، خلاصه. غير واضحه، چې په تفصيل نۀ وي.

**مجملاً** : په لنډو، مختصراً.

**مجموعه** : جمع کړې شوې، جمع، راجمع کړي څيزونه.

**مجموعي** : ټول، سراسر، کلهم، همګي، تمامي.

**مجنون** : ديوانه، ليونې، پاګل. عاشق، شيدا، مئين.

**مجوزه** : تجويز کړې شوې، پيش کړې شوې، مقرر کړې شوې.

**مجوسي** : فارسي مذهب لرونکې. اتش پرست.

**مجهول** : نامعلوم، پټ. هغه فعل چې فاعل ئې معلوم نۀ وي، د هغه "و" او "ي" نوم

چې په "تور" او "جيش" کښې استعماليږي.

**مچ** : يو وزر لرونکے چينجے، مګس،

**مچ بښک** : د مچانو شړلو پکے، ببوزے، مچشړ، مچشړونے.

**مچرداني** : د ماشو نه د ځان بچ کولو د تارونو نه جوړه جالۍ چې د کټ دپاسه لګولے شي.

**مچه** : کوکی، چچی، پپه، پپی، خلهٔ اخستنه، بوسه، چپ.

**مچي مار** : مهيان نيونکے، کبان نيونکے، ماهي ګير.

**محاذ** : د جنګ ميدان، سنګر، مخامخ، مقابل.

**محاسب** : حساب کونکے، حساب کتاب کونکے.

**محاسبه** : حساب کتاب کونه، حساب غوښتنه.

**محاسن** : خوبی، نيکی، فائدې، خصوصيات.

**محاصره** : ګيره، د څلورو اړخونو نه راتاويدنه، ګير چاپيره مخې بندونه.

**محافظ** : حفاظت کونکے، نګران.

**محاکات** : خپلو کښې خبرې اترې کونه، يو بل سره ليدنه کتنه، د چا د خبرو يا کار پيښې کونه،

**محاکمه** : فيصلې دپاره پيش کول.

**محال** : ناممکن، ګران، مشکل.

**محال** : علاقه، زمکه.

**محاوره** : هغه خبره چې کونکے ئ د لغوي معنې په مناسبت يو خاص مفهوم دپاره استعمالوي. خبرې اترې.

**محب** : محبت کونکے، مينه لرونکے، دوست.

**محبت** : مينه، اخلاص، دوستي، عشق، تعلق.

**محبوب** : خوږ، ګران، دلدار، دوست، معشوق،

ښکلې.

**محبوبا** : معشوقه، د محبوب مؤنث.

**محبوس** : په قید کښې ساتلې شوې. بندي، قیدي،

**محتاج** : ضرورت مند، حاجتمند، پامته دار، غریب، بې وسه.

**محتاط** : احتیاط کونکې، هوښیار.

**محترم** : عزتمند، معزز، لوې، د احترام لائق.

**محتسب** : حساب کتاب کونکې، محاسبه کونکې، حاکم، کوتوال.

**محجوب** : په پرده کښې، پټ، شرمنده،

**محدود** : په حد کښې راګیر. معلوم حد لرونکې.

**محراب** : جومات کښې هغه ځائې چې امام صیب پکښې مانځهٔ ته ودریږي. ډاټ، وسله،

**محرر** : لیکونکې، منشي، کاتب.

**محرک** : تحریک پیدا کونکې، حرکت ورکونکې.

**محرم** : داسې رشته دار چې نکاح ورسره جائز نهٔ وي. هغه سړې چې پړده ترې نهٔ کیږي. واقف، خبردار.

**محرم** : حرام کړې شوې، منع کړې شوې. د اسلامي کال وړومبې میاشت.

**محرمات** : منع کړي شوي څیزونه.

**محروم** : منع کړې شوې، ناکام، بینوا، بې نصیبه، مایوسه، نا امیده.

**محزون** : زهیر، خفه، غمګین، غمژن، مغموم.

**محسوب** : حساب کړې شوې، شمارلې شوې.

**محسود** : چا سره چې حسد کړې شوې وي. چې کینه ورسره ساتلې شي.

**محسوس** : هغه څیز چې د حواسو په ذریعه معلوم کړې

شي.
**محشر** : د حساب کتاب ورځ، قیامت.
**محصور** : د دیوال دننه، ګیر، ایسار.
**محصول** : چونګے، ټیکس، خراج، کرائي.
**محض** : صرف، فقط.
**محظوظ** : خوشحاله، مسرور، چې لطف ئ اخستے وي.
**محفل** : مجلس، میلس، حجره، غونډه، ټولنه.
**محفوظ** : اماني، سلامت، ژغورلے، ساتلے. یاد کړے شوے، حفظ کړے شوے.
**محقق** : تحقیق کونکے، څیړنه کونکے.
**محققانه** : د تحقیق هسې، د تحقیق او تصدیق له مخې.
**محک** : زر کاڼے، هغه تور کاڼے چې د زرو کره کوټه پرې معلومولے شي.
**محکم** : مضبوط، کلک، ټینګ، پائیدار.
**محکمات** : د قرآن پاک هغه آیتونه چې معنې ئ واضحه وي. د متشابهات ضد.
**محکمه** : د حکم ور کولو ځاے، اداره، عدالت.
**محکوم** : د حکم لاندې، ماتحت، تابع.
**محل** : قصر، ماڼی، کور، لوے مکان. وخت، موقع، مال.
**محلت** : د کلي یوه برخه، مالت، چم، ګاونډ، پلو، کندے، خیل، محله.
**محلول** : حل شوے، اوبه کړے شوے. هغه څیز چې په اوبو کښې حل شي.
**محله** : وګورئ محلت.
**محله دار** : په محله کښې وسیدونکے، د محلې مشر.
**محمد** : تعریف کړے شوے، ستائیلے شوے پیغمبر اسلام، د الله تعالې هغه نبي چې اخري الهامي کتاب، قرآن

شریف پرې نازل شوے دے.

انبیاؤ کښې اخري نبي چې عربو کښې په قریش خاندان کښې په ۵۷۱ عیسوي عام الفیل کښې پیدا شوے وۀ.

**محمل** : یو قسم ډولی چې د اوښ په شا اچولے شي. کجاوه،

**محمود** : تعریف کړے شوے، ستائیلے شوے، د الله تعالیٰ او حضرت محمد صلي الله علیه وسلم یو صفتي نوم.

**محنت** : خواري، مشقت، تکلیف، مزدوري.

**محو** : وران، وران شوے، فکرمند.

**محور** : مرکز، دره.

**محوري** : په دویم جنګ عظیم کښې د نازي جرمني او فسطائي اټلي او جاپان حکومتونه.

**محویت** : د محو کیدو حالت، په خیال کښې ورک، په تصور کښې ډوب.

**مخ** : د شا ضد، خیره، بشره، شکل، موشاده، بارخو، مخه، استر، لحاظ، خاطر، عزت، وقار، موجودګي، وړاندې، د توري خلۀ، احسان.

**مخاطب** : چاته مخامخ خبرې کونکے، خطاب کونکے.

**مخاطَب** : چا ته چې خبرې کیږي.

**مخاطبه** : خپلو کښې خبرې کول، یو بل ته مخامخ کیدل.

**مخالفت** : دشمني، تربګني، غلیمي، عداوت، بدي، دښمني.

**مخامخ** : مخ په مخ، نیغ په نیغه، روبرو.

**مخبر** : خبر ورکونکے، جاسوس، سارے.

**مخ په مخ** : روبرو، نیغ په نیغه، مخامخ.

**مختار** : اختیار لرونکے،

خپلواکه، واکمن، مجاز، وکیل، ازاد.
**مختص** : خاص کړے شوے، مخصوص کړے شوے.
**مختصر** : خلاصه کړے شوے، لنډ، کوتاه.
**مختصراً** : په لنډو، لنډه دا چې، په اختصار سره.
**مختلف** : چې یو شان نهٔ وي. جدا، مخالف، بیل بیل، رنگ په رنگ.
**مختوري** : بې عزتي، شرمندګي، بې حیائي.
**مختیار** : وګورئ مختار.
**مخدوم** : خدمت کړے شوے، بزرګ، عزتمند، بادار، آقا.
**مخرج** : د خارجیدو ځاے، د وتو ځاے، منبع، اصل، مصدر، جرړه، مادده.
**مخروط** : تراشلے شوے، توړلے. د جیومیټری یو شکل.
**مخزن** : د خزانې ځاے، د جمع کولو ځاے.
**مخصوص** : خاص کړے شوے، غوره کړے شوے، نامزد شوے.
**مخفف** : تخفیف کړے شوے، کم کړے شوے، مختصر کړے شوے.
**مخفي** : پټ، نامعلوم.
**مخکښې** : وړاندې، پخوا، اګاهو،
**مخلص** : خالص، رښتینے، اخلاص مند، خیر خواه، صادق، د اخلاص نه ډک.
**مخلوط** : ګډوډ، ارګجه، سره یو ځاے، شریک.
**مخلوق** : دنیا، خلق، اولس، وګړي. پیدا کړے شوے.
**مخلوقات** : د مخلوق جمع.
**مخ مروت** : لحاظ، خاطر، خیال، روئ، رعایت، پره، جنبه، مخ ملازه.
**مخمس** : پنځهٔ ضلعې لرونکے شکل. پینځهٔ ګوټیز.

پینځۀ مصرعه ایز بندونه لرونکې نظم.
**مخمل** : یوه پسته کپړه. یو نرم او قیمتي ټوکړ. بخمل.
**مخمور** : نشه، مدهوش، په نشه کښې مست.
**مخنث** : هجړا، ایجړا، هیجړا، نامرد.
**مخ نیوے** : انسداد، تدارک، مخه نیونه.
**مخوریز** : د مخ او لحاظ خښتن، د اثر او رسوخ خاوند، سپین روبے، مخور، مشهور، معتبر، نیازبین. نازولے.
**مخه** : لور، طرف، ډډه، اړخ، وجه، سبب.
**مخي** : د خور په بدل کښې کړې، د خور ننډور.
**مخیر** : خیرات ورکونکے، فیاض، سخي.
**مخې** : جوړه، پله، ځواب، مخکښې، مثال.
**مخے** : مخ ته، مخ په. مخامخ.

**مداح** : ثناخوان، تعریف کونکے، صفت کونکے.
**مداخلت** : ننوتنه، دخل ورکونه، لاس وهنه.
**مدار** : خدمت کونه، خاطر تواضع، دارمدار، خاطر، لحاظ، زغم، صبر.
**مدار** : د ګردش یا تاویدو ځاے. جاري دور، ګردش،
**مدار** : ملاحظه، لحاظ و قدر، مروت.
**مداري** : مدار کونکے، د مدار لوبه کونکے، شعبده باز، بازیګر، ډبلي مار، چالاک.
**مدافعت** : دفعه کونه، لرې کونه، حفاظت.
**مدام** : تل، ترتله، متواتر، ټول عمر.
**مدبر** : تدبیر کونکے، هوښیار، عقلمند، دانشمند.
**مدت** : موده، زمانه، وخت، میعاد، ساعت، هغه موده چې طلاقه شوې یا کونډه ښځه ئې د شریعت مطابق تیروي.

**مدح** : هغه نظم چې پکښې د چا تعریف شوی وي.
**مدد** : امداد، مرسته، پره، کومک.
**مددګار** : مدد کونکی، امدادي، مرسته کونکی، حمایت کونکی.
**مدرس** : درس کونکی، د مدرسې استاذ، معلم.
**مدرسه** : د درس و تدریس ځای، مکتب، سکول،
**مدعا** : مرضي، مطلب، مقصد، مراد، منشا.
**مدعا علیه** : په چا چې دعوي شوی وي.
**مدعو** : بللی شوی، دعوت ور کړی شوی.
**مدعي** : دعوي کونکی، دعوي لرونکی.
**مدغم** : پیوست، ګډ، شامل، داخل، ننوتی.
**مدفون** : دفن کړی شوی، ښخ کړی شوی.
**مدلل** : په دلیل سره ثابت کړی شوی.
**مدوجزر** : د سپوږمی له اثره په اوبو کښې پیدا شوي موجونه او د هغې واپس کیدنه.
**مدوګی** : اوږده د لرګي چوکه چې سر ته ئ دوه غاښې سیخ لګیدلي وي او جوک ته پرې خشاک راکاږي.
**مدهوش** : چې د نشې په وجه ئ هوش نهٔ وي. په نشه کښې، بیخوده، بدمست.
**مدیر** : چلونکی، ایډیټر، د دفترمشر.
**مذاق** : ټوقې ټقالې، مسخرې، خوند، لذت، ذائقه.
**مذاکره**: خپلو کښې بحث مباحثه کول، سره کیدل، خپلو کښې ذکر کول.
**مذاهب** : د مذهب جمع، طریقې، لارې، دینونه، مذهبونه.
**مذبح** : د حلالو ځای، د ذبح کولو ځای.
**مذبذب** : غیر مستقل

مزاجه، ګډوډ، مشتبه، په شک کښې.
**مذکر :** نر، سړے، د مؤنث ضد. ګرامر کښې هغه اسم چې نر حسابیږي.
**مذکور :** ذکر شوے، بیان کړے شوے، وئیلے شوے.
**مذمت :** غندنه، ترټنه.
**مذموم :** بد، خراب، قبیح.
**مذهب :** عقیده، ایمان، طریقه، لاره، دین.
**مذي :** هغه نری رنه او لاړژنه ماده چې د شهوت په وخت د سرې د آله تناسل نه څاڅکے څاڅکے څي.
**مراتب :** د مرتبه جمع، درجې، مرتبې.
**مراجعت :** واپسي، پستنه کیدنه، رجوع کونه.
**مراحل :** د مرحله جمع.
**مراد :** مقصد، مطلب، غرض، مدعا، ارمان.
**مراسلات :** د مراسله جمع.
**مراسله :** چیټهی، لیک، خط، نامه.
**مراسم :** د رسم جمع، رسمونه، قاعدې، خپلو سره تګ راتګ او لیدنه کتنه.
**مراقبه :** سر په ګریوان کښې ښکته کونه، غور، فکر، تصور، خیال.
**مرام :** مقصد، مطلب، مراد، هیله، مطلوب.
**مربع :** چې څلور واړه اړخونه ئې یو برابر وي. څلور ګوټه.
**مربوط :** تړون لرونکے، تړلے، لګولے شوے، بل سره تړلے.
**مربي :** پالونکے، پرورش کونکے، سرپرست، مشر.
**مرتب :** ترتیب ور کونکے، سمونکے، په قاعدې سره کښېنونکے.
**مرتب :** ترتیب کړے شوے، په قاعده کړے شوے.
**مرتبان :** یو قسم د چینی

لوښے چې اچار، مربه، چټني وغیره یا داسې نور شیزونه پکښې ایښوے شي.
**مرتبت** : درجه، رتبه، مرتبه، پایه، عهده.
**مرتبه** : درجه، رتبه، عهده، کمال،
**مرتد** : له اسلام نه اوړیدلے، ګمراه، بې لارې.
**مرتضیٰ** : چوڼ کړے شوے، خوښ کړے شوے. د حضرت علي رضي الله عنه یو لقب.
**مرتکب** : عمل کونکے، کونکے، ارتکاب کونکے.
**مرثیه** : هغه نظم چې د مړو په غم او صفت کښې وئیلے شوے وي. هغه نظم چې پکښې د کربلا د شهیدانو د تکلیفونو او د مصیبتونو بیان وي.
**مرجان** : یو قسم قیمتي کاڼے چې سور رنګ لري.
**مرجونا** : غوپه خور، غوپه مار، غواص.
**مرچ** : یو قسم تورې دانې چې د مصالحې په طور استعمالولے شي.
**مرچکے** : د شین او سور رنګ یوه ترخه سبزي. تریخ مزاج لرونکے.
**مرحبا** : شاباش، واه واه، آفرین. ډاډ ګیرنه، داد، پخیر راغلے.
**مرحله** : پړاؤ، منزل.
**مرحمت** : مهرباني، پیرزوئینه.
**مرحوم** : چې رحمت پرې کړے شوے وي. بخښلے شوے. مړ شوے.
**مرخنۍ** : د بیرو په شان یوه میوه، عناب،
**مرد** : نر، سړے، نارینه.
**مردار** : چې حلال شوے نه وي، چې خوړے نه شي، ناصفا. پلیت، حرام.
**مردار سنګ** : یو کیمیائي توکے،

**مردان** : د مرد جمع، سړي.
**مردانه** : د سړي سره متعلق.
**مردګان** : د مرده جمع، مړي.
**مردم** : بنیادم، سړي، خلق، اولس.
**مردمک** : د سترګو تور، کسي.
**مردود** : رد کړے شوے، رټلے شوے، سپک شوے، خوار، ذلیل، لعنتي.
**مرده شوئ** : مړي لمبونکے، مړي له غسل ورکونکے.
**مردي** : نرتوب. سړي توب. مني.
**مرزا** : امیرزاده، شاه زاده. د مغلو لقب. لیکونکے، پټواري، د پولیس د تانې محرر، منشي.
**مرسته** : سعي، کوشش، تلاش، لټون، ملګرتیا، طرف داري، حمایت.
**مرشد** : ارشاد کونکے، هدایت کونکے، پیر، هادي، نیغه لار ښونکے.
**مرصع** : چې پکښې یا پرې غمي، مرغلرې او جواهر لګیدلي وي. په کالو ښائسته کړے شوے. جړاؤ.
**مرض** : بیماري، رنځ، ناروغتیا.
**مرضي** : خوښي، رضا، اجازت.
**مرطوب** : نمژن، تر، لوند.
**مرغ** : چرګ، مرغی.
**مرغابي** : د ایلی یو قسم چې په کورونو کښې ساتلے شي.
**مرغزار** : چمن، ورشو.
**مرغلره** : لعل، یو قسم قیمتي کاڼے.
**مرغوب** : زړۀ ته نزدې، خوښ.
**مرغومے** : ورغومے، د چیلی بچے.
**مرغی** : یو الوتونکے حیوان،
**مرغی مرغی** : کیرې بیرې، خوابیده، خوبولې.
**مرقد** : قبر، مزار، زیارت.

**مرقوم** : رقم شوی، لیکلی شوی، لیکلی.
**مرکب** : د سورلی ځیز، د سورلی ځناور.
**مرکب** : ترکیب کړی شوی، ملاؤ شوی، ګډوډ.
**مرکز** : د دائرې منځنی نقطه، مینځ، یو مقرر ځای.
**مرکند** : مری، مرغټ، اورمیږ، غړی، غاړه،
**مرکوز** : مضبوط کړی شوی، محکم کړی شوی، منظور کړی شوی، راتاؤ، تاؤ راتاؤ، ښخ، ټینګ.
**مرکه** : مجلس، شورې، جرګه، د صلاح مشورې مجلس. د قبائلو کونسل،
**مرګ** : د ژوند ضد. د ژوند خاتمه، مړینه، مرګی، وفات.
**مرګ ژواک** : مړی ژوندی، ښه بده، معاشرتي تعلقات
**مرګ ژوبله** : جنګ جګړه، جنګ و جدل، شر شدت، داسې جګړه چې ځوک پکښې مړه او ځوک زخمیان شي.
**مرګو** : طاعون، وبائي مرض.
**مرګي** : یو قسم بیمارې چې پکښې سړی ناځاپه را وغورځیږي او بیهوشه شي او د خلې نه ئ ځګونه ځي. میرګي، یو دماغي مرض.
**مرګی** : د مرګ اسم تصغیر.
**مرمت** : د یو ځیز د ورانیدو نه پس هغه بیا د استعمال قابل جوړونه. د ماتیدو نه پس بیا رغونه.
**مرمر** : یو قیمتي کاڼی، سنګ مرمر.
**مرمرین** : د مرمرو په رنګ سپین.
**مروارید** : در، ګوهر، ملغلره، لعل.
**مروت** : بهادرې، مړانه، توررزني، احسان، مینه،

انسانیت.
**مروت** : لحاظ، خاطر، اعتبار، پښتو کښې د مخ سره یو ځاے هم وئیلے شي لکه مخ مروت.
**مرور** : ناراضه، خفه، ګیله من، زړۀ بدے.
**مروړ** : چونډی، سکونډی. ګیډه کښې درد پیدا کیدنه.
**مروړل** : مښل، تاوول، تاوه ول.
**مروړے** : پیچش، نس خوږے، شوله،
**مرهم** : ملهم، پهه، پټی.
**مریخ** : د یوې سیارې نوم.
**مرید** : خواهش مند، ارزومند، ارزو لرونکے، منونکے، شاګرد، مرشد، فرمان بردار.
**مریض** : رنځور، ناجوړه، ناروغه، بیمار، ناسازه، ناچاقه، بې طبیعته.
**مریے** : په مال اخستے شوے نوکر، غلام، زرخرید سړے،
**مری** : ګوړګوړو، غاړه، مرغټ، مرغک. مشکیه، مهره.
**مړ** : مړ شوے، د ژوندي ضد.
**مړانه** : میړانه، بهادري، توره، د مردی کار.
**مړاوے** : چې تازه نۀ وي. خفه، پریشان، پژمرده، افسرده.
**مړځن** : مړغیژن، مړاوے، زیلے شوے، بیکاره، بې خونده، مړ ګونے،
**مړد** : مرد، تکړه، ځوان.
**مړدکے** : د ماشومانو د لوبو دپاره له کاڼي یا شیشي جوړ بلورے، شینولے. هر هغه څیز چې وړوکے او غونډ وي. ګولی، د سترګو ګاټي.
**مړز** : یوه مرغی چې خلق ئې ساتي او جنګوي، بټیر،
**مړکول** : وژل، قتلول.
**مړکیدل** : وژل کیدل، قتلیدل، قتل کیدل، ساه وتل.
**مړنے** : میړنے، تکړه، بهادر،

تورزن، باتور، دلاور، زړه ور،
**مړوښه** : د شتـه خـاوند ښځه. وادهٔ شوې ښځه.
**مړول** : مړ کول. وژل.
**مړول** : ډیـر خـوراک ورکـول، ډکول. پـه ګیډه مړول،
**مړوند** : د څنګل نه تر پـنجې پورې د لاس برخـه. لیچه.
**مړه تبـه** : د تبې یو قسم چې بـدن پـه کښې سترې سترې کیږي. مړهی تبه.
**مړه خوا** : موړ، سیرچشمه، موړ سترګے.
**مړینه** : مرګ، وفات.
**مړیدل** : پـه خوراک ګیډه ډکیـدل، پـه ګیډه مـړیدل، سیـرابیـدل، مـطـمئن کیدل. مالداره کیدل.
**مړی** : نمړی، نوړی، لمړی. نواله. دعوت، میلمستیا.
**مړے** : د مړي لاش.
**مزاج** : طبیعت، ذهن،
**مزاح** : ټوقه، خندا.
**مزاحمت** : مقابله، ایساروونه، اړې.
**مزار** : قبـر. زیارت، روضه، درګاه.
**مـزارع** : زمیـدار، دهقـان، کاشتکار،
**مزد** : مـزدوري، مـعاوضـه، اجرت.
**مزدور** : پـه اجـرت باندې کار کونکے، مزدور کار.
**مزدوري** : په بیه کار کونه، مـحنت، مشقت. د کار صله، د کـار پـه بـدل کښې نغدې پیسې.
**مزرے** : زمـرے، ازمرے، د پیشو د خـانـدان یـو مشهور خناور. په ګیټو کیدونکې یوه لوبه.
**مزغے** : څټ، حاشیه، پوله، برید.
**منزل** : رفتـار، سـفـر، یون، تګ. فـاصـلـه، مزه اخستل، خوند اخستل.

**مزه** : خوند، ذائقه، لذت، عیش، خوشحالي
**مزه چرچه** : عیش عشرت،
**مزید** : نور، زیات، ډیر.
**مزین** : سینګار شوے، جوړ، سمبال، اراسته.
**مزیدار** : خوندناک، مزه ناک.
**مزے** : تار، سوتلی، پړے، رسی. سرحد، پوله، حد.
**مږ** : مږ، ګلهورے، پسهٔ.
**مږ** : مږ، ګلهورے، پسهٔ، د غرهٔ ګلړ، د مږې نر، منږک.
**مږل** : مرورړل، مښل.
**مږه** : د مږ مؤنث، مږه. د غرهٔ ګلړه،
**مس** : لاس وروړنه، لاس محسوس کونه.
**مس** : تانبه، سیسه.
**مس** : ناوادهٔ کړې جینی. پیغله جینی. استاذه، نرس.
**مساجد** : د مسجد جمع، جماتونه.
**مساحت** : د زمکي د پیمائش علم، د زمکې پیمائش.
**مسافر** : سفر کونکے، پردیسي، اجنبي، فقیر، روتهی غوښتونکے.
**مسافري** : سفر، سیاحت.
**مساکین** : د مسکین جمع، غریبان، مسکینان.
**مسام** : د ویښتهٔ هغه نرے سورے چې خوله پرې راوځي.
**مساوات** : برابري، یو شان والے.
**مساوي** : برابر، په یوه اندازه.
**مسائل** : د مسئله جمع مسئلې، سوالونه، لانجې.
**مسبب** : د سوبونو جوړونکے، خدائے پاک.
**مست** : په نشه کښې غرق، بیهوشه، بیخوده، مخمور، مدهوش، دیوانه، بې پروا، د مستی نه ډک.
**مستانه** : مست، دیوانه.
**مستثنیٰ** : جدا کړے شوے، بیل کړے شوے، ممتاز، جدا،

بیل.

**مستحب** : خوښ کړے شوے، د فقې په علم هغه عبادت چې حضور علیه السلام خوښ کړے وۀ او پخپله ئ هم کړے وۀ.

**مستحسن** : خوښ، غوره، ښۀ، بهتر، نیک.

**مستحق** : حقدار، جوګه،

**مستحکم** : مضبوط، پائیدار، کلک، استحکام لرونکے، کوټلے.

**مسترد** : رد شوے، رد، نامنظور شوے.

**مستري** : کاریګر، استاذ، ګلکار.

**مستزاد** : د شاعرۍ په فن کښې هغه نظم چې هره مصرع ئ خان سره یوه وړه مصرع هم لري. ورِد کړے شوے.

**مستشرق** : د مغربي ملکونو عالم چې هغه د مشرقي ژبو په علم قدرت لري.

**مستطیل** : طول او عرض لرونکے د څلورو ضلعو شکل چې څلور واړه زاویې ئ قائمې وي. او د مقابل ضلعې ئ برابري وي.

**مستعار** : پور کړے شوے، قرض.

**مستعد** : تیار، اماده، چمتو، چست.

**مستعفي** : استعفې ورکونکے.

**مستعمل** : استعمال شوے، په کار راوستے شوے.

**مستغرق** : غرق، ډوب، لاهو شوے، ډوب شوے، ډیر مصروف، اخته، بوخت.

**مستقبل** : راتلونکے وخت، راتلونکې زمانه. هغه فعل چې راتلونکې زمانې سره تعلق لري.

**مستقر** : د قرار کولو ځاے، د ایساریدو ځاے، د وسیدو ځاے.

**مستقل** : مضبوط، ټینګ، کلک، پائیدار.
**مستند** : تصدیق شوے، منلے شوے، اعتباري، د استناد قابل.
**مستور** : پټ، پناه، خفیه.
**مستورات** : د مستوره جمع، ښځې.
**مستوره** : ښځه، پرده پوښه، پټه.
**مستي** : نشه، خمار، بې هوشي، د خوشحالۍ حرکتونه.
**مسجد** : جماعت، جومات، د سجدې کولو ځاے. د مونځ کولو ځاے، مزدک.
**مسجود** : سجده کړے شوے، د سجدې قابل، د خداے پاک یوه نامه.
**مسح** : لاس په یو ځاے لګونه، په بدن لاس راښکنه، مسه، ګوتې وروړنه.
**مسخر** : قابو کړے شوے، په قبضه کښې راوستے شوے، تسخیر کړے شوے.
**مسخره** : ټوقه، وشته، مذاق. ټوقي، ټوقمار.
**مسدس** : د جیومیټرې په علم کښې د شپږو ضلعو شکل. د نظم یو قسم چې په هر بند کښې ئې شپږ مصرعې وي.
**مسرت** : خوشحالي، سوکالي،
**مسرف** : فضول خرچ، اسراف کونکے.
**مسرور** : خوشحاله، بې غمه.
**مسروقه** : هغه څیز چې غلو وړے وي. پټ کړے شوے څیز.
**مسطر** : د کرښو وهلو پیمانه، کرښه.
**مسعود** : نیک بخت، مبارک، بختور.
**مسک** : په مسکا، په خندا، خندا ته نزدې.
**مسکا** : وګورئ مسک.
**مسکن** : د وسیدو ځاے،

وطن، کور، تیکانه، تیکاونه.
**مسکین** : غریب، محتاج، فقیر، موتازه.
**مسکے** : متبسم، په خندا، خندیدونکے.
**مسګر** : د مسو لوښي جوړونکے، د تانبې لوښي جوړونکے.
**مسل** : هغه کاغذونه چې د مقدمې کارروائې پرې لیکلے شي. د مقدمې لیکلے تفصیل.
**مسلسل** : پرله پسې، سلسله وار، په یو مخ.
**مسلط** : مقرر کړے شوے، قابض، غالب.
**مسلم** : مسلمان، د اسلام پیرو.
**مسلم** : منلے شوے، مکمل، پوره.
**مسلمان** : مسلم، د اسلام منونکے.
**مسمات** : توري چې د ښځو د نوم نه وړاندې په سرکارې کاغذونو کښې لګولے شي.
**مسمار** : ویران، وران، تس نس، تباه وبرباد.
**مسند** : د ډډې اچولو ځاے، تکیه، تخت.
**مسنون** : هغه کار چې حضور پاک صلي الله علیه وسلم خپله کړے وي. سنتو نه ثابت.
**مسواک** : د غاښونو صفا کولو یو مخصوص ډکے چې سر ئې میده کړے شوے وي.
**مسوده** : هغه لیکلې شوې یا ترتیب شوې مواد چې کتابت ئې نهٔ وې شوے. د خط کچه مضمون، لیکلې شوې خبره، تجویز، د هر لیک وړومبی نسخه.
**مسور** : د دالو یو قسم. نسک.
**مسئله** : جنجالي خبره، ګرانه یا پیچیده معامله یا خبره، سوال، دیني خبره.
**مسئول** : ذمه دار، ذمه وار.

**مسؤلیت** : ذمه داري، ذمه واري.
**مسیحا** : د عیسیٰ علیه السلام لقب، ماهر، طبیب، محبوب.
**مشابه** : په رنګ، په شان، لکه، خیر، ورته، مطابق.
**مُشاده** : شکل، صورت، موشاده، نمونه، بڼه،
**مشاطه** : هغه ښځه چې د ناویانو یا د نورو مالدارو ښځو سر ځنه او ډول سینګار کوي، نائبه.
**مشاعره** : د شاعرانو هغه محفل چې په کښې خپل شعرونه اوروي.
**مشال** : د مشعل مغن، لاټین، ډیوه، چراغ.
**مشاورت** : خپلو کښې صلاح مشوره کونه، مشوره، صلاح.
**مشاهده** : لیدل کتل، معائنه. ننداره.
**مشاهیر** : د مشهور جمع، مشهور خلق.
**مشائخ** : د شیخ جمع الجمع، شیخان، بزرګان، نیکان.
**مشت** : موټے، چونګ، لپه. لږ، لږ لږ خیز.
**مشتبه** : چې په شک کښې وي، شکمن، چې شک شبه وي پکښې.
**مشترک** : شریک، ګډ، شامل، شریک، ملګرے.
**مشتري** : خریدار، د یوې سیارې نوم.
**مشتق** : وتلے شوے، هغه لفظ چې د بل لفظ نه وتلے وي.
**مشتمل** : شامل، یو ځاے، شریک، ګډون کونکے.
**مشته** : د لرګي نه جوړه د چمیارانو یوه آله چې د څپلو تلي پرې ټاپ کولے شي. ډبلی.
**مشتهر** : چې شهرت ور کړے شوے وي، یاد، مشهور.
**مشدد** : په کوم ټکي چې د

شد علامت وي، هغه حرف چې پرې تشديد وي، تړلے شوے.

**مشر** : بزرګ، لوے، د کور سربراه، شريف، رهنما.

**مشرف** : چې عزت ورکړے شوے وي، شرف ورکړے شوے.

**مشرق** : نمر ختلو خوا، نمر ختلو طرف.

**مشرک** : شرک کونکے، خدائے تعالي سره شريک جوړونکے.

**مشروټ** : کلانکار، مکار، چې ځان ته څۀ وائي. ځان غټ حسابونکے.

**مشروط** : شرط سره متعلق.

**مشروع** : شرعي ته درست، جائز، روا.

**مشعل** : مشال، رڼا، ډيوه، چراغ.

**مشغله** : شغل، مشغولا، مصروفيت.

**مشغول** : مصروف، لګيا، اخته، بوخت.

**مشغولا** : شغل، مشغله، کار، کاروبار.

**مشفق** : شفقت کونکے، مهرباني کونکے.

**مشق** : بيا بيا کونه، مسلسل کونه، يو کار دې مارې کونه، سوال، ګردان. هنر، مهارت.

**مشقت** : محنت، خواري، همت، کار کسب، خواري مزدوري.

**مشقتي** : مشقت کونکے، سخت محنت کونکے.

**مشک** : يو قسم عطر، مښک، مسک.

**مشک** : د څرمنې جوړ کوډے چې اوبۀ پکښې راوړے شي.

**مشکار** : پوه ښکاري، تکړه ښکاري، ښکاري.

**مشکنه** : هغه وړه مرى چې پکښې سوړے وي او په تار کښې پيیلے شي.

**مشکور** : هغه څوک چې

شکر ئ ویستے شي. خدائے پاک.

**مشکوک** : شکمن، شکي، په شک کښې، مشتبه.

**مشکین** : د مشک په رنګ تور.

**مشنګ** : مسور، نسک، د دالو یو قسم.

**مشورت** : مشوره، صلاح، مصلحت.

**مشوره** : مشورت، صلاح، جرګه،

**مشهور** : نامور، مقبول، چې شهرت ئ حاصل کړے وي.

**مشیت** : مرضي، اراده، خوښه، د خدائے پاک مرضي، تقدیر، قسمت.

**مشیر** : مشوره ور کونکے، صلاح ور کونکے.

**مشین** : یو قسم وړه آتشینه وسله چې ګولی ترې ډیرې زر زر وځي. په بجلی، براس یا لاس چلیدونکې آله.

**مښنګیرک** : هغه مارغهٔ چې منبر کان خوري.

**مبتلے** : د مبتلو له عمله تیر. زوړ.

**مصاحب** : ملګرے، دوست، خاص ملګرے.

**مصافحه** : یو بل له لاس ور کونه، علیک سلیک کونه، د ملاقات په وخت د یو بل لاس نیونه.

**مصالحت** : په خپلو کښې روغه کونه، جوړه کونه.

**مصائب** : د مصیبت جمع. مصیبتونه.

**مصداق** : هغه ثیز چې د چا رښتینوالے ثابت کړي. تصدیق کونکے، ثبوت، صداقت.

**مصدر** : د وتلو ځائے، ګرامر کښې هغه لفظ چې اخر کښې ئ ول، یل، یا تش ل راځي. لکه کول، کیدل، وژل وغیره.

**مُصِر** : اصرار کونکے، ضد کونکے.

**مصرعه** : نیم شعر یا بیت. ټپه، لنډۍ.

**مصروف** : مشغول، په کار لګیا، اخته.

**مصروفیت** : مشغولتیا،

**مصري** : د چینو قلم، د ترو قلم، د چینو وړې وړې ډکرې.

**مصلیٰ** : د میزرې جوړ جانماز.

**مصلحت** : ښه صلاح، ښهٔ تجویز، صلاح، مشوره.

**مصلي** : شاخیل، چوړے.

**مصمم** : پوخ، مضبوط، مستحکم.

**مصنف** : تصنیف کونکے، لیکونکے، کتاب جوړونکے.

**مصنوعات** : د مصنوع جمع، جوړ کړے شوې څیزونه.

**مصور** : تصویر جوړونکے، نقاش.

**مصیبت** : غم، درد، تکلیف.

**مضارع** : مشابه، په رنګ، په شکل. د فعل هغه صیغه چې پکښې د حال او مستقبل دواړو معنیٰ وي.

**مضاف** : خوا په خوا، تړلے، متصل. د ګرامر په علم کښې هغه اسم چې د یو بل اسم سره ولګولے شي. منسوب، متعلق.

**مضافات** : د مضاف جمع. چاپیرچل، لرې نزدې.

**مضاف الیه** : د مرکب اضافي هغه حصه چې مضاف ورپورې تړلے وي.

**مضامین** : د مضمون جمع.

**مضائقه** : سره تنګونه، تنګي. ویره، پروا.

**مضبوط** : محکم، ټینګ، پوخ. طاقتور، تندرست. ضبط کړے شوے.

**مضحکه** : خندا، ټوقه، ټقاله.

**مُضر** : ضرر رسونکے، تکلیف رسونکے.

**مِضراب** : د ستار غړولو د وسپنې څلے، زخمه، شاباز.

**مضطرب** : ناقلاره، وارخطا، خفه، زهير، پريشانه.
**مضموم** : هغه حرف چې دپاسه پرې پيش وي، ضمه لرونکے لفظ، پيښ لرونکے لفظ.
**مضمون** : مطلب، معني، خبره. اداريه،
**مطابق** : برابر، يو شان، سم.
**مطابقت** : برابرے، يو شان والے.
**مطالب** : د مطلب جمع.
**مطالبه** : غوښتنه، تقاضا، دعوي.
**مطالعه:** كتاب لوستنه، لوستنه.
**مطب** : د طبيب دكان،
**مطبع** : د چاپ ځاے. چاپ خانه.
**مطبوعات** : چاپ شوي څيزونه.
**مطرب** : سندرغاړے، نغمه ويونکے. ساز وهونکے. ستار غږونکے.
**مطلب** : مقصد، معني، مدعا، غرض، مراد.
**مطلع** : د نمر ختلو ځاے. د غزل وړومبے شعر چې دواړه مصرعې ئ قافيه يا قافيه او رديف لري.
**مطلع** : خبردار كړے شوے.
**مطلق** : ازاد، بې قيده، د واک اختيار خاوند. د قرآن پاک په آيت كښې هغه ځاے چې پكښې ساه اخستے شي. اتل، نۀ بدليدونكے، صرف. هغه اس يا اسپه چې د پښو رنگ ئ د بدن نه مختلف وي.
**مطلق العنان** : آمر، بيباک، خودسره، بې قيده.
**مطلقه** : طلاقه شوې ښځه.
**مطلوب** : مطلب، مراد، مقصد، مقصود.
**مطمئن** : تسلي لرونكے، اسوده، په اطمينان.
**مطيع** : اطاعت كونكے،

منونکی.
**مظالم** : د ظلم جمع. ظلمونه.
**مظاهره** : د خپلې راې د ښکاره کولو جلوس یا جلسه یا بله کومه جرګه.
**مظلوم** : چې ظلم پرې شوې وي. په چا چې ظلم کیږي.
**معاش** : رزق، روزي، خوراک، روزګار.
**معاشرت** : خپلو کښې یو ځاے ژوند تیرول.
**معاشره** : هغه ژوند چې ډیر خلق ئې په یو ځاے تیروي او د یو بل د حقونو او جذباتو احترام کوي. سوسائټي، سماج.
**معاشي** : معاش سره متعلق
**معاشیات** : د اقتصادیاتو علم چې پکښې د مال د ګټې وټې او د هغې د تقسیم مطالعه کیږي.
**معاصر** : د خپل وخت، د خپلې زمانې.
**معاف** : بخښلے شوے، بخښلے
**معافي** : د بخښلو عمل، د معاف کولو عمل.
**معالج** : علاج کونکے، ډاکټر، طبیب، حکیم.
**معالجه** : علاج، دارو درمل.
**معامله** : جنګ جګړه، جنجال، دعوي، مسئله.
**معانقه** : تر غاړه وتنه، غاړه کیدنه.
**معاني** : د معنی جمع، مطلبونه، مقصدونه.
**معاوضه** : عوض، بدل،
**معاون** : مددګار، تعاون کونکے، مرستیال.
**معاهده** : وعده، لوظ، قرار.
**معائنه** : امتحان، اندازه، په سترګو لیدنه، عیني تحقیق.
**معبد** : عبادت ګاه، د عبادت ځاے
**معبود** : د عبادت لائق،

خدایے پاک.

**معتبر** : اعتباري، باوري، درست، ټیک، راست، عزتمند، مشهور، مشروټ.

**معتدل** : د اوسطې درجې، د درمیانه درجې.

**معترض** : اعتراض کونکے.

**معترف** : اعتراف کونکے.

**معتزله** : د مسلمانانو یوه فرقه. د مسلمانانو مفکرینو هغه ډله چې د عقائدو بنیاد په عقل ږدي او د حق او باطل معیار عقل ګڼي.

**معتقد** : اعتقاد لرونکے.

**معتکف** : اعتکاف کونکے، چیله ایستونکے.

**معجزه**: هغه کار چې د انسان له وسه بهر وي او خدایے پاک ئې صرف د خپلو رسولانو دپاره ظاهروي.

**معجون** : هغه مرکب دارو چې د جوړولو یا تیارولو په وخت په شهدو وغیره کښې لکه د اوړو اخښلے شي.

**معدن** : کان، خزانه.

**معدنیات** : هغه څیزونه چې له کانونو ایستلے شي.

**معدوله** : هغه حرف چې لیکلے خو شي خو وئیلے نه شي لکه خود یا خویش کښې واؤ.

**معدوم** : نابود کړے شوے، وران کړے شوے. د نشت برابر.

**معده** : د ګیډې دننه هغه نظام چې خوراک پکښې هضمیږي.

**معذرت** : بهانه، بانه، عذر. عذر غوښتنه.

**معذور** : مجبور، ناچار.

**معراج** : د حضور پاک صلي الله علیه وسلم د الله پاک سره ملاقات. اندرپایه، پوړۍ.

**معرفت** : پیژندګلو، د خدایے پاک پیژندګلي.

**معرفه** : هغه اسم چې د یو خاص شي دپاره استعمال

کړے شوے وي.
**معرکه** : سنګر، جنګ.
**معروف** : مشهور، معلوم.
**معريٰ** : بربنډ، د نظم يو قسم چې د قافيې پابندي پکښې نۀ وي شوے.
**معزز** : عزتمند، مشهور.
**معزول** : برطرف کړے شوے. ايستلے شوے.
**معشوق** : د عشق مرکز، محبوب، اشنا، دوست.
**معصوم** : له ګناه نه پاک، ساده، ماشوم.
**معطل** : ماتل، بيکاره، سست، کم عقل،
**معقول** : د عقل په تله پوره، مناسب، خوبش، موزون، د اطمينان قابل.
**معقوليت** : د معقول کيدو خاصيت.
**معکوس** : الټه، اپوټه.
**معلم** : استاذ، علم ښودونکے.
**معلوم** : علم کښې راغلے، واضح، ښکاره، څرګند.
**معما** : پټ، اړ، دوړه، دونه، ګرانه خبره.
**معمار** : عمارت سازونکے، عمارت جوړونکے.
**معمر** : بوډا، د ډير عمر، عمر خوړلے.
**معمور** : ډک، اباد، بند، تاله شوے.
**معموله** : هغه خبره چې روزانه کيږي. چې عمل پرې وشي. د رواج مطابق.
**معمولي** : لږ شان، لکوټې، پوټے، بکسکے.
**معنويت** : د معنوي کيدو حالت، حقيقت.
**معنيٰ** : مقصد، اراده، مطلب، منشا، مراد.
**معيار** : پيمانه، اندازه، د تول آله.
**معيشت** : ژوند، روزګار، روزي، اقتصاديات.
**معيوب** : عيب ناک، عيب ژن،
**مغازي** : کافرانو سره

جګړه، هغه جنګونه چې حضور پاک صلي الله علیه وسلم پکښې پخپله موجود وه.
**مغالطه** : دوکه، فریب، مکر.
**مغانه** : غسانه د ورانه جرړه، د پیوں جرړه.
**مغرب** : د مشرق ضد، نمر پریواتهٔ طرف.
**مغرور** : کبر کونکے، غرور کونکے.
**مغز** : دماغ، مازغهٔ. د څهٔ څیز دننه حصه، عقل، جرړه، اصل، تکبر، غرور، منځ، مغزے، نلے، چکی.
**مغزے** : نلے چې ځنې هلوکو کښې وي.
**مغضوب** : چې قهر پرې شوے وي. د غضب لاندې.
**مغفور** : بخښلے، مرحوم.
**مغل** : یو قوم چې خپل وطن ئې منګولیا دے.
**مغلواله** : د مغلو حکومت، ظالمانه حکومت، استبدادي حکومت.
**مغلوب** : شکست خوړلے، د غلبې لاندې.
**مفاد** : د فائدې ځاے، نفع، ګټه.
**مفاهمه** : د یو بل په خبره پوهیدنه او فیصله کونه، په خبره پوهیدنه.
**مفت** : بغیر قیمت. ناحق، بې فائدې. ضائع.
**مفتي** : فتوي ور کونکے. فقیه.
**مفرد** : یواځې، تنها. یو، غیر مرکب.
**مفرور** : له قابو نه تښتیدلے، فرار شوے، پټ شوے.
**مفروضه** : فرض کړے شوې خبره.
**مفسد** : فساد کونکے.
**مفسر** : تفسیر کونکے، د قرآن کریم د آیتونو تشریح کونکے.
**مفصل** : په تفصیل سره.

واضح.

**مفعول** : هغه څوک چې کار ورسره وشي. هغه اسم چې په جمله کښې پرې څهٔ کار شوے وي.

**مفکر** : فکر کونکے، سوچ کونکے.

**مفکوره** : نظريه، خيال، فکر.

**مفلس** : غريب، محتاج، لاچاره.

**مفلوج** : فالج زده، فالج وهلے، ګوزني.

**مفهوم** : معني، مطلب، پوهيدنه، منشا، مدعا، اراده.

**مفيد** : فائده مند، فائده لرونکے، فائده من.

**مقابل** : مخامخ، دښمن، مخالف برابر، يو شان.

**مقابله** : مخامخ کيدنه، برابريدنه، مخالفت، جانچ پړتال، جګړه.

**مقاتله** : خونريزي، يو بل وژنه، قتل عام.

**مقاصد** : د مقصد جمع، مقصدونه،

**مقاله** : قول، ليکلے مضمون، د کتاب حصه، د معلوماتو مفصل مضمون.

**مقام** : د ايساريدو ځاے، مکان، د کوزيدو ځاے، محل وقوع، وخت، موسيقي کښې پرده، سرور، د وديدو ځاے

**مقبره** : قبرستان، هديره، اديره.

**مقبوضه** : هغه ځاے يا څيز چې قبضه پرې شوې وي.

**مقبول** : قبول شوے، منلے شوے

**مقتدا** : چې د چا پيروي کولے شي، امام پيشوا.

**مقتدر** : اقتدار لرونکے، زورور

**مقتدي** : اقتدا کونکے، د امام د روستو ودريدونکے، پيروي کونکے

**مقتل** : د وژلو ځاے، قتل ګاه

**مقتول** : قتل شوے، وژلے شوے، عاشق.
**مقدار** : اندازه، شمار، وزن، تول، ډيل ډول، تعداد، رقم، مجموعه، ميزان.
**مقدر** : وړومبے ليکلے شوے قسمت، تقدير. هغه لفظ چې عبارت کښې موجود نه وي او معنيٰ ئې اخستے شوے وي.
**مقدس** : پاک، سپيځلے، بې گناه، نيک، صالح،
**مقدم** : مخکښې شوے، وړومبے، مخکښې حصه، وچت، واجب، ضروري، لازم، قبضه، د نجوم په اصطلاح کښې د قمر پنځويشتم منزل.
**مقدمه** : د فوج هغه حصه چې مخکښې وليږلے شي. فيصله، ديباچه، سريزه، تمهيد، دعويٰ، استغاثه، وارِدات، معامله، جگړه.
**مقدور** : قوت، طاقت، حوصله، حيثيت، گنجائش، قابو، اختيار، وسيله، ذريعه، جرأت، دولت، خوشحالي، وس، زور، فرمان، سند، حکومت.
**مقرب**: خاص ملگرے، دوست.
**مقرر** : تقرير کونکے.
**مقسوم** : تقسيم شوے، هغه عدد چې تقسيم کړے شي. نصيب، حصه، تقدير.
**مقصد** : مطلب، مدعا، منشا، اراده.
**مقصود** : غرض، مراد، منشا، مدعا.
**مقطع** : د غزل هغه وروستے شعر چې شاعر پکښې خپل تخلص راولي.
**مقفيٰ** : قافيه دار.
**مقلد** : تقليد کونکے، مريد، نقال، پيښې کونکے، هغه مسلمان چې په څلورو امامانو کښې د يو پيروي کوي.
**مقناطيس** : يو قسم وسپنه چې وسپنه خان ته راکاږي.
**مقوله** : خبره، قول، متل،

ضرب المثل.
**مقهور** : مغلوب.
**مقید** : قید کړے، بندي، اسیر، پابند،
**مقیم** : ودریدونکے، قائم،
**مقیش** : اطلس، کناري، جالکی، جالي، پرقیدونکې فیته چې په لوپټو باندې کولے شي.
**مکار** : مکر کونکے، دوکه باز، فریبي.
**مکالمه** : زباني خبرې اترې، سوال جواب، ډرامه، د ډرامې د کردارونو خپلو کښې خبرې.
**مکان** : د وسیدو ځاے، کور، استانه.
**مکتب** : مدرسه، د لیک لوست ځاے.
**مکتوب** : خط، لیکلے، چیټی.
**مکر** : دوکه، فریب، بانه، بهانه.
**مکرر** : یو ځل بیا، دوباره، بیا بیا.
**مکروه** : قابل نفرت، هغه ثیزونه چې حرام خو نهٔ وي خو نهٔ کول ئ بهتر وي.
**مکمل** : کامل، پوره، تمام، ختم، بشپړ.
**مکنه** : برقع. هغه لوګے چې په ارتې کښې ئ د کانجن په منځ سورې کښې سلائي راتینګ کړے وي.
**مکهې** : هغه لوګے چې د مکنه په سر کښې لګیدلے وي.
**مکیز** : ناز، ادا، نخرې، قینج.
**مګ** : هغه سورے چې په کوټه کښې د لوګي وتلو دپاره جوړ کړے شوے وي. موري، روشن دان، دو کانچه. لویه پیالی.
**مګر** : د هندي شمسي کال د یوې میاشتې نامه چې د کتک نه پس او له پو نه مخکښې راځي.

**مګر** : خو، لیکن، لاکن.
**مګرمچ** : یو آبي ځناور.
**مګه** : د چایو څښلو لویه پیالۍ.
**مل** : انډیوال، ملګری، اشنا، مرسته کونکی.
**مُلا** : ښهٔ لیکونکی، عالم، فاضل، د جماعت امام، واعظ، زاهد، ناصح.
**ملا** : د کناټو او ځټ په منځ کښې د وجود حصه چې د ملا تیر پکښې غزیدلی وي.
**مُلا بانګ** : د سحر د بانګ وخت، بانګ مال.
**ملا بند** : هغه شی چې ملا وربانديږ تړلی شي. ملا بندی کمربند.
**ملاتړ** : مضبوطیا، ورسره مرسته، حمایتي، امداد کونکی، یار، دوست، کمربند.
**ملاچرګک** : یو قسم مارغهٔ، هدهد.
**ملاح** : مانګی، ناخدا، کشتی چلونکی.
**ملاحت** : مالګین توب، نمکیني.
**ملاحظه** : ملازه، معائنه، کتنه، مشاهده، غور، توجه، مروت، ریا، شرم.
**ملازم** : خادم، نوکر.
**ملازه** : ملاحظه، پاسداري، رعایت، مخ مروت، شرم.
**ملاقات** : یو بل سره لیدهٔ کاتهٔ، پیژندګلي، واقفیت، حیل ته د قیدی لیدو له تلل.
**ملال** : خفګان، خفه، غمژن.
**ملالی** : ښائسته ښځه، محبوبه، یاره.
**ملا ماتی** : یو قسم ټوپک چې په ملا راماتیږي، دوه نلیز چریدار هر هغه ټوپک چې د ډکولو په وخت راماتولی شي.
**ملامت** : ګرم، شرمنده، پیکه، کچه شوی.
**ملائکه** : فرشته، فرښته.
**ملائم** : پوست، نازک، نرم

و نازک، بردبار.
**ملبوس** : د اغوستلو جامې، په جامو کښې نغښتې.
**ملبه** : د ړنګ شوې دیوال وغیره خاورې ګټې او بلا بتر چې سره ګډوډ شي.
**ملت** : دین، مذهب، قوم.
**ملتوي** : ځنډیدلې، ځنډولې، التوا کښې پاتې شوې.
**مُلتې** : د غاړې دپاره یو مفرد حکیمي دارو چې خوند ئې خوږ وي، خوږه ولې، ملهټي.
**ملحد** : الحاد کونکې، بې دینه، کافر.
**ملحق** : لګیدلې، منسلک، یو ځاے.
**ملحوظ** : لحاظ ساتلې شوې، لحاظ کړے شوے. خیال کښې ساتلې
**ملخ** : تنوقا، یو قسم حشره چې په فصلونو کښې پیدا کیږي. ملخې.
**ملخوزه** : یو قسم ساک چې پخولې شي او دانې ئې د سترګو دارو کښې پکاریږي.
**ملزم** : چې پرې الزام لګیدلې وي. تورن.
**ملزوم** : لازم شوے، چې له یو بل نه جدا کیدے نۀ شي
**ملعون** : لعنتي، مردود، رټلې شوے.
**ملغوبه** : هغه څیزونه چې سره ګډ شوي وي. د مات ګوډ څیزونو امبار. ګند.
**ملک** : ملائکه، فرشته، فرښته.
**ملک** : د کلي نمبردار. د کلي مشر.
**ملک** : باچا، سلطان.
**ملک** : جانداد، مال اسباب.
**ملک** : وطن، سلطنت. راج.
**ملکوت** : د فرښتو جهان، عالم ارواح.
**ملکه** : خاصیت. د باچا ښځه.

**ملګري** : لاس امداد، مرستـه، ملاتړ، داډګيرنه، ملګرتيا.
**ملګرے** : انډيوال، دوست، اشنا، رفيق.
**ململ** : يو قسم سپينه د سپنسو نه جوړه کپړه.
**ملنډه** : ټوقه، مسخره، مذاق.
**ملنګ** : مذهبي ګدا، درويش، قلندر، بې پروا، مست فقير. سوالګر، سوال کونکے، د کوره وتلے، دنيا پريښودونکے، بيهوشه، مفلس.
**ملوټے** : هيجړا، بې غيرته، نرښځے، ملے، ملوټارے.
**ملوث** : راګير، ککړ، ګنده، ناپاک، پليت، لړلے.
**ملوک** : معشوق، محبوب، ښکلے، ښائسته، پاک سوچه. ملکان، بادشاهان.
**ملونه** : قيزې، واګې، لګام، جلب، جلو.
**ملهتي** : ملتې، خوړه ولې.
**ملهم** : مرهم، پټۍ، پهه.
**مليا** : مل، يو ځاے، واصل.
**مليريا** : سړه لړې تبه، موسمي تبه.
**مليشيا** : مليشا، نيم باقاعده فوځ، يو قسم کپړه چې رنګ ئې سليټي وي.
**مم** : د ماشومانو په ژبه ميوه، خوږ څيز، يا د مور تے.
**ممات** : مړ کيدنه، وفات، مرګ.
**ممالک** : د ملک جمع، ملکونه.
**ممانعت** : بنديز، بندش، منع کونه.
**ممانه** : يوه ونه او د هغې ميوه.
**ممتاز** : امتياز لرونکے، معزز، اعليٰ، افضل.
**مُمِد** : مدد کونکے.
**ممريز** : مهميز، د سوارۀ پوندې سره لګيدلے يو ميخکے چې اس له پرې پونده

ور کوي.
**ممکن** : د کیدو قابل، کیدونے، کیدونکے.
**مملاٸي** : مومیائي، ممائي، یو قسم دارو چې د ماتو هډوکو د رغولو دپاره استعمالولے شي.
**مملکت** : حکومت، بادشاهت.
**ممنوع** : منع شوے، ناجائز، د قانون خلاف.
**ممنون** : منت بار، احسان مند، شکر گزار.
**ممنه** : دائي، رضاعي مور.
**من** : خاطر، اراده، زړهٔ. تکل، مقصد. د مند مخفف چې د مالک معنيٰ ور کوي لکه شته من.
**من** : یو وزن چې مختلف ملکونو کښې مختلف دروندوالے لري، افغانستان کښې من اتهٔ پونډه (څلور سیره) او پاکستان کښې اتیا پونډه (څلویښت سیره) وي.
**منا** : جونګړه چې په ځنګل یا پټو کښې جوړه شوې وي.
**مناجات** : دعا، التجا، عرض، هغه نظم چې د خدائے تعریف او خپله عاجزي پکښې بیان شوے وي.
**مناره** : منار، لوړ ځائے، وچت مقام.
**مناسب** : موزون.
**مناسبت** : موزونیت، د موزون کیدو حالت.
**مناصب** : د منصب جمع، رتبې، عهدې.
**مناظره** : بحث مباحثه، تکرار، هغه علم چې پکښې د بحث قواعد بیان وي.
**منافع** : د منفعت جمع، ګټې، فائدې.
**منافق** : هغه څوک چې په زړهٔ ئې یوه وي او په خلهٔ بله. په اسلام کښې ظاهره مسلمان او په باطن کښې کافر.
**منافقت** : د منافق عمل، د منافق حالت.
**مناقشه** : بحث مباحثه،

تکرار، جګړه.
**منال** : دولت، جائداد،
**منبر** : په جماعت کښې هغه ځاے چې امام پرې کښېني او مسئلې کوي.
**منبع** : د اوبو راوتو ځاے، چینه، د اوبو خزانه، د وتو ځاے.
**منت** : احسان، نیکي، سلوک، شکریه، عاجزي، زاري، خوشامد.
**منتخب** : چوڼ شوے، غوره.
**منتر** : جادو، د وید څه حصه، ټونه، سحر، دم.
**منتشر** : اخوا دیخوا، متفرق، تتر بتر، تیت پرک.
**منتظر** : انتظار کونکے، په انتظار.
**منتظم** : انتظام کونکے.
**منتقل** : انتقال کونکے، د یو ځاے نه بل ځاے ته تلونکے.
**منجاور** : د خانقاه یا زیارت خادم، منجور، مجاور.
**منجوه** : کلی، غوټۍ، شګوفه.
**منجوړا** : راغوند شوے، بیکاره، هیجړا، نامرد.
**منجیله** : د منګي د لاندې د وښو جوړه یوه غونډه غونډې کړې چې جینکۍ ئې د اوبو راوړلو دپاره په سر ږدي.
**منځ** : مینځ، میان، وسط، مرکز.
**منځګړے** : دریم ګړے، منصف، ثالث.
**منځمے** : منځنے، وسطي، مرکزي.
**منځنے** : وګورئ منځمے.
**منځومانه** : منځ کښې، درمیان کښې، بې طرفه، اعتدال.
**منحرف** : باغي، واپس ګرځیدونکے، ستنیدونکے.
**منحصر** : مشروط، موقوف، مطابق، متعلق.
**منحوس** : سپیرهٔ، بدبخت، بدنصیب، مکروه، خراب.

**مند** : یوه لاحقه چې د مالک معنې ورکوي لکه دولت مند.
**مندارو** : وګورئ مندانو.
**مندانو** : ګنده بوټي، یو بوټي چې په غنمو او شفتلو کښې کیږي. د ماستو شاربلو دپاره د لرګي جوړه یوه آله.
**مندر** : د هندوانو د عبادت ځاې،
**مُندرې** : د غوږونو یو کالي.
**مندړ** : یو مضبوط غټ لرګے چې نور لرګي پرې دپاسه ږدي او جاله پرې جوړوي.
**مندوب** : هغه څوک چې د څۀ کار دپاره نمائنده ولیږلے شي.
**مندیل** : پټکے، لونګی، دستار.
**منډاؤ** : دالان، برنډه، دهلیز.
**منډل** : په زور دننه کول، داخلول، ننه باسل، چاپې کول.
**منډو** : دالان، څپر، هغه کوټګی چې اخلے پخلے پکښې کولے شي.
**منډه** : دؤ، تیز تګ.
**منډهی** : د تجارت ځاے، منډې.
**منډې ترړې** : دو رادؤ، منډې رامنډې، تګ راتګ، کوشش، سعي، بې فائدې کوشش.
**منزل** : هغه ځاے چې ورته انسان رسیدل غواړي، مقصد.
**منزه** : پاک، له عیبونو نه پاک، صفا.
**منږک** : مږک، موږک، د مږې مذکر.
**منږکورے** : مږکورے، د منږک یا مږې بچے،
**منسوب** : نسبت لرونکے، متعلق. چنغول.
**منسوخ** : رد شوے، نسخ شوے، ختم شوے.
**منشا** : د پیدا کیدو ځاے.

وجـه، سبب، اراده، مطلب، مقصد.

**منشور** : شاهي حكم، پروانه، د چا سياسي جماعت اعلان، فرمان، اعلان، هغه شكل چې سرونه ئې يو شان يو هومره او يو بل سره متوازي او ډيرې ضلعې لرونكے وي او اړخونه ئې متوازي الاضلاع وي.

**منشي** : مرزا، ميرزا، بابو، كلرك، سكتر،

**منشيات** : نشه كونكي څيزونه، له نشې په عربي طريقه جوړ شوے لفظ.

**منبته** : نذر، منلے څيز، نذرانه، نياز.

**منصب** : عهده، مرتبه، رتبه.

**منصبدار** : منصب لرونكے.

**منصف** : د ديواني عدالت يو جج، انصاف كونكے، عادل، د انصاف خاوند.

**منصوب** : ودريدلے، نيغ، قائم. هغه تورے چې پرې زبر وي.

**منطق** : هغه علم چې په قطعي دليلونو حق حق او ناحقه ناحقه ثابتوي. دنيا. فصاحت.

**منطقه** : د ملا ترلو كپړه، هغه فرضي خط چې د زمكې نه چاپيره لكه د پټكي راتاؤ دے. علاقه.

**منظر** : د نظر ځاے، نظاره، د سيل ځاے، مخ، شكل، د نظر حد، كړكى، سورے، لوړ مكان.

**منظم** : په تار ګنډلے، موزون كلام، هغه څيز چې په انتظام سره وي.

**منظور** : منلے شوے، ليدلے شوے، خوښ كړے شوے، قبول شوے.

**منظوم** : منسلك، ترلے، نظم كړے، په اشعارو كښې وئيلے.

**منع** : چې اجازت ئې نه وي.

چې قدغن پرې لګېدلې وي.
**منعقد** : مقرر شوی، قائم شوی.
**منفي** : ایستلې شوی، تفریق کړی شوی.
**منقار** : مښوکه.
**منقسم** : ویشلی، ویشلې شوی.
**منقوط** : نقطې لرونکې.
**منقول** : نقل شوی، ذکر شوی، له یو ځای نه بل ځای ته وړلې شوی.
**منکت** : د من په حساب، د من په حساب نرخ.
**منکتي** : مزدور، دهقان چې د منکت په حساب مزدوري ورکولې شي.
**منکرنکیر** : دوه فرښتې چې په قبر کښې د مرده نه سوال جواب کوي، انکیر منکیر.
**منګ** : په کمره یا کوټه کښې د لوګي وتو موری، د کمرې ارته حصه چې اسمان ترې ښکاري.
**منګ** : قد، عمر، قامت، غوندې، مانند، مشابهت، یو شان والی، موده.
**منګځ** : ګومنز، ږمنځ، هغه آله چې سر پرې ږمنځولې شي.
**منګر** : د یوې هندي میاشتې نوم چې د پو له میاشتې مخکښې او د کتک نه پس وي.
**منګړی** : د مار یو قسم.
**مُنګن** : کټمل، منګړ، مونګړ، مونګن.
**منګور** : د سپي بچي (کوترې) چې سترګې ئې لا نه وي غړولې. مار، منګړی.
**منګیر** : بوخت، لګیا،
**منګی** : ګړی، د ټيکري یا مسینو غونډ موند غړې لرونکې لوښې چې عموماً پکښې اوبه ساتلې شي.
**منل** : ایمان راوړل، منظورول، قبلول، اقرار کول،

احسان مند کیدل، تسلیمول.

**من منیا :** خپله رائ جوړونه، خپله مرضي کونه.

**مننه :** تشکر، شکریه، مهرباني، منل.

**منوال :** دستور، طریقه.

**منور :** نوراني، روښانه، پرقیدونکے.

**مني :** هغه سپینې لاړژنې اوبهٔ چې د انزال په وخت خارجیږي. نطفه، مایه، مردي.

**منیر :** تابان، روڼ، رنا ورکونکے.

**منه :** سیب، سیو، یوه میوه.

**مُو :** ویښتهٔ، زلفې. روغن، غوړي، ډل، ویلې شوې وازده.

**مواټ :** غاړه، مورکه، نغرو ته مخامخ یا په ځنګ دیوال.

**مواجب :** مزدوري، تنخواګاني، مشاهرې، هغه رقم چې د حکومت له خوا قبائلي مشرانو ته ورکولے شي.

**مواد :** د ماده جمع. پیپ، ګندګي اسباب، سامان، دلائل، وجوهات.

**مواس :** موچی، چغلي کونکے، خبرغل، غماز، شیطان، رفتار، تګ، مزل، پناه.

**مواصلات :** د نقل و حمل ذرائع.

**موافق :** یو شان، برابر، مناسب، په شان، مطابق.

**مواقع :** د موقع جمع، موقعې، ځایونه.

**موت :** مرګ، قضا، اجل.

**موتي :** ملغلره، مرغلره.

**موټ :** د روغ تابع مهمل لکه روغ موټ. یو دال چې بوټے ئ د ګیاه د پاره استعمالیږي.

**موټر :** یوه میشني سورلی چې په پټرولو چلیږي، مشین چلونکي آله.

**موټی :** دیوې لاسکے، لاسکے، ډینډت، ډبلی،

**موتی** : د چاړهٔ یا خنجر دسته، قبضه، لاسکے. د لاس د ښنخهٔ وارو ګوتو د راغونډیدو حالت.

**موج** : چپه، ځپه، جوش، ولوله، خیال وهم، شوق، مستي، سرور.

**موجد** : ایجاد کونکے، نوے څیز راایستونکے.

**موجود** : حاضر، په وجود کېښې، هست، شتهٔ.

**موچنه** : څپلی، پیزار، د څپلو یو قسم.

**موخه** : د تیر اندازی یوه مخصوصه لوبه. هدف، ګچه. هغه ځنه چې د غشي ویشتو دپاره ئښې لاندې لګولے شي.

**موده** : زمانه، وخت، نیټه، ډیر وخت.

**موډ** : طبیعت، چرت، طبع.

**موذي** : تکلیف رسونکے، ضررې، نقصاني.

**مور** : د پلار ښځه، مادر.

**موران** : د یو کالي نوم، د مهر جمع.

**مورته** : هیجړا، ایجړا، جینی خلبے، جینی خولے، لختی.

**مورث** : وراثت پریښودونکے.

**مورچه** : مورچل، سنګړه، څوکی، خندق، د پناه ځاے چې د جنګ په وخت جوړولے شي.

**مورخ** : تاریخ لیکونکے. تاریخ نګار.

**مورد** : د واردیدو ځاے، جینه، سرای.

**مورکی** : د مور اسم تصغیر، مور ته د مینې د خطاب کلمه.

**مورګه** : غاړه، څنډه، ژی، حاشیه، د سرحد لیکه.

**موروثي** : د پلار نیکهٔ، جدي، پشت په پشت.

**موره** : کنګل، یخ، چکه شوے، مایه، ټینګ.

**موری** : د کندو هغه سورے چې دانې پرې راوباسي. په

دیوال کښې سوري، ناله، لښتې، د پول خلۀ.

**موړ** : په ګېډه ډک، مطمئن، دولت مند، مالدار.

**موړه** : په بدن باندې د وهلو ټکولو نښه او پړسوب. د اوبو د مخ نیوي په غرض جوړه کړې شوې وچته ډېه. نس خوږې، د ګېډې درد، اړ، مروړ، پیچ، منجیله بالښت، د دیوال سرماتې، له ډورمو جوړه کرسي.

**موزون** : هغه شعر چې وزن لري. خوبښ، مقبول، لائق، مناسب، درست.

**موزه** : جرابه، چکمه، د څرمنې جرابه.

**موسم** : د کال څلورو برخو کښې یوه برخه. فصل، وخت.

**موسیقار** : د موسیقی استاذ، د موسیقي ماهر.

**موسیقي** : د راګ علم، د سرود علم.

**موسیدل** : مسکیدل، خندیدل.

**موشاده** : مخ، شکل، څیره، بشره، مشاده، مجازاً خراب شکل.

**موصلي** : د مصلي مفغن، شاخیل، خاکروب.مونځ ګزار.

**موصوف** : ستائیلې،

**موصول** : وصول کړې شوې.

**موضع** : علاقه، کلې، بانډه.

**موضوع** : مضمون، بامعنی لفظ، اصل شې.

**موقع** : د جیل دیوال سره یو مقام چې د جیل ملازم پرې د څوکی دپاره ولاړ وي. داؤ، چل، وخت، محل.

**موقعه** : داؤ، چل،

**موقف** : پوزیشن، د ودریدو ځاې.

**موقوف** : ودرولې، ملتوي، برخاست شوې. وقف شوې،

**مول** : حقیقت، اصل، بنیاد،

تاوان، مال، جائداد.
**مولف** : تالیف کونکے، جمع کونکے، مختلفو کتابونو نه کتاب لیکونکے.
**مولود** : هغه مجلس یا غونډه چې حضور پاک صلي الله علیه وسلم د پیدائش په باره کښې پکښې تقریرونه کیږي. زیږیدلے، پیدا شوے ماشوم، د پیدا کیدو ورځ.
**مولوي** : مولانا، دیني عالم، اخون.
**مولی** : یوه مشهوره سبزي چې کچه او پخه دواړو حالتونو کښې خوړے شي.
مولے : د لنګرۍ مولے چې لنګرۍ یا چتهو کښې پرې څه ټکوي.
**موم** : هغه نرمه او غوړه ماده چې د شاتو له ګبینه وځي.
**موم جامه** : هغه مومي کپړه چې اوبه پرې اثر نه کوي.
**مومن** : د الله تعالیٰ یو صفتي نوم. ایمان راوړونکے،
مسلمان،
**مونج** : یو قسم بوټے چې رسۍ ترې جوړولے شي. منج.
**مونځ** : نمونځ، د خدائے پاک عبادت.
**موندل** : حاصلول، ګټل، میندل، پیدا کول.
**مونډ** : اصل، بنیاد. جرړه، بیخ، ویخ، مونډی.
**موږ** : جمع متکلم. حالت فاعلي.
**مونس** : ملګرے، دوست، یار.
**موهوم** : وهمي، خیالي، فرضي، قیاسي.
**موید** : مدد کونکے، قوت ورکونکے. تائید کونکے.
**مویز** : کشمش، انګور، میوه، وسکې، منقه.
**مویشي** : څاروي، غوا، میښې، خرونه وغیره.
**مهاجر** : هجرت کونکے، خپل وطن پریښودونکے.
**مُهار** : د اوښ په پوزه کښې

اچولے شوے پیزوان.
**مهال** : موقع، محل، وخت، ګران.
**مهاوت** : هاتي وان، فیلبان، د هاتیانو ساتونکے.
**مهتاب** : سپوږمی، قمر،
**مهتر** : مشر، سردار، د ټولو لوے. حاکروب ساخین.
**مهتمم** : اهتمام کونکے، سردار. منتظم.
**مهجور** : فراق وهلے، چې هجران پرې راغلے وي. جدا شوے.
**مهدي** : له هدایت موندو نه پس هدایت ورکونکے.
**مهذب** : تهذیب یافته، متمدن.
**مَهر** : هغه مال یا رقم چې یو مسلمان خپلې ښځې له د نکاح په وخت د ورکولو اقرار وکړي، کابین
**مِهر** : وفا، مینه، محبت.
**مُهر** : ټاپه، ستیمپ.
**مهرباني** : ښهٔ، د محبت سلوک، احسان.
**مهلت** : وخت ورکونه، وخت، وقفه.
**مهلک** : هلاک کونکے، مړ کونکے.
**مهم** : لوے کار، درونه کار، مشکل کار، جنګ، جګړه،
**مهمان** : میلمه، المه.
**مهمل** : بیکاره، پریښودے، کم عقل، فضول، بیهوده، بې معنې، بې مطلبه، سست، کمزورے، هغه تورے چې معنيٰ ئ نهٔ وي، بې معنې لفظ.
**مهیا** : تیار، اماده، حاضر.
**مهیب** : خوفناک، هیبتناک.
**مهینه** : د موسم په اغاز کښې کرلے کیدونکے فصل، د پسینه ضد.
**مهینه** : ماهانه، مواجب، وظیفه، هواره، نرمه، میاشت.
**مهې** : د دالو یوقسم.
**مهے** : کب، ماهے.
**مئ** : د انګریزي کال پنځمه میاشت.

**میاشت** : هلال، نوې سپوږمۍ. د سپوږمۍ میعاد، د کال له دولسو برخو نه یوه برخه.
**میان** : مشر سړے د خنو خاندانونو د افرادو لقب، جناب.
**میان** : ملا، دوران. نیام، تیکے، وسط، منځ.
**میاندې** : د مور جمع. میندې.
**میانه** : د ذيِ القعده میاشت، د هجري قمريِ کال یوولسمه میاشت،
**میت** : جنازه.
**میتهر** : د ځنې ځیزونو د میچ کولو آله لکه د رکشې، بجلۍ یا ګیس میتهر.
**میثاق** : قول، اقرار، وعده، معاهده، پیمان.
**میر** : پیشوا، هادی. د سیدانو اعزازيِ لقب. سردار، امیر، سالار، مشر، رهنما
**میرات** : بې خویه* بې اولاده، چې څوک ترې پاتې نهٔ شي.
**میراته** : د چا د مرګ نه پس پاتې شوے مال دولت، جائداد، ترکه، میراث.
**میراته** : د پښتنو د سزا یوه طریقه چې یو کلے په بل کلي یا خاندان حمله وکړي او ټول نارینه ئې ووژني.
**میراث** : وراثت، ورثه، ترکه.
**میراثه** : هغه مال اسباب چې د مړيِ نه خپلو وارثانو ته پاتې شي.
**میرخمن** : میرځے، دشمن، دښمن.
**میرخمني** : دشمني، عداوت، تربګني.
**میره** : حلقه، دائره.
**میري** : سرداري، مشري، حاکمي.
**میزان** : تله، جمع، مجموعه. د اسمان اووم برج. د شمسي کال اوومه

میاشت.

**میزرے** : یو بوټے چې د پاڼو نه ئې پوزې مصلې او بوڼ جوړولے شي.

**میسر** : هغه څۀ چې په اسانه وموندے شي. اسانول، حاصل، دستیاب، اسان کړے شوے.

**میعاد** : مقرر وخت، د وعدې وخت.

**میعادي تبه** : لویه تبه، محرقه.

**میل** : هغه کاڼے چې د پارسنګ دپاره لګولے شوے وي. د ۱۷۶۰ ګزو فاصله،

**میلاد** : د پیدا کیدو ځاے، د پیدائش وخت، پیدائش.

**مینځ** : منځ، وسط، درمیان.

**مینځګړے** : منځي ګړے، دریم ګړے، ثالث.

**مینځه ګوته** : د لاس د وزیرې ګوتې او مسواکې ګوتې تر منځ ګوته.

**مینه** : خوښي، محبت، عشق، دوستي، خوږ والے، الفت.

**مئینیدل** : عاشق کیدل، شیدا کیدل، مئین کیدل.

**میو** : د پیشو اواز.

**مې** : ما، لکه ورته مې ووې وغیره.

**میچ** : حریف، مقابل، جواب، همسر. مقابله، د لوبې مقابله. معیار، ناپ، کچ، پیمانه، اندازه.

**میچن** : میچنه، د دانو اوړولو دستي مشین، د لاندې باندې کاڼو تر منځه د دانو اوړولو یوه پخوانۍ آله.

**میچول** : اندازه کول، پیمانه کول، میچ کول، ناپ کول.

**میخ** : د وسپنې جوړ کیل، کونټې، جغنلۍ،

**میخانه** : میکده، شراب خانه، چرته چې شراب څښلے شي.

**میخزین** : میګزین، د اسلحې کیښودو ځاے.

**میخکے** : د پوزې یو کالے. یو قسم پسول چې زنانه ئ په پوزه کښې اچوي.
**میخوار** : شراب خور، شرابي،
**میدان** : ډاګه، ځاے، ډاګ، سمه، ډګر.
**میرګي** : مرګي یوه دماغي بیماري چې سړے پکښې بیهوشه کیږي او له خلې نه ئ ځګونه ځي.
**میرمن** : بیګم، بي بي، د کور مالکه. وادهٔ کړې ښځه.
**میرنے** : ناسکه،
**میره** : دشته، بیابان، لویه ډاګه، لوے میدان. ناسکه مور، غیر حقیقي مور،
**میړانه** : مړانه، بهادري، توره، نرتوب.
**میړنے** : مړانه کونکے، دلاور، بهادر، تورزن.
**میړوښه** : وادهٔ شوې ښځه،
**میړهٔ** : خاوند، مالک، څښتن، آقا، مارځ.
**میز** : د لرګي هواره تخته چې په پښو ولاړه وي او د لیکلو خوراک وغیره دپاره استعمالیږي.
**میزر** : پړونے، نقاب، اوړنے، لوپټه، څادر.
**میږتون** : د میږو کور، د میږو سوړه. هغه ښانک چې اوبهٔ پکښې واچولے شي او منځ کښې ئ د لوښي ایښودلو ځاے جوړ وي په دې لوښي کښې پروت څیز له میږو بچ ساتلے شي.
**میږیمه** : هغه ګډه چې وار ئ راوړے وي.
**میږے** : یوه وړه حشره چې په سوړو کښې وسیږي او مختلف قسمونه لري.
**میشت** : مقیم، اباد، ساکن، وسیدونکے.
**میښین** : د میښې سره منسوب.
**میکش** : شرابخور، شرابي.
**میل** : رغبت، توجه،

خواهش، ښکته، رعایت، خاطر.
**میلان** : رغبت، خواهش.
**میلمانهٔ** : د میلمه جمع.
**میلمستیا** : ضیافت، مهماني، مهمان نوازي کونه، **دعوت**.
**میلو** : یږ، یو تور رنګې ځنګلي ځناور.
**میله** : ګڼه ګونه، ازدهام، سیل او تماشې دپاره د خلقو راجمع کیدنه، نمائش.
**میمنه** : د ښي طرف، د ښي طرف فوځ.
**میمون** : نیک، خوش نصیب.
**مینچه** : له اوړو جوړه د چینجي په شان خوارهٔ چې پکښې خوارهٔ او پیٔ اچولې شي.
**مینه** : د وسیدو ځاې، کور، مکان، میله، استوګه، سیمه، وطن.
**میوه** : د ونې له حاصلاتو هغه څهٔ چې خوړلې شي. ثمر، نتیجه.
**می** : د دالو یو قسم، شنې می
**مے** : مخ، لحاظ، برکت، سبب. شراب، باده.
**مے ناب** : خالص او سوچه شراب.

**ن :** (نون) د پښتو شپږ دیرشم حرف. د ابجدو په حساب ی شمیر پنځوس (۵۰) دے.

**نا :** د نفي علامت لکه ناجوړ، نا امید، نابلد، وغیره.

**نا اشنا :** نابلد، نا واقف. عجیبه، حیرانونکے.

**نا امید :** چې امید ئ نهٔ وي. مایوس.

**نا اهل :** نالائق، ناقابل،چي اهل نهٔ وي.

**ناباري :** هغه خاروے چې د بار وړلو عادت نهٔ وي.

**نابالغ :** چې بالغ نهٔ وي.

**نابلد :** نا اشنا، نا واقف.

**نابود :** بې فائدې، عبث، بیکاره.

**نابینا :** هغه څوک چې نظر ئ نهٔ لکي، ړوند.

**ناپاک :** پلیت، چې پاک نهٔ وي.

**ناپوه :** چې پوهیږي نه، جاهل، ماشوم، نابالغ.

**ناپیژندګلو :** نا اشنا، هغه چې پیژندلے نهٔ شي.

**ناتار :** زیاتے، ظلم، جبر. په ماستو کښې لـه ماتې کړے شوې روتۍ نه جوړ خوراک. یرغل، چپاؤ.

**ناترسه :** ترس نهٔ کونکے، بې رحمه.

**ناتکی :** یواځې، بې جوړې، طاق د جفت او تکی متضاد.

**ناتوان :** هغه څوک چې توان نهٔ لري، کمزورے.

**ناجانه :** ناجانه، بې خبره، ناواقف، ناخبره.

**ناجائز :** چې جائز نهٔ وي، نامناسب.

**ناجوړ :** چې جوړ نهٔ وي، ناساز، بیمار.

**ناجوړتیا :** بیماري، ناروغي.

**ناجي :** نجات موندونکے، خلاصے موندونکے،

**ناچ :** نڅا، ګډا، رقص، ډانس،

**ناچار :** عاجز، معذور،

مـجبور، بيوسـه، محتاج، خوار، غريب، ناچاره.
**ناچاري** : لاچاري، عاجزي، معذوري، مجبوري، بيوسي، غربت.
**ناچاق** : ناجوړه، بيمار، بې خونده، بدمزه، کمزورے، مانده، تپ.
**ناڅاپه** : سمدستي، ناګهانه، ناڅاپي.
**ناحق** : د حق خلاف. بې مناسبه، نامناسب.
**ناخدا** : کشتي چلونکے، مانګے.
**ناخونه** : د انګورو په ځيلي کښې نرے تار. د سترګو يوه بيماري.
**نادار** : غريب، عاجز، نيستمند، لاچار.
**نادان** : ناپوه، کم عقل، ساده.
**نادر** : ناياب، کمياب، ښۀ، غوره، عجيبه.
**نادم** : شرمنده، ستومان، پښيمان.
**ناديده** : نا ليدلے، وړ ستر ګے، اروا وړے، چې څۀ ئ په سترګو نۀ وي ليدلے.
**ناراض** : خفه، مرور، ډډ، نارضا.
**نارضا** : چې رضا نۀ وي، ناراض.
**نارنج** : د سنګترې د خاندان يو بوټے او د هغې ميوه.
**نارو** : يو قسم خطرناکه بيماري چې عام طور سره د ناولو اوبو څښلو نه پيدا کيږي.
**ناروا** : چې روا نۀ وي، ناجائز.
**ناروغتيا** : بيماري، ناجوړتيا، ناسازي.
**ناره** : نعره، غږ، چغه، اواز.
**نارينه** : نر، سړے، مرد، بهادر، تکړه، توررزن.
**نارې** : چغې سورې، نعرې، غږونه.
**ناړام** : ضدي، سرکش،

اړيمار، نارامه.

**نارل** : د خره هينګيدل، د خرهٔ بورېدل، نړل.

**نارې** : غټه رسى. غټ او اوږد پړے.

**ناز** : نخره، غمزه. مينه محبت.

**نازبين** : په ناز لوے شوے، د ناز کولو بلد، نيازبين، ناز پرور.

**نازغوره** : يو قسم خطرناکه دانه چې بنده ترې مري. خوراکي ننکى. بې ترسه، ظالمه.

**نازک** : کچه، باريک، کمزورے، لطيف. پوست، نرم، ګران، مشکل، تيز، تند، خطرناک.

**نازل** : راکوزيدونکے، ښکته راتلونکے، راکوز شوے، له بره نه ښکته راليږلے شوے، وارد شوے.

**نازلين** : نيازبين، نازبين، ناز کونکے، ښکلے، ښائسته، محبوب، معشوق.

**ناساز** : ناجوړ، بيمار، رنځور، ناموافق، مخالف، ناموزون.

**ناسازګار** : هغه چې راس نهٔ وي. غير موافق، مخالف، ناموزون.

**ناسازه** : ناکړده، زياتے، ناروا. د ناساز مؤنث. ورانے، مخالفت، ناسازي.

**ناست** : په ګوډو يا د جسم په وروستى حصه د ارام دپاره خاے نيونکے. په زمکه يا ونه د پنجو په سر خاے نيونکے. دست بردار، د چا مقابله پريښودونکے، محتاج، حاجتمند. د زمکي څهٔ خاے ديوال وغيره له خپله حده په زمکه کښې ننوتے، ښخ شوے.

**ناسته** : ناستے، د کښيناستو حالت، تعلق، نشست، جلسه. ناسته پاسته، اودس ماتے، رفع حاجت.

**ناسته پاسته** : وګورئ ناست پاست. ناستې پاستې، تعلق، ناسته ولاړه، د ناستې طريقه.
**ناسکه** : د سکه يا حقيقي ضد. د دويمې مور يا دويم پلار اولاد. د دويمې ښځې يا دويم خاوند اولاد،
**ناسوت** : عام اجسام يا جسمونه، دنيا، خرګند، عبادت، شريعت.
**ناسور** : نۀ جوړيدونکے زخم.
**ناسونت** : هغه څوک چې د سنت مطابق ترې خوته نۀ وي پريکړے شوے، شوپا، جاهل، شوپړ.
**ناشپاتې** : د ناک او تانګو د قسم يوه ونه او د هغې ميوه.
**ناشته** : د سحر خوراک، د ورځې وړومبے خوراک.
**ناشر** : کتابونه چاپ کونکے او خرڅونکے، خورونکے، د اشاعت کار کونکے.
**ناشکره** : شکر نۀ کونکے، ناسپاس،
**ناشولته** : فضول خبره، بيکاره خبره، ناشوړته، بې تهذيبه خبره، ناشولتې. بې تهذيبه، شاړ شپړ، جاهل،
**ناشونے** : نۀ کيدونکے، ناممکن، ناکړدونے.
**ناشيشته** : نشاسته، د غنمو د مغز نه جوړ کړے شوي ست، ناششته.
**ناشے** : يو قسم ترخه دوړه چې په سپېږمو راښکلے شي.
**ناښاد** : هغه چې خوشحال نۀ وي. غمزده، نامراد، غم زپلے، خفه، ناخوښ.
**ناصح** : نصيحت کونکے، صلاح کار، واعظ.
**ناظر** : محافظ، نظر کونکے، کتونکے، نګهبان، د دفتر محافظ، منيجر. ايجړا، هيجړا، خواجه سرا.
**ناظره** : د ليدو قوت. قرآن شريف لوستنه.

**ناظم** : نظم کونکے، د کار مشر. سیکرټري، گورنر.

**ناعلاج** : چې علاج ئې نهٔ کیږي. نهٔ رغیدونکے، ناشونے، ناممکن.

**ناغه** : هغه جرمانه چې د قصور یا ملامتیا کولو په وجه له چا وصولولے شي. د باندې ماتولو په جرم کښې وصولونکې جرمانه. هغه تخم چې زرغون نهٔ شي او په زمکه کښې دننه پاتې شي. د سترگو سره نزدې رگونه چې د غصې یا ډیرې ژړا په وجه څرگندیږي. چوټي، تعطیل. نامناسب، غلط، ناموزون.

**ناف** : د گیډې نوم، نوم، منځ، مرکز.

**نافذ** : جاري کیدونکے، صادریدونکے.

**نافع** : نفع ورکونکے، گټه ور، فائده من.

**نافله** : هغه عبادت چې واجب نهٔ وي بلکې د ثواب دپاره وکړے شي، نفل.

**نافه** : د مشکو تیلی، هغه خوشبویه وینه چې د یو قسم هوسی د نامهٔ سره جخته تیلی کښې جمع شوې وي.

**ناقرار** : قرار نهٔ لرونکے، بې قراره، ناقلاره.

**ناقص** : نیمگړے، نامکمل، نقص لرونکے، عیب لرونکے، عیب دار. ناخالص، جوته.

**ناقل** : نقل کونکے، روایت بیانونکے، راوي.

**ناقلار** : وگورئ ناقرار.

**ناقوس** : هغه گوگو یا بیگل چې هندوان ئې د خپل عبادت په وخت غږوي.

**ناک** : د ناشپاتی د قسم یوه ونه او د هغې میوه. ټانگو. ناکه.

**ناک** : هغه لاحقه چې د اسم سره په لگیدو صفتي معنې پیدا کوي لکه درد نه دردناک غم نه غمناک وغیره.

**ناکاره** : کار نهٔ کونکے، وران، خراب، بدکار، بد اخلاق.
**ناکام** : ناکامیاب، مقصد نهٔ حاصلونکے، مجبوري، بیوسي. خامخا کیدونکے کار، ناګزیر کار، خواري، محنت.
**ناکامي** : مقصد نهٔ حاصلیدنه، ناکامیابي، بیوسي، مجبوري.
**ناکړدې** : ناکردې، ناکرده، زیاتے، ظلم، شندې،
**ناکه** : د ولې یا نهر د اوبو جدا کیدو ځاے. د نهر یا ولې نه د جدا کیدونکې لښتي خلهٔ، ناقه.
**ناګمانه** : ناګاه، په بې خبرې کښې، ناڅاپه، نا ګومانه.
**ناګوار** : ناخوښ، له طبعې چپ، د طبیعت خلاف، مکروه، نهٔ هضمیدونکے خوراک،
**ناګهانه** : ناڅاپه، ناګاه، په بې خیالی سره.
**نال** : کرنه، بوټے ښخونه. کرلے شوے، ښخ کړے شوے، نهال.
**نال** : دْ جوارې هغه پیسې چې د پر مالک ئې له جوارګرو وصولوې.
**نالائق** : نهٔ پوهیدونکے، ناقابل، جاهل، کمینه، رذیل.
**نالت** : سر کوزے، خنزیر، سور، یو مردار ځناور، بد ځناور.
**نالول** : کرل، بوټے ښخول. د اس یا بل ځناور په نو کونو نالونه ټک وهل، نعلول، زخمي کول، ژوبلول.
**ناله** : د غرهٔ نه د رابهیدونکو اوبو لار، لښتے.
**نالی** : د باران یا ګنده اوبو د ویستو دپاره جوړه کړے شوې لار، وینې. د لښتي په شکل کنستے شوې ګنده نیالی، برستن، نهالی،
**نام** : نوم، نامه. د څهٔ څیز، بنیادم، ځناور، ځاے وغیره د

پیژندګلو دپاره استعمال کیدونکے لفظ یا الفاظ. اسم. شهرت، عزت، ذات.

**نامتو** : په ښهٔ والي مشهور، نامدار، نامور،

**نامحرم** : پردے (سړے) چې زنانه له ترې پرده کول واجب وي.

**نامدار** : نامور، نامتو، په ښهٔ والي مشهور. نامي.

**نامرد** : مردانه قوت نهٔ لرونکے. ایجړا، هیجړا، بې غیرته، بې حیا.

**نامزد** : موسوم، منسوب، ترلے. ټاکلے، مقرر.

**نامزدګي** : منسوبونه، ترړنه، موسومونه، ټاکنه، مقررونه.

**نامعقول** : د عقل سره اختلاف لرونکے، د عقل سره سمون نهٔ خوړونکے.

**نامعلوم** : د معلوم ضد، هغه چې درک ئې نهٔ لګي، ورک،

**نامکمل** : هغه چې سر ته نهٔ وي رسیدلے، نیمګړے.

**نامناسب** : چې مناسب نهٔ وي، ناموزون، بې ځایه، سمون نهٔ خوړونکے.

**ناموس** : عزت، ابرو، ننګ، غیرت، شرم، پت.

**نام وننګ** : ننګ ناموس، غیرت، شرم و حیا، عزت.

**نامه** : نوم، چیټهی، خط، کتاب، رجسټر.

**نامه نګار** : خط نویس، د اخبار نمائنده.

**نان** : ډوډی، روټی، ټیکاله.

**نانبائي** : روټی پخونکے، د روټو د تنارهٔ کار کونکے، نان پز، نانوائي،

**نان نفقه** : روزي، رزق، انساني خوراکه. د کور خرچه، د بال بچ خرچه، د کور ماته ګوډه.

**ناؤ** : د غرهٔ په منځ کښې لښتے، ناله، وټ، تنګے.

**ناوخته** : له مقرره وخت نه وروستو کیدنه.

**ناوزګار** : د وزګار ضد، په

څهٔ کار کښې بوخت، مشغول، مصروف، اخته.
**نـاوک :** غشـے، تیـر، خدنګ.
**نـاولے :** ګـنـده، خیـرن، نـاپـاک. بـدشکله، بدرنګ، بدعمله، بدکرداره.
**ناوه :** د کوټې د چت نه د اوبـو غـورځـیدو دپاره جوړه کړے شوې نالی چې عام طور سـره د ټیـم یا لرګي نه جوړه وي. پـرنـالـه. د نهر یا ژورې کـنـدې دپاسه تیر کړے شوے لښتے.
**نـاویـات :** ګـران، خوږ، عـزیـز. په نازونو لوے شوے، نیازبین. نایاب، کمیاب.
**ناوې :** وديـدونـکې جینی، عــروس. تــازه وادهٔ شوې ښځه.
**نائب :** د چـا کـار د هـغهٔ په غیـر مـوجودګی کښې سر ته رسونکے. مددګار، قائم مقام.
**نـــائک :** نیک، خـــان، مالک.
**نائم :** ودهٔ کیدونکے، خوب کونکے.
**نائي :** د خـلـقو حجامتونه او ویښتهٔ جوړونکے. حجام.
**نائینه :** د نائي مؤنث.
**نبـــات :** بــوټــے، واښـــهٔ، تــرکــاري، سبــزي، یو قسم خواږهٔ، مصري، قند.
**نباتــات :** د نبــات جـمع، واښهٔ، سبزی.
**نبض :** د مـرونـد هغه رګ د کوم له حرکته چې د انسان د صـحـت او مـرض د حال پته لګولے شي.
**نبوت :** د الله تـعـالـیٰ احکام رسـونـه، پیغمبري، رسالت، د نبي جوړیدو حالت.
**نبي :** د الله تـعـالـیٰ پیـغام رسـونـکے، پیغمبر چې پخپله صـاحـب شـریـعت نـهٔ وي. د خدائے پاک استاځے.
**نپټ :** بیـکـاره، فـضول، بې فـائـدې. نـامناسب، ناموزون.

سمون نهٔ خوړونکے.
**نـت :** نتـکـی، د پـوزې یـو کالے.
**نتـائج :** د نتیجـه جـمع. نتیجې.
**نتکی :** وړوکے نت یا نته.
**نته :** د پوزې یو پسول، نت.
د اوبش پـه سپیـړمو کښې اچولے شوے هغه وړوکے لرګے چې مهار ورپورې تړلے وي.
**نتیـجه :** حـاصـل، ماحصل، انـجـام، خـاتـمـه، میوه، ثمره، مطلب، غرض،
**نـتهه :** لـه څـهٔ کـار نـه انـکار کونه، نهٔ منل.
**نثـار :** قـربـان، فـدا، ځـار. عاشق، مئین،
**نثار :** نثر لیکونکے، نثرنګار.
**نثر :** هـغـه عبـارت یا لیـک چـې مـنـظـوم نـهٔ وي. ګډوډ، خوروور، دانه وانه.
**نجابت :** شـرافت، بزرګي، اصالت.

**نجات :** خـلاصـے، بخشش موندنه.
**نجاست :** پـلیتـي، ناپاکي، ګندګي،
**نـجس :** نـاپـاک، پـلیت، ګنده،
**نجم :** ستورے، ستاره.
**نـجـوم :** د نـجـم جـمـع، ستوري، ستارې، د ستورو د ګردش د حالاتو معلومونه.
**نـجـومي :** د ستـورو عـلـم لرونکے. د علم نجوم ماهر.
**نـجیـب :** شـریف، اصیل، بزرګ.
**نچوړ :** لـه څهٔ څیزه ویستلے شوې اوبـهٔ، عرق. خلاصـه، لب لباب، انجام، نتیجه،
**نچه :** نل، نے، نیچه.
**نڅول :** نـچـول، ګډول، پـه چا ګډا یا رقص کول.
**نـڅیـدل :** ګـډیـدل، ګـډا کـول، رقص کول، نڅا کول، نڅل، نچیدل.
**نـحس :** سپیرهٔ، بـدبخت،

منحوس، بدمرغه، نامبارک، سمون نهٔ خوړونکے، ناسازګار، ناموافق.
**نحو :** طریقه، چل، لار. د کلام د ترتیب د اصولو علم.
**نحوست :** سپیرهٔ توب، بدبختي، بدمرغي.
**نخاس :** د څاروو یا غلامانو بازار. منلهی.
**نخره :** ناز، اداء، غمزه. ټوقه، مسخره.
**نخرې پیښي :** ټوقې، مسخرې، ټوقې ټکالې.
**نخل :** د کجورې ونه، کجوره.
**نخلستان :** د کجورو د ونو بن. د کجورو باغ.
**نخوت :** غرور، لوئي، تکبر، خودبیني.
**ندا :** غږ، اواز، صدا.
**نداف :** د مالوچو وهلو یا وریشلو کار کونکے، ډینډتي، ډانډسي، نداپ، ننداف.
**ندامت :** پښیمانتیا، شرمندګي، پښیماني.
**ندائیه :** هغه جمله چې پکښې د ندا یعني چا ته د اواز یا غږ حرف وي.
**ندرت :** کمیابي، کمے. بڼهٔ والے، غوره توب. عجیبه توب، نا اشنا توب.
**ندرور :** د خاوند خور.
**ندیم :** سره کښیناستونکے، ملګرے، مصاحب.
**ندی :** وړوکے سیند، سیندګے، خوړ، لویه وله.
**ندر :** ډالی، پیشکش، تحفه، هدیه.
**ندیر :** ویرونکے، د اخرت ویره په زړهٔ کښې اچونکے. د حضور صلي الله علیه وسلم لقب.
**نر :** د ماده ضد، تکړه، تورزن.
**نرخ :** بیه، قیمت، شرح،
**نرخنامه :** د نرخونو فهرست، بیه نامه.
**نرسري :** د بوټو او ګلونو د

بوزغلي د کرنې او د هغو د پالنې ځای، ذخیره.
**نرسوی** : یو قسم غرنیز انار.
**نربښځک** : د نر او ښځې دواړو صفتونه لرونکی، ښځونک، ایجړا، هیجړا، ملوتی.
**نرگس** : یو قسم گل چې د انسان د سترگې په شکل وي.
**نرگه** : عام مرگ، وبا.
**نرم** : د کلک ضد، پوست. د ټینگ ضد، ابری، خوړین، د سخت ضد، اسان، نازک، سست، متحمل، بردبار.
**نرناحق** : چتې په چتې، هیڅ بې هیڅه.
**نروب** : د ټینگ ضد، نرم، ابژن، رقیق، اوبه، مائع، نلوب.
**نروکی** : ډیر نری، نری نروچکی، مانده، کمزوری.
**نری** : باریک، نازک. مانده، ټپ، کمزوری، خوار.
**نړول** : ورانول، غورځول، له بیخه ویستل.
**نړیدل** : ورانیدل، غورځیدل، له بیخه وتل.
**نړۍ** : دنیا، جهان، عالم.
**نزار** : کمزوری، ضعیف، مانده.
**نزاع** : فساد، جنگ، جگړه.
**نزاکت** : نازکوالی،
**نزد** : نزدې، جخت، ترخوا، قریب. خیال، رائ.
**نزدیکت** : جختوالی، نزدې والی، قربت، تعلق.
**نزله** : یو قسم زکام، د رطوبت په سترگو، ویښتو یا دماغو پریوتو او اثر انداز کیدو مرض.
**نزول** : نازلیدنه، له بره نه ښکته راتلنه. راکوزیدنه، واردیدنه.
**نژاد** : نسل، نسب، خاندان، ذات، ختنه.
**نږور** : د ځوي ښځه.

**نس** : ګیډه، خیټه.
**نسب** : اصل، خاندان، نژاد، خټه، ذات.
**نسبت** : تړون، ربط، تعلق، مطابقت، برابرے، کوژدن، سبب، بابت، پاره.
**نسبتاً** : په نسبت، په مقابله، په مطابقت.
**نسب نامه** : د خاندان شجره، د نسب سلسله.
**نسبي** : نسب لرونکے، اصل لرونکے. د نسب سره منسوب.
**نسخه** : کتاب، رساله. هغه کاغذ چې حکیم یا ډاکټر پرې تجویز کړې دارو لیکي. د دارو پرچه. چل، ترکیب، طریقه.
**نسق** : دستور، ترتیب، انتظام، بندوبست.
**نسک** : یو قسم دال، مسور، مشنګ.
**نسکور** : پړمخې، اپوټه، الوړے، اړولے، واژګون.
**نسکیر** : نزدې، جخت، قریب. رشته دار، خپلوان.
**نسل** : اولاد، بال بچ، خاندان، کورنی.
**نسل کشي** : نسل زیاتونه، ذات خورونه. افزائش، د نسل زیاتولو کار.
**نسوار** : د تماکو او ایرو نه یا یو خاص کیمیکلز نه جوړ کړے شوے مرکب چې د نشې په طور په خله کښې ایښودے شي.
**نسواري** : نسوار خرڅونکے، نسوار استعمالونکے، د نسوارو په شان رنګ لرونکے.
**نسیا** : قرض، پور، نسیه.
**نسیان** : هیره، فراموشي، تیروتنه، یو مرض چې پکښې له انسانه تیر شوې واقعات هیر شي.
**نسیم** : د سحر پسته او خوشګواره هوا. د سحر د وخت نرم او لطیف باد.
**نشاة ثانیه** : دوباره ژوندے

کیدنــه، پــه دویم ځل راپیدا کیدنــه، د مقبول تهذیب او تـمدن دوباره راژوندي کیدنه او ترقي موندنه.
**نشاسته** : وګوري ناشیشته.
**نشاط** : ښادي، خوشحالي، خوند، مزه.
**نشان** : نښان، نښه، علامت، اثــار، جــنډه، بیرغ، علــم، یــادګــار، درک، پته، نقش قدم، د بادشاه فرمان.
**نشانه** : هغه علامت چې په ټوپک تمــاچه یا غشي د ویشتو دپاره مقرر کړے شي. نښه، هدف، نخښه، نخشه.
**نشاني** : یادګار، نشان، نښه، نښاني.
**نشــائي** : پــه نشــه عادت شــوے، نشــه آور څیزونــه ستعمالونکے، نشه آور، نشه اوستونکے،
**شت** : نـاموجود، حقیر، پک،
**شر** : خور، شــائع شوے اشاعت.
**نشریات** : د ریډیو په ذریعه د اواز د خورولو سلسله.
**نشــوونــما** : راختــنــه او لــوئیــدنــه، راټــو کیــدنــه او غټیدنه، پرورش موندنه.
**نشــه** : ســرور، مستــي، د شــراب، افیــم وغیــره پــه استعمال سره پیدا کیدونکے کیفیــت. بیهوشــي، مســت، مسرور، بیهوشه، غرور، کبر، لوئي.
**نشه آور** : نشه راوستونکي څیزونه.
**نشیب و فراز** : لوړه ژوره، لوړوالے او ژور والے، پستي او بلندي.
**نشیــمن** : د وسیــدو ځــاے، کــور، د ارام ځــاے، ځالــه، جاله.
**نښانه** : نښه، نشان، نخښه.
**نښتر** : نشتر، د صنوبر ونه.
**نښتل** : چــمبړ کیدل، سره یو کیــدل، لیویدل، کیریدل،

راایساریدل، شروع کیدل، لاس پورې کیدل، جګړه کول، لاس لګول، جنګ کول.

**نښلول** : سره يو ځاے کول، سره چمبړ کول، سره ليوول، ګيرول، راايسارول، شروع کول، لاس پورې کول، جنګول، په جګړه کول.

**نښه** : نشانه، نښانه، هدف، نخشه، په ټوپک تماچه يا لينده‌باندې د ويشتو په غرض مقرر کړے شوے علامت.

**نص** : سامان قط په قط ايښودنه. د څۀ خبرې معلومات يا سپيناوے کونه. صفا، صريح او واضحه (حکم کلام، حديث آيت)

**نصاب** : سرمايه، پنګه، هغه مال چې زکوٰة ورکول پرې واجب وي. د مدرسې يا تعليم دپاره مقرر کړے شوي کتابونه. کورس. کتنه، اندازه، تول. جرړه، بيخ، بنياد.

**نصارا** : د عيسيٰ عليه السلام پيروکار، مسيحي، عيسائي، نصاريٰ، نصراني.

**نصائح** : د نصيحت جمع. نيکې مشورې، نصيحتونه، پندونه.

**نصب** : ودريدلے، لګ، لګيدلے، قائم. زور، زبر.

**نصب العين** : اصل مطلب، مقصد، اصول، لار.

**نصر** : مدد، ملګرتيا، ياري، مرسته، فتح، ګټه، ظفر.

**نصرت** : ګټه، فتح. مدد، ملګرتيا، مرسته.

**نصوح** : سوچه، خالص. پخه توبه ويستونکے.

**نصيب** : قسمت، تقدير، برخه، نصيبه. حصه، حاصل.

**نصيحت** : نيکه مشوره، پند.

**نصير** : امداد کونکے، مرسته کونکے، دوست،

ملګرې.
**نطفه** : مني، د انسان او بهٔ چې اولاد ترې پيدا کيږي. اولاد.
**نطق** : د خبرو د وينا قوت، د ګويايي قوت، خبره، وينا، سپاسنامه.
**نظاره** : ليدنه، نظر اچونه، ساتنه، تماشه، ننداره.
**نظام** : بندوبست، انتظام. سلسله، ترتيب. د ملغلرو لړۍ. جرړه، بنياد، بيخ. ډولي کونه، ښائسته کونه، جوړونه.
**نظامت** : د ناظم عهده او کار، بندوبست، انتظام.
**نظر** : د ليدو قوت، بصارت، بينائي. کاتهٔ، کتنه، ليدنه، غور، پام، فکر، نګراني، ساتنه، د چا د ليدو په وجه په څهٔ ښهٔ ځيز، انسان يا څناور وغيره بد اثر کيدنه.
**نظر باز** : هغه څوک چې په کتو ئې په څهٔ ښهٔ انسان، ځيز يا څناور بد ،ر پريوځي. بد نظر لرونکې، له نظره کونکې.
**نظربند** : هغه چې په نګراني کښې وساتلې شي، په يو خاص ځاې کښې پابند کړې شوې.
**نظربندي** : په نګراني کښې ساتنه، په يو خاص ځاې کښې پابند کونه، له يو مقرره ځاې نه په وتو پابندي لګونه. د جادو عمل،
**نظر ثاني** : د اصلاح په غرض دوباره کتنه، اصلاح کونه.
**نظرماتې** : د نظر ماتولو عمل.
**نظرياتي** : د نظريو يا نظرياتو سره منسوب.
**نظريه** : هغه مسئله چې پکښې د غوروفکر نه کار واخستې شي، اصول،
**نظم** : بندوبست، انتظام، نظام. موزون کلام، شعر، د شاعرۍ يو مخصوص صنف چې ګڼ قسمونه لري.

**نظم و نسق** : بندوبست، انتظام.
**نظیر** : مثال، نمونه، د لویو عدالتونو فیصله چې د ماتحتو عدالتونو دپاره لار یا دلیل وي.
**نعت** : ستائینه، تعریف، مدح. د حضور صلي الله علیه وسلم په شان کښې د تعریف شعرونه.
**نعره** : وګورئ ناره.
**نعش** : تابوت، د مړي صندوق، لاش، مړے.
**نعم البدل** : ښه بدله، نیکه معاوضه، غوریزه عوض.
**نعمت** : مال، دولت، خونده ور څیزونه، انعام بخښنه، پیروزئینه، د الله تعالیٰ ور کړه.
**نعوذ بالله** : مونږ د خدائے پناه غواړو.
**نعیم** : نعمت، مال، نیکي، لاس رسیدنه، په انعام کښې ورکړے شوے شے. نعمت لرونکے. د نعمت خاوند.
**نغاره** : ډندوره، ډمامه، نوبت، نقاره.
**نغاړل** : وګورئ نغښتل.
**نغد** : نقد، د قرض ضد. موجود، لاس په لاس. په موقع حاضر. عام طور باندې د رقم سره استعمالیږي.
**نغدي** : حاضر رقم، موجودې پیسې یا روپی.
**نغرے** : د اور بلولو ځاے، د اخلي پخلي ځاے. انغرے، اورغالے.
**نغښتل** : نغاړل، نغشتل، قط په قط راټولول، راغونډول، لنډول، مختصر کول.
**نغمه** : لوبه، سندره، ترانه.
**نغوتے** : لمسیدلے، راپاریدلے، اماده کړے شوے.
**نفاذ** : جاري کیدنه، لاګو کیدنه. د یو څیز له بل څیزه وتنه.
**نفاس** : هغه وینه چې د ماشوم له پیدا کیدو نه پس تر څلویښتو ورځو پورې له زنانه

نه څي.
**نفاست** : پاکوالے، صفائي، خوبي، ښهٔ والے.
**نفاق** : بې اتفاقي، په زړهٔ کښې يو څهٔ او په خلهٔ بل څهٔ، عداوت، پټه دشمني.
**نفر** : کس، سړے، بنده، تن، له دريو نه تر لسو کسانو ډله.
**نفرت** : کرکه، ناخوښي، کراهت.
**نفرين** : ښيره، بددعا، لعنت، غندنه.
**نفس** : ساه، دم، ساعت، ګړی، لحظه.
**نفس** : ځان، روح، ذات، وجود. حقيقت،
**نفسا نفسي** : ځان ځاني، د خپل خپل نفس فکر، خپل خپل غم کونه.
**نفقه** : د کور خرچه، د کور ماته ګوډه، د بال بچ خرچه.
**نفل** : هغه عبادت چې واجب نهٔ وي بلکې د ثواب دپاره کولے شي.

**نفوذ** : پکښې اثر کونه، دننه اثر کونه،
**نفوس** : د نفس يعني روح جمع. روحونه، ذاتونه. کسان، نفري.
**نفي** : د اثبات ضد، نه، انکار.
**نفير** : نفرت کونکے، متنفر، کرکه کونکے. هغه اواز چې د ودهٔ بنده له خلې يا سپيږمو خيژي. سرنا، توری، فرياد، ژړا، واويلا.
**نفيس** : ښهٔ، پاک، غوره، قيمتي، د وچتې درجې.
**نقاب** : د زنانو د مخ پټولو پرده، برقه، پړونے.
**نقاد** : تنقيد کونکے، ناقد، کره او کوټه معلومونکے.
**نقاره** : و ګورئ نغاره.
**نقاش** : ګلکاري کونکے، نقش و نګار کونکے.
**نقاط** : د نقطې جمع، و ګورئ نقطه.
**نقال** : نقل کونکے، پيښې

کونکے،
**نقائص** : د نقص جمع، عیبونه، خامی.
**نقب** : هغه سوری چې د غلا په غرض د چا په دیوال کښې وکړے شي. کنډر.
**نقب زن** : کنډر کونکے، غل، غلاګر.
**نقد** : د قرض ضد، نغد.
**نقره** : سپین زر، چاندي، هر هغه څیز چې سپین وي.
**نقش** : صورت، تصویر، ګلکاري، بوټې ګلونه جوړونه. مهر، ټاپه، درک، نام و نشان. تعویذ، نښه، علامت، خیال، تصور، اثر، تاثیر، جادو، اپره لیک،
**نقش و نګار** : د بوټو او ګلونو جوړولو کار، ګلکاري.
**نقشه** : نخچه، نخښه، تصویر، خاکه، صورت، شکل، حلیه، خدوخال، نمونه، مثال، سانچه، قالب، حال، کیفیت، طور، طریقه، فهرست.
**نقص** : کمے، خامي، عیب، بدوالے، نقصان، فرق، خرابوالے.
**نقصان** : کمے، خامي، نقص، عیب، کوتاهي، تاوان، زیان، خساره، تباهي، بربادي، ضیاع، تکلیف، درد.
**نقض** : ماتونه، ماتیدنه، ورانے.
**نقطه** : ټکے، مرکز، صفر.
**نقل** : له یو ځایه نه بل ته تلنه. تبدیلي، بدلون، له یو کاغذ نه بل ته اړونه. نمونه، نظیر، مثال، لطیفه، حکایت، بیان، روایت، پیښې، د مقدمې کاپی چې له عدالته راویستلے شي.
**نقلي** : د اصلي ضد، جعلي.
**نقوش** : د نقش جمع،
**نقول** : د نقل جمع نقلونه.
**نقیب** : د قوم مشر، سردار. د خلقو د نسبونو او ذاتي حالاتو علم لرونکے. تشهیر

کونکے، خلق خبرونکے،
دونډورچي.
**نکات** : نکتې، باریکی، هغه
خبرې چې هر څوک پرې نهٔ
پوهیږي.
**نکاح** : د شریعت مطابق د
هلک جینی تړون، وادهٔ،
عقد.
**نکاس** : لـه کوره د بهر تلو
لاره. د اوبو د بهر وتو ځاے یا
لار. لـه چا د روپو یا پیسو
وصولولو لار یا صورت.
**نکاسي** : د مال و اسباب
وتنه، خرچیدنه، لیږنه، بر آمد،
روانګي، لـه ښاره بهر تلنه یا
وتنه.
**نکبت** : غریبي، مفلسي،
بدحالي،
**نکته** : باریکي، ژور والے،
باریکه خبره، ژوره خبره،
**نکته چین** : نکتې را
پیستونکے، باریکی لټونکے.
**نکره** : د یو قسم د ډیرو
څیزونو مشترکه نامه لکه میز،
کرسی، کتاب وغیره.
**نکریزې** : یو قسم بوټے او
د هغې پاڼې چې عام طور سره
دغه پاڼې وچې کړے شي او
بیا اوړهٔ کړے شي چې زنانه ئ
د ښو لاسونو د سرهٔ کولو
پکار راولي. حنا، نکریزه.
**نکهت** : د ګلونو بوئ،
خوشبوئي.
**نکیرین** : هغه دواړه فرښتې
چې په قبر کښې د مړي سره
سوال جواب کوي.
**نګار** : تصویر، نقش، بت،
محبوب، معشوق، ډول،
سنګار، نکریزې.
**نګاه** : لیدنه، نظر. د لیدو
قوت، بصارت، بینائي،
سترګه، پیژندګلو، شناخت،
پام توجه، مهرباني، ننداره،
نګراني، امید، یقین، توقع،
طمع.
**نګران** : پام کونکے،
محافظ، نګهبان.
**نګون** : نسکور یا سرښکته

کونه پورته څوړند، اپوته، اویزان، نګونسار، کوز، راکوزېدونکی.

**نګونسار** : وګورئ نګون.

**نګه** : سوچه، پاک، خالص، صفا.

**نګهبان** : پام لرونکی، حفاظت کونکی، نوګان، څوکی کونکی، محافظ.

**نګین** : قیمتي کاڼی، غمی، نګ، نګینه.

**نل** : د ګنې په شان بندونه لرونکی بوټی چې منځ ئې تش یا ډډ وي، نچه، نی، نیچه.

**نلکه** : د وسپنې یا پلاستیک نه جوړه نلی، د اوبو بمبه.

**نله** : نلی، د وسپنې، لرګي پلاستیک وغیره نه جوړ نل نما شیز. د خرمنې مشک چې د تیلو د اړولو راړولو دپاره پکارولی شي. د پښې لوی هډوکی، شپیلی.

**نلی** : د پښې یا لاس لوی هډوکی. د هډوکي مغز.

**نم** : لوندوالی، تروالی، رطوبت. حیا، شرم، لحاظ، لوند، تر.

**نمائنځل** : کول، خاص ورځ یا تقریب سر ته رسول، پالل، عزت ور کول، پالنه کول.

**نمائش** : ښودنه، خلقو ته ښکاره کونه، نمود، ظاهرداري، د مصنوعاتو یا نورو خاص شیزونو خلقو ته د ښودلو میله.

**نمایان** : څرګند، ښکاره، عیان، ظاهر. نامور، یاد.

**نمائنده** : ترجمان، قائم مقام، نائب.

**نمبر** : تعداد، درجه، پیره، وار، نوبت.

**نمژن** : لوند، نمي لرونکی، لوند شوی، نوژن.

**نمر** : د شمسي نظام د منځ ستوری چې زمکې دپاره د رڼا او تودوالي مستقله ذریعه ده. نور، لمر،

**نمرپرست** : نمر ته سجدې کوونکے، د نمر عبادت کونکے. د يو ګل نامه چې نمر ته ئ مخ وي. نمر ګل، کافر ګل.
**نمرپريواتۀ** : د نمر پريوتو طرف، قبله، مغرب.
**نمرخاتۀ** : د نمر راختو طرف، مشرق.
**نمک** : د مخ مالګه، د مخ ډول. مالګه، رزق، خوراکه.
**نمک حرام** : حرام رزق خوړونکے، حرام خور، د چا د نيکی او احسان هيرونکے، بيوفا.
**نمک حلال** : حلال رزق خوړونکے، حلال خور، د چا د نيکی او احسان خيال ساتونکے.
**نمک خوار** : د چا نمک يا رزق خوړونکے، د چا ډوډی ته ناست. مالګه خوړونکے.
**نمکدان** : د مالګې لوښے، هغه لوښے چې مالګه پکښې کيښودے شي.
**نمکين** : مالګين، چې مالګه پکښې وي، ترسکون، سکاڼ، ښکلے، ډولي.
**نمود** : لوئيدنه، ټوکيدنه، وده کونه.
**نمود** : ښکاره کيدنه، څرګنديدنه، نمائش، ښودنه.
**نمودار** : څرګند، ښکاره، ظاهر، په نظر راتلونکے. افسر، سردار، رهبر.
**نمونه** : مثل، نظير. نقشه، نقل، سانچه، قالب، نشانه، نښه.
**نمونيا** : د بيماری په دوران کښې د پړپوس سوروالے او پړسوب.
**نداپ** : نداف، ډينډتي، ډانډسي.
**نداره** : تماشه، نمائش.
**ندرور** : ايندرزر، د خاوند خور.
**ندرورزے** : د ندرور

څوړے. د خاوند د خوږ څوړے.

**ننلره** : نیندره، هغه روپۍ چې په وادهٔ کښې خلق د بدل په طور ور کوي.

**ننکۍ** : وړه دانه، ښنځه، ښنځکۍ. د څرمن دننه نو او زوې پیدا کیدنه.

**ننګ و نام** : لحاظ، شرم، غیرت، ننګ و ناموس، عزت، عصمت.

**ننګیالے** : غیرت مند، ناموس باندې مړ کیدونکے، غیرتي.

**ننګے** : اننګے، رخسار.

**نننے** : د نن ورځې، امروزه. تازه، جدید.

**ننواتې** : ننواته، د پښتنو د دستور مطابق د چا کور ته د معافۍ غوښتو دپاره تلنه او معافي غوښتنه.

**ننوتل** : داخلیدل، دننه تلل، دخول.

**ننویستل** : دننه کول، داخلول، ننه ایستل، منډل، ورمنډل.

**نو** : نم، نمي، تر، لوند، پیپ.

**نو** : بیا، حرف شرط.

**نوا** : اواز، صدا، ندا، کوک، راګ، نغمه. ساز و سامان، روزي، د موسیقۍ په دولسو مقامونو کښې د یو مقام نوم.

**نواب** : نائب، د یوې علاقې حاکم. ډیر لوے جاګیردار. د عزت خطاب.

**نوآباد** : نوے اباد کړے شوے.

**نوابادي** : هغه علاقه، ملک یا جزیره چې یو لوي ملک د ابادولو په بانه قبضه کړے وي.

**نواح** : مضافات، ګیر چاپیره علاقه.

**نواحي** : ګیر چاپیره علاقه.

**نوادر** : د نادر جمع، عجیبه څیزونه.

**نوار** : هغه پلنه او غټه فیته چې پالنګونه ترې نه بوڼلے

شي.
**نواړه :** وړه کشتۍ چې د سيل دپاره پکارولے شي.
**نواز :** ساتونکے، عزت ور کونکے.
**نواز :** د لاحقي په طور د صفت نه پس لګولے کيږي لکه غريب نواز.
**نوازش :** مهرباني، عنايت، کرم.
**نواله :** نمړی، نوړی، قپه، د خوراک هغه برخه چې په يو وار خلې ته کولے شي.
**نوبت :** وار، نمبر. حالت، نغاره.
**نوبهار :** نوے بهار، تازه سپرلے.
**نوحه :** ژړا، فرياد، ماتم کونه، په مړي باندې ژړل.
**نوخط :** هغه ځلمے چې په مخ ئې نوے خط راغلے وي. کچه ځلمے.
**نور :** زيات، د دې نه علاوه.
**نور :** رڼا، چمک. رونق، کلام پاک،
**نوراني :** چمکدار، روڼ، منور، پرقيدونکے.
**نورلس :** د اتلس او شل تر منځه عدد. يو کم شل.
**نوروز :** د کال وړومبی ورځ، د ايرانيانو قومي جشن.
**نوړی :** لقمه، نواله، نمړی، لمړی.
**نوژن :** نمژن، لونډ، نمي لرونکے.
**نوس :** نفس، انساني خواهش، هوس.
**نوستل :** تتر بتر کول، ګډوډ کول، نستل، دانه وانه کول.
**نوسي کړوسي :** نمسا نمسي، نمسي کړوسي، اولاد، آل اولاد،
**نوسے :** هغه آله چې ويښتهٔ پرې وکاږي.
**نوشادر :** يو مرکب دے چې د الم.ونيم او کلورين نه جوړيږي.

**نوشت** : تحریري، لکهائي، کتابت، وئیل او لیکل.

**نوشته** : لیکلے شوے.

**نوش دارو** : تریاق، زهرمهره، شراب.

**نوشل** : نوش کول، څښل.

**نوع** : قسم، ډول،

**نوعمر** : کچه زلمے، هلک، هغه هلک چې نوے زلمے شوے وي.

**نوغ** : بیخ، بنیاد، اصل، جرړه. تخم، نوغے، علامت، چاپ، خاپ، ټاپ.

**نوکاره** : سکوندړاره، د نوک زخم.

**نوکر** : ملازم، تنخوادار، خدمتګار، خادم.

**نوکري** : ملازمت، چاکري، خدمتګاري.

**نوکے** : هغه سپے چې پوره شل نوکونه ئې وي.

**نول** : غم، فکر، پریشاني، خفګان، غریبي، اندیښنه، سودا.

**نول څول** : په خوارو زارو، په ډیر کړاو.

**نولژن** : غمژن، دلګیر، ملال، خفه.

**نولیدل** : کړیدل، غمګین کیدل، فکرمند کیدل.

**نولے** : یو قسم ځناور چې د مږې نه لږ غټ او ماران او مږې وژني. زیات تر په برصغیر پاک وهند کښې پیدا کیږي.

**نوم** : نام، نامه، اسم. مشهورتیا.

**نوم** : ناف، د وجود د یو اندام نوم.

**نومسلم** : چې نوے مسلمان شوے وي.

**نومیالے** : نامور، نامدار.

**نون** : د حرف "ن" تلفظ.

**نونکی** : وړې داني، ننکی.

**نووارد** : مسافر، اجنبي، نوے سړے.

**نویسنده** : لیکونکے، کاتب، خط لیکونکے.

**نوے :** د زوړ ضد. جديد.
**نوے نوزے :** بيخي نوے، بالکل نوے،
**نهٔ :** په مثبت فقره کښې د اسم مفعول نه پس په لګيدو باندې د فقرې معنیٰ نفي شي.
**نه :** حرف جار لکه له دې ځايے نه تر دې ځايے پورې.
**نهاد :** خټه، سرشت، طبيعت، عموماً مرکب لفظونو کښې راځي لکه پيش نهاد، نام نهاد.
**نهار :** نهر، وږے،
**نهار نهور :** بالکل وږے، وږے تږے، نهر نهور.
**نهال :** تازه لګيدلے بوټے، نال. اباد، خوشحال، خوښ، شتمن.
**نهالول :** نالول، کرل، بوټے لګول، ابادول، خوشحالول.
**نهايت :** حد. انجام. اخر، انتها.
**نهايت :** شدت سره، ډير زيات، بې صبري سره.
**نهر :** وږے، اوږے، نار.
**نهر :** نير، د درياب شاخ، لويه وله.
**نهلول :** نالول، لګول، بوټے کرل.
**نهنګ :** ګړيال، ننګرے، يو غټ سمندري ځناور.
**نهٔ :** د اتو او لسو ترمنځ عدد.
**نهي :** هغه کارونه چې مخالفت ئې شوے وي.
**نهې :** د نهې ورځ، د چارشنبې نه مخکښې او د ګل نه وروستو ورځ.
**نيا :** نيا، نانا، ادې،
**نيابت :** نائبتوب، نائب کيدنه، نائبي.
**نياز :** عاجزي، غريبي، حاجت، ناز، فخر، نذر، منت، منښته.
**نيازبين :** په ناز باندې عادت شوے، نازک طبع، نازک مزاج.
**نيازمند :** خواهش مند،

خاکسار طبع، هغه سړے چې د چا نازونه وړي.
**نیازي** : عرض کونکے، خواست کونکے.
**نیام** : د تورې تیکے،
**نیاؤ** : عدل، فیصله، انصاف، حق رسونه.
**نیاوے** : منصف، عادل، انصاف کونکے، فیصله کونکے، دادرس.
**نیت** : اراده، مرضي، اصلي مقصد.
**نیچ** : کم ذات، کمینه، بداصل، نالائق، ادنیٰ.
**نیر** : دویم، نور، دا لاندې ور کړې شوي.
**نیر** : سیلاب، لوے سیلاب، توئے.
**نیسان** : سپرلے، بهار، پسرلے.
**نیشت** : نیستي، نشتوالے، غریبي، مفلسي.
**نیکانه** : د نیکهٔ کور، نیکهٔ گنی.
**نیکهٔ** : د مور پلار یا د پلار پلار. مشر سړي ته د خطاب کلمه.
**نیل** : اودي رنګ، وسمه، د ګوزار نشان. یو مرکب چې جامې پرې رنګولے شي.
**نیلاب** : د سویلي دریائے سند نامه، اباسین.
**نیلام** : د بولۍ په ذریعه قیمت وچتول او خرڅول.
**نیلم** : د اودي رنګ یو قیمتي کاڼے. د غمو یو قسم.
**نیله** : جرړه، جرړی، بیخ، ریشه. یو څوړے، هغه څوړے چې بل وررور خور نهٔ لري.
**نیله توتا** : شین غوندې کاڼے چې حکیمان ئې د زخم رغیدو دپاره استعمالوي.
**نیم** : نیمائي، نیماهه، نیم بها، منځ، مینځ، یو څیز چې دوه برخې شي د هغې یوه برخه. دوه برابرې حصې کونه.
**نیمبو** : لیمبو، لیمو،
**نیم پاؤ** : دوه چیتاکی، د

پاؤ نیمه.

**نیم پخته** : یو څیز داسې پخیدل چې نیم پوخ وي او نیم کچه وي. چې پوره پوخ نۀ وي.

**نیم تنے** : جاکټ، بنین، یو قسم بنین چې د قمیص لاندې اغوستے شي.

**نیمچه** : هغه جاندار یا بې جانه څیز چې په اصل کښې ئ د غیر خالصې مادې ګډون شوے وي، کم اصل، رذیل، دوه رګه،

**نیمزالے** : هغه سړے چې ځوانې ئ په شا شوې وي. د پوخ عمر خاوند.

**نیمسیرے** : د نیم سر درد، هغه درد چې په نیم سر وي. دوه پاوه،

**نیمکښو** : نیم لرې، نیم پرانستې، هغه څیز چې پوره مضبوطی سره بند نۀ وي. نیم کښ، نیم بیرته.

**نیمکولے** : هغه څیز چې څۀ حصه ئ پریکړے شوے وي یا مات کړے شوے وي.

**نیمکی** : د پښتنو د سندرو یو قسم.

**نیمګړے** : چې پوره نۀ وي. ناقص، نیمه خوا، ارماني،

**نیمول** : دوه ټکړې کول، برابرول، تقسیمول، په منځ دوه ځایه کول.

**نیمه** : دوه ټکړې، برابر، په منځ دوه ځایه. نیم.

**نیمه** : یو قسم وچت او لنډ پرتوګ.

**نینه** : د غنمو یا جوارو دانه چې ورته شوې وي. ورته شوې دانه.

**نیني نیني** : پسخیدنه، ډیر لیواله کیدنه.

**نیوش** : اوریدنه، اوریدونکے.

**نیوکه** : نیونه، خپلونه، کوژدن، کویدن، قبضه کونه، اخستنه، اجاره کونه،

**نیول** : تینګول، اخستل، ګرفتارول، راټینګول، نیسل.

**نیب** : طرز، طریقه، روش. مسلسل، پرله پسې.

**نیرنگ** : مکروفریب، ټګي، چل، چم، جادو، چالاکي.

**نیرو** : طاقت، قوت. زور ازمائي.

**نیزه** : د جنګ یوه وسله. د وسپنې جوړه سومبه هغه لرګے چې په سر کښې ئ سومبه لګیدلې وي.

**نیزه باز** : چې په نیزه وهلو کښې ماهر وي.

**نیست** : د هست متضاد. نیشت، نشتوالے،

**نیستګار** : نیستمن، خوار، غریب، عاجز، فقیر، مفلس.

**نیستګاري** : نیستي، غریبي، مفلسي.

**نیستمن** : خوار، غریب، مسکین، مفلس.

**نیست و نابود** : تباه و برباد، تباه شوے، برباد شوے، پوپنا.

**نیستي** : غربت، افلاس، غریبي، خوارۍ، مسکیني، فقیري.

**نیش** : لشه، لیشه، لاشۀ. ازغے، اغزے، د نیزې څوکه، زهر.

**نیشت** : نشتوالے، غریبي، مفلسي.

**نیشکر** : ګنے،

**نیغ** : لک، ولاړ، راست. چا سره جنګ ته اماده کیدنه، د جنګ حالات پیدا کونه.

**نیغکے** : د نیغ اسم تصغیر. مشروټے، کلک سترګے.

**نیغول** : لکول، ولاړول، برابرول، خم ایستل، سمول، وچتول، پورته کول، هسکول.

**نیغه** : هسکه، جګه، وچته.

**نیغیدل** : لکیدل، سیدا کیدل، سمیدل، نیغ روانیدل، وچتیدل، پورته کیدل، هسکیدل، ګستاخ کیدل.

**نیک** : ښۀ، تقوئ دار،

پرهیزګار، پاکدامن، شریف، رحمدل، مهذب.

**نیک بخت** : د بدبخت ضد. خوش قسمت،

**نیکړ** : جانګړی، ختېلنګ.

**نیکنامي** : په ښه نامه یادیدنه، ښه نامه لرنه، په نیکه یادېدنه.

**نیک نیتي** : نیک نیت لرنه، نیکه اراده لرنه.

**نیکو** : ښهٔ، نیک سیرت، نیک خصلت.

**نیکوکار** : نیک کار کونکی، نیک عمله.

**نیکوکاري** : نیک کارونه کونه، نیک عمل کونه.

**نیکي** : د بدی ضد، ښیګړه، ښهٔ والی، خوبي.

**نیوي** : سمندري فوځ.

**نی** : شپیلی، نل، نچه.

**نی** : یوه لاحقه چې د نامې یا صفت وروستو راشي نو د نسبت معني ورکوي لکه پرونی، اوسنی.

**ڼ** : (نــوڼ) د پښتــو د پـتهـی اووۀ دیـرشم حرف، دا حرف د پښتو د یو لفظ په سر کښې هـم نۀ راځي. د لفظ په منځ یا اخــر کښې راځــي. اواز ئ د نـون غنه، ړ او نون غنه مرکب اواز وي لکه کوڼ، رڼا، وروڼه وغیره.

د ابـجلو په حساب ئ قیمت د "ن" بـرابـر یعنــې پنځوس (۵۰) دے.

**نی** : د اسـم تـصغیر علامت دے لـکـه کوتـې نه کوتنی، د پـخـه نــه پـخـنی، کوزې نـه کوزنی.

**و** : (واؤ) د پښتو اتهٔ دیرشم حرف، د ابجدو په حساب د دې شپږ (٦) عددونه مقرر دي.
**وا** : کشاده، جدا، پرانستې، بیرته.
**وابسته** : تړلی شوی، متعلق، رشته دار، نوکر، تعلق لرونکی.
**واپس** : پستنه، بیرته.
**واټن** : د دوؤ ځایونو ترمنځه لرې والی، په برابر فاصله، مساوي فاصله.
**واجب** : چې کول ئې لازمي وي. هغه عبادت چې کول ئې ضروري وي او نهٔ کول ئې ګناه وي.
**واحد** : یو، مفرد، صرف. د خدای تعالیٰ یو صفتي نوم.
**وادګنې** : د وادهٔ څلمې، ودګون، ودیزن، زوم، ودګنې، شاوهٔ، شاؤله، ودګینې.
**واده ګاټه** : ګټه نقصان، کمې زیاتې،
**وادهٔ** : نکاح کونه،
**وار** : نمبر، لمبر، ځل، پیره، نوبت. حمله، ګوزار. ځواني، دور. زخم، دیکه، موقع، د ماده څاروي نرڅاروي ته لیواله کیدنه (دې صورت کښې ورسره راوړل هم استعمالیږي وار راوړل)
**وار** : یوه لاحقه چې د اسم نه پس راځي لکه امیدوار، سزا وار.
**وار پار** : حواس، ساه صورت، ساه.
**وارث** : هغه سړی چې د چا میراث ورته رسي. سرپرست، خاوند، میړهٔ، میراث خوړونکی مشر.
**وارخطا** : ویریدلی، تریدلی، ویرې اخستې.
**وارد** : راتلونکی، موجود، رسیدونکی.
**واردات** : حالت، پیښه، سانحه، جنګ جګړه،

هنګامه، حادثه.
**وارړهٔ** : پخ شوي کنډ، د لنګانهٔ نه پس د څاروي د ورومبو څو ورځو پيْ؛
**واره** : فرصت، موقع. خپلې فائدې ته کتنه. پيره.
**واريزه تبه** : هغه تبه چې کله وي او کله نه، مليريا.
**واړه** : تمام، پوره، کل، همه، کلهم.
**واړهٔ زاړهٔ** : اولاد، بچه پونګ، واړهٔ زاړهٔ، بال بچ، بچ کچ.
**واز** : ويت، ارت بيرت، بې شرم.
**وازده** : وازګه، چربي، د حيواني جسم په غوښه او وينه کښې شامله د غوړوالي برخه چې سپين يا زيړ رنګ لري او چې ويلې شي نو روغن ترې جوړيږي.
**وازګه** : وګورئ وازده.
**وازول** : ارتول.
**وازيدل** : ارتيدل، خلاصيدل، بيرته کيدل.
**واسطه** : تعلق، تړون، ربط، علاقه، ذريعه.
**واسع** : ارت، خوريدونکے، خورروور. د الله تعالیٰ يو صفتي نوم.
**واسکټ** : وازکټ، سينه بند، نيم تنے.
**واښهٔ** : ګياه، سبزه.
**واصل** : شامليدونکے، يو ځاے کيدونکے، ملاقات کونکے، رسيدونکے.
**واضح** : صفا، روڼ، ښهٔ په صفايي سره. ظاهر.
**واعظ** : وعظ کونکے، نصيحت کونکے، ناصح، پند کونکے.
**واف** : بلبل، سندرغاړے، خوږ زبان.
**وافر** : ډير، ګڼ تعداد کښې، د علم عروض د يو بحر نوم.
**واقع** : موجود، کيدونکے، راتلونکے.
**واقعه** : پيښه. وقوعه.

**واقعي** : پــه رښتيـا، بـالکل صـحيـح، سـکټ، په حقيقت کښي.
**واقف** : بـلـد، اشـنـا، بلدي، پيژندګلو سړے.
**واک** :طاقت، توان، اختيار، حق.
**واکمن** : د اختيار مالک، د واک خاوند، باچا، بادشاه.
**واکي** : د لاحـقي پـه تو ګه استـعـماليـدونکے تورے چې فـاعـلي مـعنيٰ پيدا کوي لکه خپل واکي.
**واګه** : د څرمني پړے چې د اس يا اسپي د قابو کولو دپاره د اس يـا اسپي په خلهٔ کښي د وسپـنـي ډنـډې پـورې تـړلے شوے وي.
**وال** : د نسبـت لاحقه چې د نـوم سـره راشـي نو فاعل ترې جوړ کړي. لکه ټانګي وال.
**والا** : پــه مــر کبــاتو کښي پـکــاريـدونـکے تورے لکـه ټـانګي والا، د ملکيت ښکاره کـولـو عـلامـت. هسک، د وچتي مرتبې خاوند.
**والد** : پلار، د مور خاوند، د مور ميړهٔ.
**والده** : مور، د پلار ښځه.
**والدين** : مور پلار.
**والسلام** : او سـلامتيـا دې وي پـه تـا. د کلام يا بيان اخر ته استعماليدونکې دعا.
**والله** : پــه الله پـاک مې دې قسم وي. بې‌شکه، رښتيا.
**والله اعـلـم** : الله پـاک ښـهٔ خبر دے.
**والهٔ** : وله، د اوبو نهر. د نهر يـا سيـنـد نـه د اوبـهٔ خور پـه غــرض رابيـلـي کـړې شوې چاړ چاړ اوبهٔ. د صفا او پاکو اوبو ناله.
**والي** : خاوند، مشر، سردار، مالک، بادشاه، سرپرست.
**والۍ** : د زنــانـو کـالے چې غوږونو ته اچولے شي.
**وانه** : غـوبـل شوې غله چې بوسو سره يو ځاے وي.

**واو** : د حرف "و" تلفظ.
**واوا** : د شاباش کلمه ډاډګیرنه کونه، ډیر ښهٔ، شاباش.
**واوا** : ښکلے ځیز (د ماشومانو په ژبه.)
**واوره** : د هوائي بخاراتو منجمد شکل چې له بره راوریږي. په مصنوعي طریقه د اوبو منجمد شکل.
**واویلا** : ژړا، فریاد، چغې سورې، ماتم، شور فریاد، آه فغان.
**واه** : د خوشحالی اواز چې د خوشحالی په وخت د خلې نه وځي.
**واهمه** : د تصور هغه زور چې احساسات پیدا کوي. د تخیل قوت.
**واهیات** : فضول خبرې، بکواس.
**وائي** : د وئیل نه امر. د خلقو د خلې خبره، داسې خبره چې په خلقو کښې شهرت بیامومي. شهره، اوازه.
**وایٔ وایٔ** : فریاد، د فریاد چغې.
**وبا** : مرګو، خوریدونکې مهلکه بیماري.
**وبال** : عذاب، مصیبت، آفت، ګناه. بوج، بار.
**وبائي** : د وبا سره متعلق.
**وبله** : یو تر بله، خپلو کښې، په یو بل.
**وپار** : لین دین، کاروبار، ونج، بیپار، رابطه، وفا، تجارتي معامله، تجارتي اعتبار.
**وپره** : بوره بوره، نرمه نرمه. ارګجه. ناجانه، ناواقف.
**وت** : درز، وړوکے سورے، کنده، رو، لرې والے، پلن والے، فراخي.
**وتد** : میخ، چوکه. د علم عروض په اصطلاح کښې درې حرفي کلمه.
**وَتر** : د قائم الزاویه مثلث له

ټولو لويه ضلع. د مثلث د يوې زاويې مخامخ ضلع. هغه خط چې د څلورو ضلعو مخالف ګوټونه يو ځای کړي. هغه خط چې د دائرې څه حصه راګيره کړي او قطر نه وړه وي.

**وتر** : هغه درې رکعته مونځ چې ماسخوتن مانځه کښې له فرضو او سنتو نه پس کولے شي.

**وَتر** : وتره، د اوبهٔ خور نه پس د زمکې هغه حالت چې د يوې کولو قابل وي.

**وتـکـے** : وړوکے وت، وړوکے سوړے.

**وتل** : خارجيدل، بهر وتل، ظاهريدل، بهر ته تلل، بنديدل، کښيوتل، پروا لرل، علاقه لرل، مينه لرل، رسيدل، ښکاره کيدل.

**وتنه** : پروا، فکر.

**وتے** : نمايان، وچت، رسيدلے

**وتک** : ګټه وټه، آمدن، د سودا يا دکانداری د مال و خرڅ ګټه. د ورځې آمدني.

**وټ کټ** : ودکټ، وړکټ، کمے زياتے.

**وتے** : د نهر يا ولې وچته حصه چې لاندې ترې د ژرندې ناوه لګيدلې وي.

**وثوق** : مضبوطيا، اعتماد.

**وثيقه** : اقرار نامه، دستاويز، سند، وعده.

**وجاهت** : عزت، رعب، لوئي.

**وجد** : شوق، جذبه، بې خودي، ډيره خوشحالي.

**وجدان** : د دريافت او پوهې ذوق سليم چې يو قلبي قوت دے.

**وجداني** : وجدان او باطني حواسو سره تعلق لرونکے.

**وجع** : تکليف، درد، دړد.

**وجود** : بدن، تن، جسم، حيات، هستي، موندلے کيدنه.

**وجه** : خیره، مخ، رخسار. سبب، سوب.
**وجیه** : ښائسته، ښکلے، د شکل او صورت نه ښهٔ.
**وچ** : خشک، د لوند ضد. شنډ.
**وچاړ** : ابره، هغه ابره چې برستن تولائی ته اچولے شي.
**وچ په وچه** : هیڅ بې هیڅه. برناحقه، بې ښې بې بدې، چتې پتې.
**وچت** : بره، پورته، لوړ، وچت.
**وچتول** : بره کول، له یو ځاے نه بل ځاے ته کول، جګول، لوړول، پاځول.
**وچتیدل** : بره کیدل، پاځیدل، پورته کیډل، ترقي کول، وده کول.
**وچکال** : سو کړه، هغه کال چې بارانونه پکښې نهٔ وي.
**وچکالي** : سو کړه، د فصل ښهٔ نهٔ کیدنه. قحط.
**وچکے** : نرے نرو چکے، نرے پیرے، وچ کلک، ریپړ، نرے، په بدن کمزورے.
**وچوب** : په لښتي کښې اوبهٔ بندیدنه. د اوبو کمے، اوبهٔ کمیدنه. وچوبے.
**وچوړ** : وچوالے، وچتوب.
**وچول** : له څهٔ ځیز نه نم ایستل. بې اوبو کول. خشک کول.
**وچولے** : تهنډه، تندے.
**وچه** : للمه، خشکه، د لوندې ضد. د لنګې ضد، د بلاربې ضد.
**وچه غاړه** : حلق، ستونړے، د ساه اخستو نالی.
**وچه لمده** : ګوره ګل، غوره ګل.
**وچیدل** : د نم بیخي ختمیدل، اوبهٔ ختمیدل، خشکیدل، مانده کیدل.
**وچې کانګې** : وچې التهی، وچې قے. وچ چالونه.
**وحداني** : د واحد سره متعلق، تنها، ځانله.

**وحدانيت** : توحيد، يو والی، يو کيدنه.
**وحدت** : د کثرت ضد، اتفاق، يووالی.
**وحشت** : جنون، سودا، خفګان، ليونتوب، له تنهايی پيدا کيدونکې غم او زړه تنګي.
**وحشتناک** : ويرونکې،
**وحشي** : ځنګلي، غير مهذب.
**وحشيانه** : د وحشي سره متعلق.
**وحيد** : يو، بې مثال، لاثاني، د الله تعالیٰ يو صفتي نوم.
**وحي** : پيغمبرانو سره د الله پاک کلام، اشاره، الهام.
**وخت** : زمانه، دور، ساعت،
**وختي** : د وخته، ډير مخکښې، سحر، وړومبې.
**وختينې** : وختي، د وړومبي وخت.
**وخله** : د حيرانتيا او خوشحالی کلمه.
**وداع** : روانګي، د ناوې رخصتي.
**ودان** : اباد، جوړ شوې، د وران ضد.
**ودانول** : ابادول، جوړول،
**وداني** : ابادي، عمارت، تعمير.
**ودانيدل** : جوړيدل، اباديدل. صاحب اولاد کيدل.
**ودرول** : ولاړول، ايسارول، قائمول، درول.
**ودريدل** : ايساريدل، قائميدل، دريدل.
**ودګنې** : هغه ځلمې چې وادۀ ئې وي. د ناوې مذکر.
**ودود** : غوښتونکې، مهربان، د الله تعالیٰ يو صفتي نوم.
**وده** : ښيرازي، ترقي، لوئيدنه.
**وديدل** : وادۀ کيدل، د ښځې په نکاح کيدل.
**وړ** : واړې، ويشکې، وټ، د

زمکې لويه ټکړه.

**وډ** : د ګډ تابع مهمل لکه ګډوډ.

**ور** : دروازه، تمبه،

**ور** : يوه لاحقه چې د ځنې اسمونو په اخر کښې راتلو سره د فاعل معنیٰ ورکوي لکه کينه ور، بختور وغيره.

**ورا** : د ښځو ګڼه چې د وادهٔ په موقع د ناوې کور ته ځي او بيا د ناوې د ډولۍ سره راځي.

**وراثت** : ترکه، ميراث، ورثه، له مړي پاتې شوے مال جائداد. ورثه

**وراره** : وروور مړې ښځه، هغه ښځه چې وروور ئې مړ وي.

**وراړهٔ** : د وروور ځوے.

**وراستهٔ** : د وروست جمع، زوړ، ريمن.

**وران** : برباد، خراب، ويجاړ، ړنګ، اجاړ، خراب شوے، ورانے کونکے، ذليل، شرير، شيطان. ورانکارے.

**ورانکارے** : فسادي، شرير، ورانے کونکے.

**ورانول** : د کار نه ايستل، ختمول، ويجاړول، ويرانول، په بل مخ اړول، تباه کول، بربادول، ويجاړول، خرابول، ړنګول،

**ورانه** : دشمني، دښمني، تربګني، مخالفت، بدي، د وران مؤنث.

**ورانه ودانه** : نيکي بدي، ښه بده، جوړه ناجوړه.

**وران ويجاړ** : وګټوري وران وجاړ.

**ورانيدل** : له کاره وتل، خرابيدل، دښمني جوړيدل.

**ورانے** : خرابے، دښمني، پتنه، فتنه، نقصان، اړيته، خميته.

**ورايه** : له لرې، په فاصله، د "له" حرف جار سره استعماليږي.

**وربشه** : يو قسم غله، اربشه، اوربشه. عمر، روزي،

(د زوند سره په استعمال)

**وربشینه** : روټه، د اوربشو جوړه روټی، چې د اوربشو د اوړو نه جوړه وي.

**وربل** : ټیکه، کالے، د پیغلې په تندې ویښته، بندکے، اوربل

**وربوز** : د څناور خلهٔ، د انسان مخ، مخ، شکل، خلهٔ، موشاده.

**وربه** : دربان، ور ساتونکے،

**ورپسې** : شا ته، وروستو.

**ورپوړې** : ورسره خوا کښې، په ور دننه، کورناستې لګیدلې.

**ورتګ** : ورتلل.

**ورتول** : وریتول، په اور پخول، سخته ګرمي رسول.

**ورته** : وریته، نینه، هغه دانه چې پولې نهٔ شي. وریته کړې غوښه، تیکه.

**ورتـه** : بل تـه، نورو تـه (د غائب صیغه کښې)

**ورته** : نزدې.

**ورته** : سکښتې شوې وړې

**ورته** : خوږکند، ښکاره.

**ورتیدل** : په اور سوزیدل، ترقیدلے کیدل، په اور تلیدل، اذیت ور کیدل.

**ورټ ورټ** : پـه ورټ ورټ ی وژړل د مسلسل ژړا سره استعمالیږي.

**ورڅه** : میراث، ترکه، پاتې شوې مال جائداد.

**ورځ** : د شپې ضد، د شواروز هغه حصه چې نمر یکښې وي. د میاشتې دیرشمه برخه.

**ورځپانه** : اخبار، روزنامه.

**ورځنې** : د هغه نه، ورځنه کړې.

**ورځنے** : روزانه، ورځ سره منسوب

**ورځی** : ورا، د ښځو جنج چې د وادهٔ پـه ورځ د ناوې کور ته ځي.

**ورچانې** : بهـر، ورچنې، ورځنې، له ورهٔ بهر.

**ورچنې** : وګورئ ورچانې.
**ورخ** : هغه ناله چې پټې ته پرې اوبهٔ تیریږي. ناکه. اوبو ته تړلے بند، د اوبهٔ خور د لښتي سرډب، اړخ، د بدن یوه ډډه، طرف.
**ورخاړے** : لاړژن. د ګډو بیزو یو مرض. یو ساګ چې د سلاد په طور هم خوړلے شي.
**ورختل** : په چا حمله کول، بره ورتلل، وروچتیدل.
**ورخطا** : په تیزی ور روان، ور خوشے، ورشتی.
**ورد** : هغه کار چې روزانه کیږي او ناغه پکښې نهٔ وي، وظیفه.
**وردانګل** : ورټوپ کول، ورجوکل، ځهٔ ته ټوپک کول، ور غورځیدل،
**وردي** : د سپائي سرکارې لباس.
**ورزش** : وجود ته مسلسل حرکت ورکونه، خواري، مشق،

**ورژل** : ورزل، ژوبلول.
**ورږه** : زغانځه، یوه مشهوره حشره چې تور رنګ لري او په ټوپونو ګرځي چرته چې انسان وچیچي هغه ځاے پړسیږي او خاربښت کوي، کله کله د طاعون د خوریدو ذریعه هم ګرځي.
**ورستنیدل** : ور واپس کیدل، بیرته ورتلل، ور ستونیدل.
**ورستول** : زړول، ناقابل استعمال کول،
**ورستیدل** : له کاره وتل، زړیدل، فرسوده کیدل، د کار قابل نهٔ پاتې کیدل.
**ورسک** : د مخ هغه حصه چې ویښتهٔ پرې وي. شونډه. د دوؤ غرونو په منځ کښې تنګه لار. روبند، تربوزک، کوم ځاے چې غر او میدان یو ځاے شوے وي. د خرهٔ یا د اوښ پوزه. هغه پګړی چې د زنې لاندې تړلے شوے وي او

مخ پرې پټ شوے وي. غاړه، پشتي.

**ورشو** : د څاروو او ځناورو د څرن ځاے، واښهٔ لرونکے میدان، چراګاه،

**وربښت** : وریدنه، وور. واوره وریدنه، واوره کیدنه.

**وربښودل** : ښکاره کول، ښودل، ورزده کول، ور ښوول، وربښیل.

**ورطه** : ګرداب، د هلاکت ځاے.

**ورع** : پرهیزګاري.

**ورغالے** : د اندازې نه کار اخستنه، قیاس، اټکل.

**ورغړیدل** : ور غورځیدل، ور ګوزاریدل، ورپریوتل.

**ورغومے** : د چیلی بچے چیلوکے. د شمسي کال لسمه میاشت. د اسمان لسم برج.

**ورق** : صفحه، پاڼه.

**ورقه** : پاڼه، د کتاب صفحه.

**ورک** : چې د انسان له نظره پټ یا پناه وي. نهٔ ښکاریدونکے، نهٔ پیدا کیدونکے، ضائع.

**ورکړه** : خیرات، صدقه، بخښنه،

**ورکړه راکړه** : معامله، خپلوي کونه، رشته کونه، لین دین.

**ورک لیونے** : سخت مئین، شیدا.

**ورکوزول** : ورښکته کول، لاندې ورروستل، ورکوزیدل : ښکته ورتلل، کوز ورتلل، لاندې ورتلل.

**ورکول** : بخښل، عطا کول. د خپلې قبضې نه د بل قبضې ته سپارل، خواله کول. وهل، جاري کول،

**ورکول** : ضائع کول، لاپته کول، ختمول، بې درکه کول.

**ورکه** : ورک شوے، ورکه شوې، بې درکه.

**ورکیدل** : ورکړے کیدل،

**ورکیدل** : ختمیدل، بې

درکـه کیدل، لاپته کیدل، ورک کیدل.

**ورګله** : بې تامله، بې محابا، بې ویرې د هر څهٔ نه ورتیر، بې پروا.

**ورګډول** : یو ځای کول، شاملول.

**ورلاندې** : ورښکته، ورکوز،

**ورلره** : هغهٔ لره، هغې لره، ورته.

**ورله** : امیدواره، چې په ګیډه ئ بچی وي، حامله، شیګاره، بلاربه.

**ورله** : ورلره، هغهٔ له، هغې له.

**ورم** : د بیماری یا زخم په وجه د بدن پړسیدنه، پړسوب، پاړسوب.

**ورمولی** : د ماشومانو یوه بیماري چې د هغې په وجه ئ دستونه کیږي.

**ورمیږ** : څټ، مرۍ، غاړه.

**ورندار** : د ورور ښځه.

**ورندې** : ډیر وریدونکی، مسلسل وریدونکی.

**ورنه** : ورځنې، له دغه، له دغې خبرې،

**ورنیکهٔ** : د نیکهٔ پلار، د نیکهٔ نیکهٔ، غور نیکهٔ.

**ورلی** : اورنی، هغه کپړه چې پکښې ماشومان ترلی شي.

**ورو** : په قلار، په ارام، په مزه، د تیز یا زر ضد.

**وروځه** : د سترګو نه پاس د ویښتو نری کرښه.

**ورود** : دننه داخلیدنه، راتلنه، رارسیدنه، تشریف راوړنه.

**ورور** : یو داسې کس چې بل سړي یا ښځې سره د یو مور پلار نه یا د یوې مور نه د پیدا کیدو تعلق لري. په وروښې حالت کښې سکه ورور بللی شي. ځنې وخت د سوم په ځای وئیلی شي، برادر، ډیر خوږ دوست.

رشته دار.

**وروورولي** : وروور ګلوي، پخه دوستي، برادري.

**وروړل** : چاله اوړل، چاته رسول.

**ورووست** : پخوانے، زوړ، رووست، خوړلے شوے، کچه شوے، خراب شوے.

**ورووستول** : خرابول، زړول، استعمالول، ورستول.

**ورووستل** : ورلـه بوتلل، ورله رسول.

**ورووستينبال** : په اخر کښې، اخري کښې.

**ورووستنے** : شاتنے، اخرنے، اخري

**ورول** : د باران د څاڅکو په شان تويول، ګوزارول،

**ورون** : پتون، ښانګه، نله، د بنيادم په بدن کښې د کناتې او د ګونډې تر منځ خامے (ټګونږ)

**وروسے** : ورنسے، خيزنسي، سيزلي

**ورو ورو** : په قلار قلار، په مزه په مزه.

**ورهٔ** : د ور مغيره حالت.

**ورهسته** : لرې، يو خواته.

**ورهنه** : کسب، هنر، کار، شغل.

**ورهول** : خلاصول، ازادول.

**ورهيسته** : لرې، يو خواته، د لرې، ورهسته.

**وريا** : حاشيه، ډير لرې، په فاصله.

**وريت** : د اور په تاؤ پوخ، په انګار پوخ، کباب شوے، سوزيدلے، قهر اخستے، غصه شوے.

**وريتول** : په اور پخول، نيني کول. غصه کول.

**وريته** : په اور پخ شوې غله، کباب کړې غوښه، په اور پخ شوې تيکه. د وريتو غوښو سلمستيا.

**وريتيدل** : په اور پخيدل، نيني کيدل، سوزيدل، غصه

کیدل.

**وریځ** : پـه اسـمان هغه لړې چې باران ترې وریږي.

**ورید** : د څټ غټ رګ، شاه رګ، شه رګ.

**وریژه** : یو قسم غله.

**ورین** : کشاده، ارت، عام طور سره د تندي د صفت په طور استعمالیږي.

**ویندار** : د ورور ښځه، بابي، ورندار.

**ورینګې** : نرې نرې باران،

**وریني** : خـوشـحـالـه، سو کاله.

**وریدل** : بـاران کیـدل، متواتر څۀ څیز د بره نه لاندې راپـریوتل، لکه کاڼي، ګلې او داسې نور.

**وریره** : د ورارۀ مؤنـث، د ورور لور.

**وریښل** : نغښتل، سکښتل، وریشول.

**وریښم** : ریښـم، یـو قیمتي تـار چـې د یـو قسم چنجي نه حاصـلولے شي او کپړه ترې جوړیږي.

**وړ** : جو ګـه، د اعتبـار قابل، مناسب، موزون.

**وړ** : زورور، پـه حقـه، بـې ګناه، د پړ ضد.

**وړاندینے** : مـخـکښنـے، پخوانے.

**وړاندې** : مـخـکښـې، وړومبې.

**وړانګه** : پلوشه، رڼا.

**وړانه** : د وړ کیـدو حـالت، بې ګناهي، ګتېه.

**وړانه پړانه** : حق نـاحق، ګـټـه بـائیلات، دروغ رښتیا، وړه پړه، نفع نقصان.

**وړل** : یو شے د خپل ځاے نه بـل ځـاے تـه منتقل کول، رسـول، وچتـول، زغـمـل، برداشت کول.

**وړمه** : د وړم مؤنث. د ورځ یـا شپې د صفـت پـه طـور استعمالیږي.

**وړمـه ورځ** : تیـرې ورځې

پسې تیره ورځ.

**وړوکی** : کمکی، کوچنی، د ستر ضد.

**وړوکی اختر** : عید الفطر. د هجري کال لسمه میاشت.

**وړول** : میده، کول، ریچې کول،

**وړومبنی** : وړومبی، مخکښنی، تیر شوی.

**وړومبی** : مخکښینی.

**وړومبی خور** : ربیع الثاني، د هجري کال څلورمه میاشت، د باره وفات نه پس اسلامي میاشت.

**وړومبی** : وړومبنی، اولنی، مخکښنی.

**وړه** : په قد عمر یا وزن کښې کمه ماشومه،

**وړه** : فتح، د وړ کیدو حالت. د پړه ضد.

**وړه پړه** : حقه ناحقه، حق ناحق،

**وړین** : له وړی نه جوړ شوی.

**وړینه** : له وړی نه جوړه شوې، پشمینه.

**وړۍ** : د دالو او قیمې نه جوړ غونډان چې کټوی کښې اچولی شي.

**وړۍ** : د ګډو یا اوښانو ویښتهٔ او له دغو ویښتو جوړ تارونه، پشم.

**وزارت** : د وزیر کار، د وزیر عهده.

**وزر** : د مرغانو بڼه، ویښتهٔ، د مارغانو پرونه. مټ، سپک خیز، د کتاب جلد،

**وزګار** : بې روزګاره، فارغ، کار نهٔ لرونکی، بیکاره، بې کسبه.

**وزله** : بهانه، چاره، سبب، ذریعه، وسیله.

**وزن** : جاج، تول، اندازه، برابري، توازن. پړه، د کولالانو پړه، عزت، بوج، بار، مقدار. په علم عروض کښې د شعر بحر.

**وزیر** : د بادشاه یا حکومت

نائب.

**وزیره ګوته** : د لاس د منځنی ګوتې او کچې ګوتې ترمنځ ګوته.

**وژل** : قتل کول، مړ کول، خون کول، قتلول.

**وژمکی** : وږمکه، سپوږمی.

**وژه** : د ختې پله، پله.

**وږد** : د لنډ ضد. په قد قامت کښې وچت. یوه خاصه فاصله لرونکے.

**وږدول** : راښکل، لویول، طوالت ورکول.

**وږم** : سخا بوئ، خراب بوئ.

**وږمه** : یخه هوا، نرے باد. علامه.

**وږے** : نهر، شوقي، شوقین.

**وږے** : د غنمو اوربشو جوارو وغیره هغه خوشه چې پکښې دانې وي. د شهدو د مچو د ګبین هغه حصه چې پکښې شهد وي.

**وس** : طاقت، کوشش، زور، واک، اختیار، ځیز.

**وساطت** : واسطه، ذریعه، وسیله.

**وسائل** : د وسیله جمع.

**وسپنځړے** : د وسپنې زنګ، د وسپنې ځیرے چې عام طور سره د زیړې په مرض کښې پکارولے شي.

**وسپنه** : په معدني ځیزونو کښې له ټولو زیات استعمالیدونکے دهات چې فولاد ترې جوړیږي. هغه عنصر چې فارمولا ئې ایف آئي او ایټمي شمیر ئې ۲۶ دے.

**وستکار** : هغه حلق چې د کلي په ښه بده کښې خدمت کوي او ځنې پیشو کښې مهارت لري. استکار.

**وسط** : منځ، مرکز.

**وسطي** : منځنے، منځمے، مرکزي.

**وسعت** : ارتوالے، پلنوالے، لویوالے.

**وسله** : اسلحه. د جنګ جګړې اوزار. ټوپک، تماچه، چاړهٔ غرض هر هغه شے چې جنګ جګړه کښې پکاریږي

**وسمه** : د نیل پاڼې چې ویښته پرې تورولے شي خضاب.

**وسواس** : وهم. فکر. وسوسه، ویره، خطره. شک، ګومان، ګمان.

**وسوسه** : وګورئ وسواس.

**وسیع** : ارت، پلن، فراخ.

**وسیله** : سوب، ذریعه، سبب، اسره، طفیل، ضمانت، رسوخ.

**وسیم** : ښکلے، ښائسته، ډولے.

**وشته** : ټوقه، مسخره، مزاح.

**وشتي** : ټوقي، ټوقمار، وشتي کونکے.

**وښکل** : ایستل، بهر کول، وباسل، وکاږل.

**وښکے** : د خلي یو طرف، د خلي قبضه، کوم ځاے چې دواړه شونډې یو بل سره نګښلے وی.

**وښے** : کنګس، کنګس، ښکرے، ګجره، باهو. لاس ته د اچولو یو کالے.

**وصال** : ملاقات، یو ځاے کیدنه، مړ کیدنه، ختمیدنه، د تصوف په اصطلاح کښې په وحدت کښې فنا کیدنه.

**وصف** : ښهٔ والے، ستائینه، تعریف، خوبي.

**وصیت** : نصیحت. د خپل مال جائداد یا تعلقاتو په باره کښې له مرګه مخکښې یا په سفر د تللو په وخت پریښودے شوے هدایت چې عمل پرې د مرګه پس کولے شي.

**وضاحت** : تشریح کونه، ښه خبره کونه، تفصیل بیانونه.

**وضع** : صورت، شکل، حالت.

**وضعدار** : عاجز، عاجز طبع، په یو حالت خوښ.

**وضو** : اودس. د مانځهٔ دپاره په شریعت کښې مقرر اندامونه وینځل.

**وطن** : علاقه، ملک، د پیدائش ځاے، قوم، د یو قوم په شریکه د وسیدو ځاے او علاقه.

**وطي** : غو، جماع، کوروالے، اصل معنيٰ د پښو لاندې کول.

**وظائف** : د وظیفې جمع.

**وظیفه** : د الله پاک ذکر. هغه خوراک چې طالبانو ته ورکولے شي. منصبي فرض. د سکولونو کالجونو وغیره طالب علم ته ورکیدونکے رقم. د یوې ادارې له خوا مستحقینو ته ورکیدونکے رقم.

**وعده** : عهد، قول، اقرار، قرار، لوظ.

**وعظ** : نصیحت، ناصحانه تقریر، پند.

**وعید** : د سزا ورکولو وعده.

**وغیره** : د عربی مرکب ناقص چې پښتو او نورو ژبو کښې د اسم په طور استعمالیږي. او نور، ورسره نور، او له دې نه سیوا.

**وفا** : پت پالنه، د یارانې او دوستی وعده پوره کونه، ملګرتیا کونه، سر ته رسونه، د جفا ضد.

**وفات** : مرګ، مړینه.

**وفادار** : وفا کونکے، وفا لرونکے.

**وفاق** : موافقت، اتفاق، اتحاد، یووالے. د څنو صوبو یا ریاستونو مجموعه چې اندروني طور سره خپل واک لري.

**وفد** : جرګه، یو ټولے چې د مطالبې کولو دپاره چا له لاړ شي.

**وفود** : د وفد جمع.

**وقار** : عزت، قدر، متانت،

شان و شوکت.
**وقـائع** : د وقیعـه جمـع، حادثې، واقعات، خبرونه.
**وقـایه** : د کتـاب جلـد، کانتې.
**وقت** : وخت.
**وقعت** : عزت، اعتبار، باور.
**وقف** : سپـارلـې شوې، سپارلې، خیرات شوې،
**وقـفه** : مهلـت، لږ ساعت، دمه کو نه.
**وقـوع** : واقـع کیـدنـه، صادریدنه.
**وقـوعه** : واقعـه، حـادثـه، پیښه، صدمه، هنګامه.
**وقوف** : پیـژنـدنـه، شعور، تـجربه، علم، پوهه، د حج په مـوقـع د حـاجیـانو په عرفات کښې ایساریدنه.
**و کـاږل** : وبـاسـل، ایستل، وښکل، ویستل.
**و کالت** : د وکیـل پیشه، د وکیـل کـار. د افـغـانستـان د شورئ رکنیت.
**و کـر** : اکـر، بـڼـه، څیره، رنګ، وضع، جثه.
**و کښل** : وښـکـل، وباسل، ایستل، ویستل.
**و کیل** : اختیـارمن، نـائب، واکـمـن، مـختـار، وکـالـت کـونکـې، په عدالت کښې د مدعي، مدعا علیه یا د عدالت لـه خوا پیش کیدونکې قانوني مـاهـر. د افـغانستان د شورئ رکن.
**و ګړې** : بـنـده، انسـان، سـړې، کـس، تـن، غـړې، خلق، عالم، فرد.
**ول** : پیـچ وتـاب، تـاؤ، کږلیچ،
**ول** : انـدازه، هـوش، میـانـه روي. خبـر، خبـره، حکمت، چـل، هـنـر، ارزان، سپـک، ګرداب، قسم، ګواهي، تمبه. دروازه، ګـرمـه هوا، ګرم باد، مناسب حال، معامله.
**ولادت** : پیـدائـش، پیـدا کیدنه،

**ولاړ** : پاڅېدلی، قائم، ایسار، منتظر، د ناست ضد.

**ولایت** : د ولي مرتبه، بزرګي. د ملک صوبه، د صوبې د والي دفتر. د برطانوي حکومت مرکز لندن.

**ولجه** : لوټ، تالان، مال غنیمت.

**ولد** : ځوی، زوی.

**ولس** : اولس. خلق، وګړي، عوام.

**ولسوالي** : افغانستان کښې يو انتظامي وحدت. لکه ضلع.

**ولقه** : واک، اختيار، ولکه.

**ولکه** : ولقه. سپارنه، قبضه، علاقه، ډنډ، چکله.

**ولل** : وينځل، مينځل، پريمينځل.

**ولموړے** : اورمولے، ورمولے، د ماشومانو يوه بيماري چې پکښې دست او قے راځي.

**ولور** : ورور، د سخرانې له خوا ناوې ته مقرر شوې پيسې.

**ولول** : کونډه کونډه، ولونه ولونه، کنګوتې. پيچ در پيچ.

**ولوله** : جذبه، جوش.

**وله** : والـه، ويـاله، هغه لښتے چې نهر نه پکښې د پټو دپاره د اوبه خور اوبه رابيلې کړے شوې وي.

**ولي** : نيک، بزرګ، دوست، د الله تعالی دوست، وسيلے.

**ولي عهد** : د بادشاه ځوے چې د هغه له مرګه پس د تخت حقدار وي.

**وليمه** : د واده مسنونه روټي.

**ونج** : بدل، عوض، لين دين، کاروبار، تجارت، سوداګري، نقص.

**وندر** : د خناور د مرى پړے، هغه لوے دام چې کبان پرې نيولے شي.

**وندنے** : د شنې ګيا، غلې يا وچې پترى جوړ کړے شوے

پسې چې ګیلوې پرې ترلې شي.

**ونډه ونډه** : پارچه پارچه، ټوټه ټوټه، حصه حصه، برخه، برخه.

**ونډه** : حصه، برخه، بخره. د پیو لوښلو دپاره لګي ته ور کېدونکې خوراک.

**ونډی** : برخه، ټوټه، حصه هغه کله چې په شریکه واخستلی شي او غوښه ئ اخستونکو کښې تقسیم کړې شي

**ونه** : درخت، درخته، یو لوی بوټې چې غټه لرګي لرونکې تنه لري.

**وورېا** : باران.

**ووری** : د غاښونو تر منځه غوښه، اوری.

**وهاب** : ډېر بخښونکی، د الله تعالیٰ یو صفتي نوم.

**وهابي** : وابي. د شیخ عبدالوهاب د فرقې سره تعلق لرونکي چې ځان ته اهل حدیث وائي.

**وهل** : ټکول، لګول. شکست ورکول، ماتې ورکول، ګوزار ورکول، ډیکه ورکول، خوړلې کیدل.

**وهم** : شک، ګومان، ګمان، خیال.

**وهمي** : وهم کوونکی، شکي مزاج.

**ویاړ** : غرور، فخر، تکبر، جونګړه، کوډله، د وسیدو ځای.

**ویالهٔ** : وله، واله.

**ویت** : پلن، ارت، [illegible]، پرانستې،

**ویتیدل** : ارتیدل، پلنیدل، وازیدل.

**ویتې چیتې** : فضول خبرې، بکواس، چټیات.

**ویجاړ** : وران، کنډر، شړ، ویران.

**وير** : ژړا، فرياد، ژړا انګولا، ماتم.

**ویرپیټ** : ژړا انګولا، های

هایۍ، ساندې،

**ویرول** : پــــه زړهٔ کښې اندیښنه پیدا کول، خطره پیدا کول، ډارول، بیرول.

**ویره** : بــوږنیـدنــه، ډار، یره، خوف، ترهه.

**ویریدل** : ډاریــدل، په زړهٔ کښې انـدیښــنـه پیدا کیدل، خطره پیدا کیدل،

**ویړ** : خــوږ، ارت بیــرت، عوږیدلی.

**ویړول** : خوږول، غوړول، ارتول.

**ویړیدل** : حوریدل، غوړیدل، ارتیدل.

**ویسا** : بـاور، یقین، اعتماد، اعتبار.

**ویســاک** : بیســـاک، د هـنـدي کـال وړومبی میاشت چې د اپریل مئ سره سمه وي.

**ویستل** : ایستـل، خارجول، بهر کول.

**ویـــش** : د درد، افسـوس، خوږ، حسرت د اظهار کلمه.

**ویشتل** : ګـزار کول، ښکار کول، په ګولی یا غشي وژل.

**ویـښ** : بیـدار، خبـردار، د اودهٔ ضد.

**ویښول** : بیدارول، له خوبه راپاځول،

**ویښیدل** : بیــداریــدل، لــه خوبه راپاڅیدل.

**وینځل** : په اوبو اچه کول، پـاکـول، صـفا کول، مینځل، پریمینځل.

**وینځه** : د کور نوکره ښځه، د مرئي مؤنث.

**ویـنه** : هـغـه آکسیجن پیدا کـونـکې مائع چې د انساذانو، مـرغـانـو او ځناوررو په رګونو کښې ګرځي. د اعلې ځناوررو داسې مائع په رنګ سره وي. نسل، اولاد.

**وینه زوه** : د نـنـکی دننه نو او وینه.

**ویـخ** : جـر، جــرړه، بیـخ، لاندې، تل مونډ.

**ویزار** : بـې پـروا، مړه خوا،

مبرا، زړۀ موړے.
**ويزه** : د سرکار له طرفه بل ملک ته د تلو اجازت نامه.
**ويسن** : بيسن، د چنو اوړه.
**ويش** : تقسيم، حصه کونه، ويشنه،
**ويشله** : د غنمو د اوړو ډيره نرمه روټۍ.
**ويښته** : په حيواناتو او خاص طور سره انساني سر باندې نرۍ د تار په شان ريښې.
**ويلنے** : ويـنـلـے، ايلنے، يو خودرو بوټے چې د ولو په غاړو کيږي او د ګيډې د درد دپاره پکارولے شي. ځنګلي پودينه.
**وينا** : خبره، بيان، تقرير. شاعرۍ. بد رد وئيل، ستغې سپورې وئيل.
**وينۀ** : يو قسم ميږي چې اکثر په ښوره زمکه يا ديوال کښې کيږي.

**هـ :** (هـې) د پښتو د حروف تهجي شلوېښتم حرف. د ابجدو په حساب ئ قيمت پنځهٔ (۵) دے.

**ها :** اګـی، اويـه. د چرګو تخم. کلمه تاسف، افسوس.

**هاتف :** غيبي اواز. فرشته

**هاتي :** خرتم لرونکے يو مشهور غټ ځناور.

**هادي :** هدايت کونکے، پيشوا.

**هـار :** د غـاړې اميل چې قيمتي کاڼي پکښې لګيدلے وي. د ګلونو ګول لړی چې په غاړه کښې اچولے شي. ازميښت، ازمائش.

**هار :** يوه لاحقه چې د تورو وروستو ولګي نو حاصل مصدر ترې جوړ شي لکه شرنګ نه شرنګهار.

**هـاړ :** اړ، اهـاړ، د سختی ګرمی مياشت د بکرمي کال مياشت چې له جيټ نه پس او د پشکال نه مخکښې وي.

**هاضم :** هضم کونکے.

**هـاضمه :** د هـضـمولو آله، هضمه.

**هـاغـسې :** هـغـه شـان، هغسې.

**هاغه :** هغه، اغه.

**هاکي :** يوه مشهوره لوبه. هغه لرګے چې دغه لوبه پرې کولے شي.

**هال :** تـالار، هـغه لويه کمره چې غونډې پکښې کيږي.

**هاله :** ګول حلقه، شپول، د سپوږمی کنډول، چورلنده.

**هان :** او، هو، هاؤ، د جواب کلمه.

**هـاويه :** ژوره کـنـده، غرقه کـنـده. هغه ښځه چې اولاد ئ مړ شوے وي.

**هاها :** د خوشحالی کلمه په زوره د خندا اواز.

**هاهو :** شوروشر، ډير شور، شـور زوږ، اسـمـان پـه سـر اخستل، چـغ چـوغ، شـور شغرب.

**های** : د درد و غم په وخت له خلې نه وتونکې کلمه، وی، وای، هئ، وش.
**هبه** : خیرات، سپارنه، صدقه، بخشش، عطا کونه.
**هپه** : چا پسې په جمع وتنه، د چا خلاف پورته کیدنه، د حملې په توګه د ګڼو کسانو تلنه، حمله، چپاؤ.
**هتک** : بې عزتي، د چا په شان کښې ګستاخي کونه، د چا توهین کونه، رسوائي، بې حرمتي.
**هتیار** : وسله، اسلحه، د جنګ سامان.
**هټ** : هټۍ، دوکان. ضد، اړې کونه. بیکاره. کوشش، خواري.
**هټۍ** : دوکان، اټۍ، د هټ اسم تصغیر.
**هجا** : حرف له اعراب نه ظاهرونه، بیزې کونه، هجه، پیزې کونه.
**هجر** : بیلتون، فراق، هجران، جدائي.
**هجران** : هجر، بیلتون، فرقت، جدائي.
**هجري** : هجرت سره منسوب هغه کال چې د حضور پاک صلي الله علیه وسلم د مکې نه مدینې ته هجرت کولو سره سم شروع کیږي.
**هجړا** : ایجړا، هیجړا، ښخونګ، نامرد، نرښځے.
**هجو** : د شاعرۍ په اصطلاح کښې د چا سپکاوے بیانونه، د چا مذمت کونه.
**هجوم** : اشر نشر، ګڼه ګونه.
**هجه** : په ټکو وئینه، هڅه.
**هڅه** : طمع، امید، لټون، درک، شوق، هوش، خواهش، اشتیاق، تلوسه، آرزو، طلب، خوښه. حمله، تلوسه
**هدایا** : صدقې، تحفې، هدیې.
**هدایت** : رهنمائي،

لاربنودنه،
**هدف** : گلځري، گلجري،
نښه، نشانه.
**هُدهُد** : يوه مشهوره مرغۍ چې په سر ئ تاج وي، بدبرک، ملا چرګک، ګوډې چرګ.
**هديره** : قبرستان، مقبره، اديره، مړيستون.
**هديه** : ډالۍ، تحفه، نذرانه، سوغات. قيمت، بيعه، بيه.
**هډ** : هډوکے، اډوکے اصالت او شرافت.
**هډو** : بالکل، چرې، هرګز، قطعي، يره خو.
**هډوکے** : د حيواني جسمونو هغه سخته حصه چې وجود پرې اړانه وي. يو سخت څيز چې په وجود کښې وي.
**هذيان** : د سختې بيمارۍ په وخت لـه خلې وتونکې ګډې وډې خبرې، اوتې بوتې.
**هر** : هر هغه، هر څۀ، هر څوک، ټول، تمام، يويو، يو، د تعجب ويرې او کرکې په وخت له خلې نه وځي.
**هراس** : ويره، خوف، ډر، ډار.
**هراسان** : تريدلے، نااميد، خوفزده، ويريدلے.
**هراند** : بزدله، ويرندونکے، ډرپوک.
**هرانډ** : پريشان، سرګردان.
**هراول** : د فوځ وړومبۍ جنګيدونکې دسته.
**هرج** : شور شر، درز غوبل، خلل، وقفه، نقصان.
**هرجانه** : تاوان،
**هرجائي** : هرچاکے، بيوفا، هردرے.
**هر چا** : هر يو، ټولو.
**هر چرته** : هر ځاے.
**هرچند** : هر څو، هر څومره، څومره چې.
**هر ښنګه** : هر رنګه، هر شان.
**هر څو** : هر چې، څنګه

چې، هر خل، هر چند.
**هر څۀ** : تمام، ټول، کل واړه، څۀ چې موجود دي.
**هردرے** : چې د هر در وي. اواره، هرجائي، هرچاګے.
**هر رنګه** : هر څنګه، په هر رنګ چې وي، په هره طريقه.
**هرزه** : چې فضول خبرې کوي، لوفر، فضول، بې هوده.
**هر کاره** : خر کار، چې په خرونو کاروبار کوي.
**هر کاره** : مخبر، قاصد. قرائي پان، وړونکے، باري، بار کښ، باربردار.
**هر کلے** : خيرمقدم، پخير راغلے،
**هرګاه** : کوم وخت، هر حال کښې، چې څۀ وخت.
**هرګز** : هيچرې هم نه، هيڅ کله هم نه، بالکل نه.
**هرګوره** : ضرور، يقيناً، ارومرو، خامخا، البته.
**هرومرو** : ارومرو، خامخا، ضرور.

**هره** : هره يوه. کلمه ندا، خرې يا خر ته د تلو حکم، د خرو شړلو اواز.
**هرهر** : يو بوټے او د هغې تخم چې کچه او پوخ دواړو حالتو کښې خوړلے شي او خشاک ئې سيزلو له پکاريږي.
**هريړه** : د يوې دوايي نوم، حکيمي دارو، هليله، اريړه.
**هړپې** : هړپے، صندوقچه، وړو کے دبلے.
**هړتال** : د صاحب اختيار خلاف د احتجاج په طور د کار نه اجتماعي انکار، د کاروبار مرکزونه احتجاجاً بندول، د دو کانونو بندونه، يو زهريله معدني مرکب چې دارو کښې پکارولے شي.
**هزار** : لس سوه. بلبل، د موسيقۍ يوه آله. د څناورو د ګيډې يوه حصه، پترورې، پتروجي، د لرې نرۍ حصه، هزارخواني.
**هزاره** : سور ګل، ججوے.

سور کلی،
**هزال** : بکواسي، بیهوده گو، تېوقمار.
**هزل** : ټوقې مسخرې، ټوقې ټقالې، بیهودګي، هزلیات.
**هزیمت** : ازیمت، میدان پرېښودنه، ماتې، شکست، فرار، تېښته.
**هسپتال** : اسپتال، د علاج ځای، روغتون.
**هست** : ژوند، زیست. د نیست متضاد، شته، شتوالی.
**هستمند** : دولتمند، شته من.
**هستول** : جوړول، ابادول،
**هستي** : وجود، کائنات، طاقت، مال و متاع، ذات.
**هستیدل** : ایساریدل، وسیدل.
**هسک** : پچه، قرعه، ایسک، خسڼی،
**هَسک** : وچت، لوړ، بره.
**هسکول** : لوړول، وچتول، شاربل، لړل، حیرانول، سر ګرداڼول، پریشان کول، خسڼی اچول. قرعه اندازي کول،
**هسکیدل** : لوئیدل، وچتیدل، لوړیدل.
**هسک** : د مرغۍ جاله.
**هسې** : بې فائدې، مفت، هم هسې. لکه، شان، په شان، داسې،
**هشاش** : خوشحاله، تازه، شادان، هشاش بشاش.
**هښیار** : هوښیار، عقلمند، پوه، دانا، زیرک.
**هضم** : معده کښې د خوراک په وینه کښې د بدلیدو حالت. حل شوی، خوړلی شوی، غصب شوی.
**هضمول** : هضم کول، خوړل. خوراک کول، خوراک په خلهٔ چیچلو نه پس خیټې ته تیرول، پردي مال غصب کول، د چا حق خوړل.
**هضمیدل** : هضم کیدل، د

خوراک د وینې حصه جوړیدل. حرام مال خوړل.
**هغسې** : هسې، په هغه شان، هغه رنگ.
**هغه** : غیر موجود سړے یا څیز یا ځاے.
**هغه دغه** : ټال مټول، اخوا دیخوا، انې بانې، عذر.
**هفته** : د خالي نه تر جمعې د ورځو شمار. د جمعې نه پس ورځ، خالي. د خالي ورځ.
**هک** : پریشان.
**هک اریان** : ډیر حیران.
**هک بک** : هک پک، حیران. ګوته په خله.
**هک پک** : حق حیران، ګوته په خله.
**هګی** : اکې، اویه، ها، اوده.
**هل** : د یوې کولو آله، یوې.
**هلاک** : مړ شوے، فنا، قتل شوے.
**هلاکت** : مرګ، تباهي، هلاکي.
**هلاکول** : مړ کول، تباه کول.
**هلاکیدل** : مړ کیدل، تباه کیدل.
**هلال** : نوې میاشت، د وړومبی شپې نه تر دریو یا دوؤ شپو پورې د سپوږمی حالت.
**هلاهل** : زهر قاتل، تیز زهر.
**هلک** : د جینی مذکر. نر، ماشوم، بچے. سپک، کم وزنه، کم وزن لرونکے.
**هلکانی** : خرابه او بدعمله ښځه، بچه بازه ښځه.
**هلکانے** : بچه باز، بچه خوش، هلک باز.
**هلکوالي** : هلکوانه، ماشومتوب، د هلکتوب وخت.
**هلواک** : تلوسه لرونکے، لالچي، بیړندے، جلت، تیز، ګړندے.
**هله** : چپاؤ، یرغل، داړه، هپه، تاخت، تاراج، حمله.

**هلۀ** : بیا، هغه وخت، هالۀ.
**هله ځله** : اله ځله، کوشش، زیار.
**هلـه ګلـه** : هلـه ګولـه، درزدروز، شـور شـغرب، ګنه ګونه، شور غوبل.
**هله هله** : ژر کوه، زر کوه، زر شه، شا به کړه.
**هم** : بیـا هـم، ځـکـه چې، علاوه، زیات له دې نه، اراده.
**همتا** : مثل، په شان، برابر.
**همځولے** : په یو عمر، د برابر عمر.
**همخانه** : په یو کالۀ کښې وسیدونکې، انډیواله.
**همدرد** : پـه درد کښې شریک، دوست، ملګرے، خیرخواه.
**همدم** : سیـال، بـرابـر، برابرې واله.
**همراه** : د لارې مـل، ملګرے، په یوه لاره تلونکې.
**همزاد** : یـو ځـاے پیـدا شوے هغه پیرے چې ماشوم سره یو ځاے پیدا کیږي او تر مرګه ورسره ملګرے وي.
**هـم زلف** : سـانـډو، د ښځینې خاوند.
**همساز** : همدم، دوست، یار.
**همسر** : پـه رتبـه کښې یو شان، برابر.
**همسفر** : د سفر ملګرے، چې پـه سفـر کښې سـره شریک وي.
**هم شکل** : پـه شکل یو شان.
**هم شیر** : چې د یوې مور پـۍ ئ رودلي وي، ورور یـا خور.
**همشیره** : د همشیر مؤنث، خور.
**هم عمر** : د یو عمر، د یوې هومره مودې.
**هم عصر** : د یو دور، د یوې زمانې، د یو عهد.
**همنوا** : پـه اواز کښې شریک، هم اواز.
**هما** : یـو خیالي مارغۀ چې د

هغهٔ په حقله دا خیال دے چې کهٔ د هغهٔ سورے په چا وشي نو هغه باچا کیږي.

**همال** : مثل، مثال، نظیر.

**همایون** : نیک بخت، بختور.

**همت** : بهادري، اراده، حوصله.

**همتناک** : همت لرونکے، د همت خاوند.

**هم دغسې** : هم دغه شان، هم داسې.

**همسا** : کونتهی، عصا، امسا.

**همـوار** : هـوار، اوار - د خیک ضد.

**همه** : ټول، تمام، کل،

**هم هغسې** : هم هغه شان، په هغه رنګې.

**همیانی** : بټخکی، بوسخکی، عتبه بټوه.

**همیش** : مدام، تل، هر وخت، همیشه، عمری، په محله تر قیامته

**همیشه** : وګوری همیش.

**هنجار** : طریقه، اصول، طرز، لاره. بې ډبه خپله خوښه کونکے، بې لارې، بې اصوله.

**هنجکے** : د نسوانی شرمګاه زیاتي عوښه.

**هنجه** : انجه، هینګ، یو حکیمی دارو چې ډیر تیز بوی لری.

**هنداره** : ایینداره، شیشه، ښیښه، د مخ کتو آئینه.

**هندسه** : شکل، عدد.

**هندکو** : د مغربي هندی ګروپ یوه ژبه، د هندی ورانه ژبه.

**هندکے** : د هندکو ژبې ویونکے.

**هندو** : د غیر مسلم قوم نوم. د هندوستان وسیدونکے یو کافر قوم. تور حال.

**هنداونه** : یوه لویه خیلې لرونکې میوه، تربوز.

**هندوبار** : هندوستان، د

هندوانو ملک.

**هنده** : په یوه ساه ښبنه، غوښتنه، تکل، اراده.

**هندي** : د هندوانو ژبه، هند سره تعلق لرونکي.

**هنډه** : هغه ارمان چې سړے ئ د تکمیل دپاره ډیر تړے وي. د زړهٔ غوښتنه، تکل، اراده، خواهش، مقصد.

**هنډ هنډ** : توکړې توکړې، سترے، د لاده باده پرېوتے

**هُنډی** : چیک، هغه کاغذ چې د رقم ادا کولو اړه‌ر پرې لیک وي.

**هنر** : فن، کمال، جوهر، زدکړه، کسب، مهارت.

**هنرمن** : د هنر خاوند، هنرمند،

**هنګام** : زمانه، دور، وخت، موقع.

**هنګامه** : شوروغوغا، ګرېږ، فتنه راوچتیدنه، ګنه ګوڼه.

**هنیدل** : د خر یا اس وغیره اواز کول، د خر مستي کول، په زوره خندل.

**هو** : د غوا، غوئي د بیدارولو یا شړلو اواز، د خر اواز.

**هو** : هنګامه، یرغل، حمله، ژبه، لوظ، او.

**هُو** : د صوفیانو په اصطلاح کښې الله پاک.

**هوا** : باد، کبر، غرور، خواهش، هوس.

**هواد** : ایواد، هیواد، لرې، په فاصله.

**هوادار** : داسې ځاے چې هوا پکښې لګي.

**هوار** : چې کنده کپره پکښې نهٔ وي. برابر هوار، تیز رفتار.

**هوارول** : سمول، یو شان کول، د کندو کپرو نه اوارول.

**هواره** : سمه، میداني علاقه، روغه، جوړه

**هواریدل** : سمیدل.

برابریدل، یوشان کېدل، ویرېدل، غوړېدل، جوړه راتلل، روغه کېدل.

**هواګیر** : تیز رفتار، سرسري، اوپره، وچت، بره.

**هوائي** : بې پروا، چې په هوا کښې وي، سرسري،

**هوبهو** : هم هغه شان، بالکل هغسې، یو رنګ، یو شان.

**هوټل** : هغه ځاے چې خوراک څښاک او د وسیدلو انتظام پکښې وي.

**هودج** : د زنانو دپاره د هاتي یا اوښ د شا کجاوه، هوده،

**هوده** : جادو، منتر، کوډه، سحر، د مارانو نیولو دم.

**هوډ** : د زړهٔ خبره نهٔ پرېښودنه، انکار کونه، په خپله خبره کلک ودریدنه، عزم.

**هوډي** : د هوډ خاوند، مستقل مزاج، خلاف، مخالف.

**هوډیالے** : د هوډ څښتن، د ارادې او عزم خاوند د کلکې ارادې مالک

**هور** : د مارغانو د وسیدو ځاے، حالہ. تیز و تند، چالاک. اور.

**هورې** : هلته، هغه خوا،

**هوړه** : اوړه،

**هوس** : لالچ، حرص، لوړه، ارمان، تمنا، خواهش، خوشحالي، ارام.

**هوستل** : هاستل، هغه ځاے چې طالب علمان پکښې د زدکړې په دوران کښې وسیږي. بورډنګ هاؤس.

**هوسناک** : عیاش، لالچي، حرصناک.

**هوسیدل** : ریږیدل، ارزو کول، خوشحالیدل.

**هوسۍ** : اوسۍ، لکه شویه، نرکشه، یو ځنګلي ځناور چې رنګ ئې سور بخن زیړ وي ښائسته سترګې لري او په منډه کښې چاخ وي.

**هوش** : فهم، ادراک، عقل.

هوبښ.
**هوښيار** : هښيار، زيرک، دانا، عقلمند، قابل، لائق، وړاندې وروستو خيال کونکے.
**هوک** : په خيال کښې ورک. لاهو.
**هوکړه** : وعده، لوظ، پښتو، ژبه، اقرار.
**هوکه سوکه** : ناقلاري او قلارے، کله ارام او کله کړاو.
**هوکے** : د کوژدن په سلسله کښې د جينې د ليدو وعده اخستنه، ګوټ. او، اقرار، لوظ.
**هول** : ويره، فکر. وحشي. بلي، مينچو.
**هولي** : د هندوانو يوه دستوره چې په يو بل پکښې رنګونه اچوي.
**هومبره** : دغه هومره، هومره، دغه قدر.
**هو هوا** : هواوا، مزې چرچې، سيل صفا، سيل سپاتې، زړۀ خوشحالونه، هواخوري.
**هويه** : اويه، ها، اکې، انده.
**هويدا** : څرګند، ښکاره، ظاهر.
**هئ** : افسوس، هائ،
**هئ هئ** : هائ هائ، د غم او افسوس کلمه.
**هيرا** : الماس، جوهر، ګوهر، يو قيمتي کاڼے.
**هيرو** : د قيصې مرکزي نارينه کردار. بادر سړے، تکړه سړے.
**هيروئن** : د هيرو مؤنث، يوه نشه لرونکے سفوف، پوډر، د افيمو نه جوړيدونکي پوډر.
**هيړ** : حالت، دور، وخت، نوبت، وار.
**هيړه** : خل، پيره، چل، وار.
**هيسته** : وروستو طرف ته، شا ته، دلته، ايسته.
**هيله** : طمع، توقع، اميد.
**هيله** : سرپه، حيله بهانه.
**هيله** : فقط، صرف، ايله

بیله.
**هیلی** : صحرائی مرغابی، یو قسم مارغه، ایلی.
**هیبت** : دبدبه، ویره، رعب.
**هیبتناک** : هیبت لرونکے، خطرناک، ویرونکے.
**هیجان** : تیزي، زور، غلبه، جوش، یشیدنه.
**هیچا** : د هیچ او چا مرکب، څۀ هم نه، څوک هم نه.
**هیچرته** : چرته هم نه.
**هیچرې** : چرې هم نه، په هیڅ قیمت نه، کله هم نه.
**هیڅ** : بې حقیقته، نۀ څیز، نشت، لږ.
**هیڅ بې هیڅه** : وچه په موچه، وچ په وچه.
**هیڅوک** : څوک هم نه.
**هیڅکله** : کله هم نه، چرې هم نه.
**هیر** : له یاده وتے، له حافظې نه وتے.
**هیرزړے** : هیرژن، هغه څوک چې هیر ئ ډیر وي.
**هیرژن** : هیریدونکے، هیرونکے.
**هیرن** : هیرزړے، غبي، شکوم، هغه څوک چې هیر پرې غلبه وي.
**هیرول** : له خیاله وتل، د یاداشت نه ویستل، له حافظې نه بهر کول.
**هیره** : ګیله مانه، د حافظې کمزوري.
**هیریدل** : په فکر کښې نۀ راتلل، له حافظې نه وتل.
**هیضه** : یو وبائي مرض چې پکښې قے او دست لګي.
**هیکل** : د بتخانې لوے مکان، صورت، شکل.
**هیواد** : لرې، په فاصله، بعید، د نزدې متضاد، په افغانستان کښې د وطن او ملک په معنې استعمالیږي.
**هیولا** : اصل، د هر څیز ماده، بد، بدشکله، غیر مهذب، شکل.
**هیئت** : شکل. علم نجوم.

**ي** : (يـا) يـائ معـروف. د پښتو يو څلويښتم حرف. د ابـجدو پـه حساب ئ قيمت لس (۱۰) دے.

**يا** : د عطف توری. په دوؤ يا زيـاتو څيـزونـو کښې د يو د مخصوص کولو کلمه.

**ياب** : لاحـقـه چې د اسم په اخر کښې راشي د موندونکي معني ورکوي لکه کامياب.

**يابو** : ټټو، اس، خرچو کے.

**ياجوج** : دوه شـرير قومونه چې ذکـر ئ پـه قرآن مجيد کښې راغلے دے، يـاجوج ماجوج، مجازا د فتنې نه ډک خلق.

**ياد** : پـه حافظه کښې حاضر د حافظې عمل، ذکر، مشهور.

**يادداشت** : حـافظه، ياد لرنه. د يـاد لرلو دپاره شوے ليک. حافظه.

**يادگار** : خيال، نښه.

**يادگيرنه** : يادول، ياداشت ورکول،

**يار** : دوست، اشنا، ملگرے،

**يارانه** : دوستـانـه، ملگرتيا، دوستي، اشنائي.

**يارباش** : دوستانو سره مينه کونکے، خوش طبع، مخلص، مينه ناک.

**يار باشنه** : هغه ښځه چې ډير ياران ساتي، ډمه، بداخلاقه.

**يـاري** : دوستـي، اشنـائـي، رفاقت.

**ياس** : مايوسي، نا اميدي.

**ياسته** : بياسته، رسی، پړے.

**ياغستان** : هغه علاقه چې د حکـومـت د کـنټرول نه بهر وي، غيره علاقه، علاقه غير.

**ياغي** : نـامـنونکے، نافرمان، قـانـون تـه غـاړه نه ايښونکے، باغي، سرکش.

**يـافت** : مـونـدلے شوے، رشـوت، گـټـه، آمدن، گټه وټه.

**ياقوت** : يو قيمتي کاڼے چې په مختلفو رنگونو کښې وي.

**يال** : د څناورو په څټ غټ

غـتې ويښتــه، څټې، غړی، د
څناورو څټې.
**يــالے** : يوه لاحقــه چې د
نسبت دپاره د بعضې اسمونو
پــه اخر كښې راځي لكـه د
جنګ نه جنګيالے ، د ننګ نه
ننګيالے.
**يـاور** : مـرستيــال، دوست،
ملګرے ، مددګار.
**يـــاوه** : عبـــث، خـــراب،
بكواس ، فضول، بيهوده،
**يبل** : يوه لاحقـــه چې اكثر
پښتو سـره راځـي لـكـه پښې
يبل، بربنډې پښې.
**يبلې** : ابلې، لوڅې، بربنډې،
اكثر د پښتو سـره راځي لكه
پښې يبلې.
**يتــامـې** : د يتيــم جـمـع،
يتيمان، بې موره بې پلاره.
**يتيم** : چې پلار ئ مړ وي.
**يتيـم خـانـه** : د يتيـمـــانو د
وسـيـدو ځاے. چـې د يتيمانو
پرورش پكښې كولے شي.
**يج** : كلك، سخت ځير.
**يخ** : د ګرم ضد. كنګل،
**يـخ پـخ** : سـوړ سـمـخ، يخ
مـخ. بې حسه، بې حركته، **دم**
ختلے ، ساه وتلے.
**يـخدان** : لــه څـرمـنې جوړ
شوے يو مخصوص صندوق
**يـخـنـې** : ښـوروا، د ژمـي
موسم، زكام.
**يخول** : سـړول، وژل، سزا
وركول.
**يخيدل** : سـړيدل، خواهش
پوره كيدل.
**يد** : لاس، يدين ئ تثنيه ده.
**يرغ** : خـوښـه، مـصلحت،
پړين.
**يرغز** : ځان له، تنها، يواځې.
**يـرغل** : حـمـلــه، يـرغـال،
تــاخـت، زغـــابښت، تـاخـاپي
حمله.
**يرغمل** : هغه څوک چې د
پيسـو په غرض تښتولے سي
كفيل، ضمانتي يرعمال
**يــرقان** : يو مـرض چې مخ
سترګې او بـدن پـكښې زېړ

شي زيږي
**یرول** : ویرول، دارول، ترول.
**یره** : زور، شدت، چې چرته په یوه خبره زور اچولی شي، بیشکه، خامخا، دا توری تکیه کلام دی. کلمه تعجب هم ده شاید چې د یاره مخفف دی.
**یزدان** : د خیر مالک، د پارسیانو د خیر خدای.
**یږ** : تور میلو، یږ.
**یسار** : بدشاګومی، بدقسمت، کیڼ لاس یا ګس طرف، ډیر زیات والی.
**یسیر** : هغه ماشوم چې مور ئې مړه وي.
**یشول** : جوش ورکول، ګرمول، خوټکول.
**یشیدل** : جوش خوړل، خوټکیدل.
**یعنې** : مطلب دا، غرض دا.
**یغما** : مال غنیمت، د لوټ مال.

**یقین** : اعتبار، اعتماد، باور
**یقینا** : خامخا، ارومرو، بیشکه، په یقین.
**یک** : یواځې، ځان له، یو،
**یک امان** : یک امانه، یو شان، برابر، یو هومره، پوره په پوره، یو اندازه، اماني، برجق، برجغ، سر تر سره.
**یکامانه** : سر تا سر، له یوې مخې، یک امانه.
**یکایک** : ناګهانه، ناڅاپه، سمدستي، غرد تپه.
**یکبارګي** : ناګهانه، په یو ځل.
**یکتا** : تنها، ځان له، بې مثال، چې د ځان په رنګ بل نهٔ لري. یواځې، بې نظیر، بې مثله.
**یکدل** : خیرخواه، همراز.
**یکرنګ** : یو رنګ، یو شان، صادق، د صفا زړهٔ خاوند، مخلص.
**یکه** : تنها، یواځې، یو، یکانه.

**سو** : یو خوا ته، یو طرف
ساکن، ودریدلے.
**ـ لخت** : تمام، سراسر،
دستي، فوراً.
**ـ مشت** : په جمع، په
ړه، په یو ځل.
**ه** : د تاش وړومبی پاڼه، یو
، ایکه.
**ي یو** : اکي یو، بیخي
خي، بالکل یو، نیازبین،
ت.
**ي یواځې** : بالکل
ي، بالکل تنها.
**نګي** : قرابت، خپلوي،
لے، اتفاق.
**نه** : نږدې، خپل، یواځې،
ي، بې مثله، بې سارې.
**ر** : یرغل، هجوم.
بحر، سمندر، دریاب،
. حصه، اړخ،
**ن** : قسم، سوګند.
ت، ښے لاس.
د نسبت کلمه چې د
په اخر کښې راځي لکه

د مالګه نه مالګین، خاوره نه
خاورین وغیره.
**ینه** : وینه، د بنیادم، خاروو،
مرغو وغیره په رګونو کښې
بهیدونکې د سور رنګ ماده.
اینه.
**یو** : یک، د پښتو شمیرې
وړومبے تکے.
**یوبه** : بزګر، دهقان.
**یوپ** : غرق، ډوب شوے،
غوپه.
**یو تربله** : خپلو کښې.
**یوحا** : هغه تور مار چې د
عامې عقیدې مطابق د زرو
کالو نه پس د خپل شکل
بدلولو قوت لري. ډیر خور،
زیات خوړونکے.
**یور** : د لیور ښځه،
**یورش** : هله، هپه، بلوه،
غلبه، حمله.
**یوز** : پړانګ، بور، بورګے،
پیش.
**یوستوے** : یو لړ، یو کس،
نرے، یواځې، د غبرګ ضد،

**جذر :** جرړه، اصل، ريشه، د رياضۍ په اصطلاح کښې د مربع متضاد، يو مربع شوے عدد چې بيرته خپل اصل ته وګرځولے شي لکه ۲۵ نه پنځۀ.

**جر :** مغلوب، پړ، پاتې، ماتې، شکست، الا، تحقيري کلمه، له خرۀ نه د اواز ايستلو دپاره مخصوصه کلمه.

**جرابه :** لـه ورۍ، نائيلون يا نور څۀ نه جوړه د پښو د اغوستو کڅوړه.

**جرأت :** بهادري، زړۀ ورتيا، شجاعت، ميړنتوب، جسارت.

**جراثيم :** نري وړۀ چينجي چې بې له خوردبينه په نظر نۀ راځي. واحد ئې جرثومه ده.

**جراح :** سرجن، د زخمونو علاج کونکے. ټيرونکے.

**جراحت :** جراحي، د پرهر، زخم د ټيرلو کار، د جراح پيشه، سرجري، د زخمونو د علاج کار، ټپ، زخم، پرهر، پرهار.

**جرار :** راښکونکے، اصل معنیٰ په وسله او نورو الاتو مسلح او د بې شميره فوځ لښکر. چالاک، خبر لوځ، زړۀ ور، تکړه، ګړندے.

**جرائم :** د جرم جمع، جرمونه.

**جرح :** بحث، نکته چيني، شهادت باطلول. پرهر، زخم، ټپ.

**جرړه :** بيخ، ريشه، بنياد، بنسټ، اساس.

**جرس :** ګنټۍ، ژغژغه، غټ ګينګړے.

**جرعه :** ګوټ، غړپ.

**جرګه :** غونډه، مرکه، ټولے، د مشورې مجلس، د څۀ خبرې د حل کولو په غرض راغونډ شوي خلق، مصلحت، مشوره، صلاح.

**جرم :** د قانون د لاندې قابل سزا حرکت، جنايت، غلطي،

خطا، ګناه.

**جرمانه :** تاوان، ناغه، مالي سزا،

**جرنده :** جندره، تاله، کلپ، قفل.

**جرنیل :** د فوځ لوړ افسر. مشروټ، مغرور. لرے، د څناورو د معدې يوه حصه.

**جره :** جري، جيشے، سپے بوتړے، کوترے بوتړے، يو ازغن بوتړے چې د سرې جامو او ګلړو بزو پورې نښلي. لونړ، ناوادۀ کړے، مجرد، څړه، يواځې، ګوښې، تنها.

**جريان :** يوه بيماري چې پکښې بې له خوښې انزال کيږي. رواني، جاري پاتې کيدل، بهيدنه.

**جريب :** د زمکې د پيمائش پيمانه، څلور کناله، اتيا مرلې، هغه زنځير چې زمکه پرې ناپ کولے شي. د زمکې د پيمائش يوه آله.

**جريده :** ښاخ، څانګه، بې پاڼو څانګه، يادګار، مجرد، هغه مجله چې خبرونه هم لري.

**جرى :** لښتې لښتې، چوړى، شيلى شيلى، رختونه رختونه.

**جړوبے :** ابشار، څړوبے، راوه، ګړونګه،

**جړى :** د ژمي پرله پسې باران، په يو مخ باران. مارجړى، زهرموره، زهر مهره. قے، کانګه، يوه بيماري.

**جزا :** بدله، عوض، صله.

**جزبندي :** جزو بندي، څۀ څيز په صفحه صفحه ګنډل، په يو ځاے کونه.

**جزع :** بې صبري، بې قلاري، ناقلاري.

**جزم :** غړوندے، غوړندے، وقف، د ټکي د ساکن کولو علامت، مضبوطه اراده، کلکه اراده، يقين.

**جزو :** برخه، بخره، حصه، ټکره.

لـري. پســه، ګـلـه، رام، تـر ارادې لاندې.
**رغ** : ښکاره، څرګند، جوت، صاف، واضح.
**رغاونیز** : شـاندار، له پرتمه ډک، ښـائسته، ښکلې، ډولي یا منقش.
**رغبـت** : غــوښتنــه، میـل میلان، ارزو، هیلــه، علاقـه، تــوجــه، خـوښــه، دوستـي، خپلولي.
**رغړول** : کـولـول، تیلول، کـرړول، ګړړول، لتې په لتې یا لـوټې پـه لـوټې اړول، خلڅ کـنـګالول، اوبڅ غرغره کول، غـولـول، خـطا ایستل، دروغ وئیل.
**رغړیدل** : کولیدل، تیلیدل، کرړیدل، ګړړیدل، لتې په لتې یا لـوټې پـه لوټې اوړیدل، خلڅ کنګالیدل، اوبڅ غرغره کیدل، غولیدل.
**رغښتل** : رغړیدل، کولیدل، تیلیدل، پیچل کیدل، لوټې په لـوټې یـا لتې په لتې اوښتل، د دیوال چپه کیدل.
**رغم** : مـخـالفت کونه، ضد کونه.
**رغمه** : صبر.
**رغول** : ابــادول، جوړول، سـازول، سـمـول، ګنډل، شفا ورکول، په علاج سره ناروغه جـوړول، نقاشي کول، منقش کـول، پـه دشمنی کښې ځان خلاصول او جوړیدل.
**رغول** : زړڅ صبـرول، رابطه شـلـول، اړیکې شلول، رابطه قـطـع کـول، لـه یو بل نه لاس اخستل.
**رغیـدل** : روغیــدل، شــفــا مـونـدل، جـوړیدل، سازیدل، د ورانیـدل متضاد، ګنډلې کیدل، پیوندیدل.
**رغیدل** : رابطه قطع کیدل، اړیـکـې یــا رابـطـه پریکیدل، دوستـي او خپـلـولي ختمیدل، له یو بله لاس اخستل.
**رغی** : تـورکې، تهول شوې

لوګی، سره راغونډ شوي دود، هغه لوګی چې په دېوال یا چت نښتي وي.

**رغې** : لېږ ژوور، هغه ډنډ یا لوښې چې ډېر لېږ ژوور وي.

**رغې** : رغونه، جوړښت، اصلاح، جوړه، پخلا کونه.

**رف** : مورګه، پښته، ارم، هغه تخته چې د کور ورو کې ورو کې سامان پرې ایښوې شي.

**رفاقت** : ملګرتیا، الهیوالي، یارانه، تار اچونه.

**رفاه** : ارامي، هوساینه، هوساتي، سوکالي، بېګړه، پریماني، فراواني، د اقتصادي دور یوه مرحله.

**رفتار** : چلند، چله، روش، ګزاره، سلوک، یون، تګ، حرکت، تلنه، تلګ.

**رفع** : لرې کونه، ایسته کونه، له منځه وړنه، جګونه، لوړونه، پورته کونه، د یوې کلمې مرفوع کونه، حلفونه.

**رفعت** : رتبې وچت والی، بلندي، لوړي

**رفع دفع** : ایله دېله، ختمونه، برخاستونه.

**رفو** : پنځرې، ګرمل، ګرېل، ګنډله، ریو، پنځرک، ترمیم، د قمیص یا پرتوګ شلېدلې ځای یا جوړونه، پیوند لګونه.

**رفو ګر** : رفو کوونکی، هغه څوک چې د رفو کسب کوي.

**رفیع** : لوړ، هسک، جګ، د لوړې مرتبې یا درجې خاوند، شریف.

**رفیق** : ملګری، دوست، مل، انډیوال، د یوه فکر، یار، محبوب، معشوق.

**رقابت** : څارنه، څار، نګهباني، حفاظت، سیالي، سرونده، مخالفت، په یوه کښې شرکت، انتظار.

**رقاص** : ګډېدونکی، رقص کوونکی، ناځو، لښتی، نځې.

**رقاصه** : د رقاص مؤنث.

**رقبه** : ساحه، مساحت.

**کوچې** : خانه بدوش، کوچیانې.
**کوچې** : د خرورو کې بچې، کوچانې، کوچنړې.
**کوڅه** : کوچه، د محلې دننه د تلو راتلو تنګه لاره.
**کوڅه** : همت، جدوجهد، کوشش.
**کودرې** : ټیکرې، کودې،
**کوده** : قوده، د ریبلې شوې فصل یا واښهٔ هغه مقدار چې په موټې کښې راځي.
**کودې** : کودرې، کودنې، کودر، کودرکې. تیغنه، تبی، تبخې. د کلال د جوړ کړې خاورین لوښي ټوټه چې ښه په پچه کښې پخه شوې وي. د ټیکرې د لوښي ماته ټوټه. ټیکرې، د کړوسي ځوې،
**کوډګر** : جادوګر، کوډې کونکې.
**کوډله** : جونګړه، جومپړی، چوپال، کیږدی، د وښو جونګړه، تمبو، خیمه.
**کوډه** : جادو، ټونه، ټوټکه، سحر.
**کور** : د وسیدو ځاې، خانه، مینه. ګور، قبر،
**کوَر** : انګور،
**کور** : روند. برابر، مساوي، یو هومره.
**کوربنه** : د کور مالکه، د کور خاوندہ.
**کوربه** : میزبان، د کور خاوند،
**کورت** : کروت، قروت، وچ شوي ماستهٔ.
**کورخې** : کرخې، لوبیا،
**کورغنډل** : د ازغو ډک یو زهریله بوټې چې په دارو ګانو کښې پکارولې شي.
**کورکوړه** : ګوګوشتکه، کرکوړی، کوړکوړه.
**کورکې** : د کور اسم تصغیر، ورو کې کور.
**کورنی** : هغه زنانه چې د جینی کور کښې د خپلو خپلوانو له کورونو د هغې د

وادهٔ پـه ورځ راتړولې شي. کوړمه، خاندان، د قبیلې یو ښاخ.

**کوړنۍ** : خاندانی، خپل، د خپل کالهٔ، په کور کښې ساتلې شوې.

**کوروالې** : د خپلې ښځې سره مباشرت کول. د ښځې او خاوند په جنسي توګه یوځایې کیدنه، همبستري.

**کوړې** : ترنګن، ترنګړ، له میزري جوړ تمبوزک.

**کوړې** : زیړ لرګې، زرشک.

**کوړمه** : خاندان، ټبر، کول، کورنی، زوزاد.

**کوړه** : د څرمنې چابک، پیچلې، سره نغښتې.

**کوړي** : پمن، جذامي، دجذام په رنځ اخته.

**کوز** : ښکته، ژور، لاندې، د بره متضاد.

**کوزړی** : وړه کوزه.

**کوزه** : یو خاورین لوښې چې د لاسونو وینځلو یا لمبلو دپاره پکاریږي.

**کوزیدل** : لاندې کیدل، لاندې راتلل،

**کوژتي** : بوزتي، روژه خور، هغه کس چې روژه ئې نهٔ وي.

**کوژدن** : کویدن، په نکاح کونه، جینی خوښونه.

**کوږ** : یو ماتونکې ځناور، کوږبل. د نیغ ضد، ټیټ، خمدار.

**کوږل** : محنت کول، کار کول، زحمت ایستل، خواري کول، کوږیدل. کږل، نظر نه غورځول، هیرول.

**کوږووږ** : تاؤ راتاؤ، کوږ راکوږ.

**کوس** : خنزیر، بد ځناور.

**کوسا** : هغه سړې چې ږیره ئې بیخي نهٔ کیږي، کوسه.

**کوسړې** : څپیړې، د چیترې یا څپلی ګوزارونه.

**کوشش** : محنت، جدوجهد، خواري، کار.

**کوشیر** : پیوند، تانکه

چې برغ نهٔ وي.

**يوغر بل غر** : هغه دغه، انګا بنګا، عبثې بې ځایه خبرې، واهیات، چتیات، اوتې بوتې. انې بانې.

**يُوم** : بیل، یو قسم بیلچه.

**يوم الحساب** : د حساب ورځ، د قیامت ورځ چې د هر چا نــه بــه پکښې د عملونو حساب اخستے شي.

**يومخيز** : د یوې خبرې سړے، د اصولو پابند، کوتاه اندیش.

**يومکے** : وړوکے یوم. د ملا تبخے.

**يوميه** : د ورځې مزدوري، روزانه اجرت.

**يون** : تلل، رحلت، تګ، رفتار، سفر، هغه تګ چې نهٔ تیز وي او نهٔ په مزه.

**يونه** : د یور جمع، وګورئ یور.

**يووالے** : اتفاق، اتحاد.

**يوه زړے** : یواځې، تنها، چې څوک ئ د مدد نهٔ وي.

**يوه** : ایوې، یوې، د زمکې اړولو آله.

**يو يو** : یو په یو، فوراً.

**يوې** : ایوې، هل، ایوه، قلبه.

**يه** : حرف ندا دے یا، چا ته د اواز کولو کلمه.

**يهود** : د حضرت موسیٰ علیه السلام امتیان.

**يهودي** : وګورئ یهود.

**ې** : یائ مخصوص. د پښتو دوه څلویښتم مخصوص حرف. د پښتو خاص تلفظ لري لکه سړې اوبهٔ، درې، چړې، مرکب صورت کښې به لاندې باندې ټکي لري،

**ئ** : یائ تانیث د پښتو درې څلویښتم حرف، د تانیث علامت لکه نرئ، چیلئ وغیره.

**ے** : د پښتو د پتهی څلور څلویښتم حرف هغو تورو کښې استعمالیږي چې مجهول اواز لري لکه سړے، سپے، لښتے، وغیره.